من يرد الله به خيرا يفقهه في الدين

# قدوری عربی

## مع مسائل ضروریه پښتو


تصنیف علامهٔ زمان فقیهُ العصر حضرت

أبو الفضل مولانا محمد عبید الله الایوبی

القندهاری النقشبندی السلیمانخیلی



الناشر

الادارہ تالیفات ایوبی

و

مکتبة القراءت

کوئٹہ بلوچستان

فَقِيهٌ وَاحِدٌ أَشَدُّ عَلَى الشَّيْطٰنِ
مِنْ أَلْفِ عَابِدٍ جَاهِلٍ

# قُدُورِی عربی

مع ترجمہ

## پشتو و مسائل متفرقہ

من جامع المنقول و المعقول و فاضل
العصر المحقق والمدقق و صاحب الفصاحۃ
و البلاغۃ العلامۃ ابو الفضل محمد عبد اللہ
الایوبی السلیما خیلی نسبًا قندھاری وطنًا
الحنفی مذھبًا النقشبندی مسلکًا الایوبی تخلصًا


الناشر
مکتبۃ القراءت والتجوید

بسم الله الرحمن الرحیم

# د ناشر له خوا

ګرانو لوستونکو! حضرت فقیه العصر علامة زمان قائد اهل
سنت والجماعة مجاز سلسله نقشبندیه ترجمان ملت اسلا
شیخ الاسلام الحاج مولانا محمد عبید الله ایوبی نقشبن
قندهاری سلیمانخیلی خو د هیڅ تعارف او پیژندګلوی محتاج نه
او هم د ده ځانګړی تصنیفونه او حواشی د هیڅ مسلمان څخه پوشید
نه دی. په کار خو دا وه چه اهل د زمانې د ده په تصانیفو او حواش
او د ملت اسلامیه په ښه توګه ترجمانی کولو باندې اعتراف
کړی وای او ده ته ئې لقب د شیخ الاسلام ور کړی وای.

ځکه چه په نن زمانه کې حضرت ایوبی واحد هستی ده. چه
اسلام و دې ستر خدمت او د دین محمدی علی صاحبها الصل
والسلام و اشاعت او خپرولو ته ئې ملا تړلې ده. فالحمد لله علی ذ

د حضرت شیخ الاسلام ایوبی مد ظله العالی د سترو خدما
او تصنیفو څخه یوه نمونه هم دغه "عروس نوبهار" پښتو قد
ده چه و ټول ملت اسلامیه ته د یوې تحفه عظیمه په توګه وړاند
کیږی. خپله ما فضل الحق چه د اداره تالیفات ایوبی او مکتب
القرائت ناظم یم په سرپرستی د مولوی عبد الباری عفی له البا
د کتابت او اشاعة کار پر غاړه واخیست چه د الله په فضل و کر
په دواړه سرته ورسیږی.

الله تعالی دی دا کتاب و مسلمانانو ته د نفع اخستلو سبب و ګرځو
او حضرت شیخ الاسلام ایوبی صاحب ته او موږ ته دې ذخیره د آخرت
و ګرځوي. آمین ثم آمین.

ناشر محمد فضل الحق حقانی مدیر اداره تالیفات ایوبی
وناظم مکتبة القرائت کوئټه تلمیذ حضرت ایوبی مد ظله العالی

# مُقَدِّمَة

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

پس له شروع په نامه د خدای پاک په ډیر عجز او نهایت تذلل حمد و ثناء د رب جل و علا وایو: شعر

هزار بار بشویم دهن بمشک و گلاب — هنوز نام تو گفتن کمال بی ادبی است

وروسته بیا درود نامحدود او سلام نامعدود پر ذات والاصفات د آنحضرت ﷺ وایم۔ شعر

لا یمکن الثناء کما کان حقه — بعد از خدا بزرگ توئی قصه مختصر

او بیا درود او سلام پر اهلِ بیت او اصحابو د آنحضرت صلعم وایم۔

## نیاز په دربار کی د بی نیاز

الٰهی یا الٰهی یا الٰهی — ندارم جز امیدت تکیه گاهی

ندارم طاعتِ مقبول درگاه — بجز اشک ندامت آه آهی

ندارم توشۂ راہِ قیامت — بجز شرمندگی و روسیاهی

شفیع آورده ام روی محمد ﷺ — کرم کن بر من گم کرده راهی

ز کن موجود کردی جمله عالم — مرا از ذنب کن عذر خواهی

سبب او باعث د شرح د قدوری په پښتو ژبه دا دی! چه طلب د علمِ دین او ځان خبرول په اسلام کی په هر نر او ښځه په قدر د حاجت فرضِ عین دی۔ او د دین و اسلام دوه برخی دی یوه برخه عقائد لکه خدای یو دی شریک نه لری۔ قیامت حق دی۔ رسولان حق دی۔ او نور د دغه قسمه څخه۔ او بله برخه ئی عملیات دی۔ لکه لمونځ روژه حج او نور اعمال۔ د عقائدو په حصه کی نوره ظلم شریف وو۔ د هغه کتاب شرح په پښتو آسانه ژبه ما وکړه۔ او هغه شرحه چاپ او شائع سوه او په پښتنو نرو او ښځو کی لوی شهرت او مقبولیت پیدا کړی۔ او د هر طرفه د نرو او ښځو د احسنت پیغامونه را ته رسیده۔ او په دی پیغامو کی پس له اظهاره د مسرت او خوشحالی او تشکر د اسی سفارش او خواهش کړه سوی وو۔

بسم اللّٰه الرحمٰن الرحیم ۔ اَلسَّلَام عَلَیْکُم و رحمة اللّٰه و برکاته۔ د طرفه څخه د ډیرو پر دین مینو طالبانو او نوی ملایانو! وحضور ته د عالم ربانی، مجاهد حقانی

باذل الهمة فی احیاء مسلک اهل السنة والجماعة، الشیخ الاجل، والرسیخ الاکمل
العلامة محمد عبید الله صاحب ته وړاندې کوو. کرانه د ټول افغانستان استاذ
اول موږ د الله جل جلاله څخه ستاسو د ښه او کامل صحت غوښتونکي یو. نو موږ د ټولو د
نومو د نیک وجه دا ده چه موږ بیخي ډیر یو که ټول نوموونه ولیکو کاغذ مخ به ډک سي او
ترجیح بلا مرجح موږ هم و نه کړه. محترم استاذه تاته ښه معلومه ده چه د طالبانو استعدا
ورځ په ورځ پر کښته کیدو دی. او طالبان د فقهي سره لښ في مئه تعلق لري. حال دا چه په
حقیقت د مسائلو د دي علم شریف ځان یوه کول ډیر ګران کار دی. شا وخوا موږ وکتل
ستاسو په شان یو عالم رباني او د دین غمخوره موږ و نه لیدی. او بعضی کتابونه چه تاسو
تصحیح او تحشیه کړي ده. د خوشحالۍ ځای دی چه بعض د هغو څخه د عقائدو محترم کتاب
نور ظلم شریف دی چه په پښتو ژبه چه هر سړي په پوهیږي ترجمه او تصحیح کړیدی.
او ډیر کتابونه دي په عربۍ کي په آسانه عبارت سره اوره عادي. نه لکه بعضي کسان چه تصحیح
او حاشیه پر کتابو کوي لکن د خپل علمیت د اظهار د پاره که مغلق عبارتونه استعمالوي
د طالبانو استعداد ته نه ګوري.

محترمه تاسي دي الله پاک په جنت الفردوس کي ولري. د دینِ محمدی د پاره
تاسو ډیر خدمتونه وکړل چه د تاریخ په پاڼو کي به همیشه پاته وي. لکن نو موږ خواهش به
لاندې د ول دی!

(۱) هدایه کاني شریفاني ډیري ډیري ګراني دي او په حاشیو کي هم غلطیاني سته خصوصاً
هدایة البیع والشفعة چه د ډیرو مسائلو موږ تونه ډیر مشکل دی که چیري موږ په دا عمل
حال پاته سو د ډیرو کړاونو سره به مخامخ سو. نو موږ د خدای جل جلاله ډیر لوی رحمت
بولو که تاسو د هدایه ۳ او ۴ جلد د مسائلو موږ تونه او مهمات تشریح او واضح کړئ.

(۲) په فارسي عربي او اردو ژبو کي د لغتو د بیانولو بیخي ډیر کتابونه سته. اما متاسفانه
په پښتو ژبه نه کوم جامع لغت سته او نه چا د لغتو د یوه کتاب ترجمه په پښتو ژبه کړې ده.
نو موږ چه د لغتو یو کتاب را واخلو د یو لغت د معلومات د پاره که هغه لغت په ترجمه
کي د اسي لغات راسي چه موږ د مشکلاتو سره مخامخ کړي. نو نو موږ هیله دا هم ده
چه یو جامع د لغتو کتاب لکه غیاث یا منتخب په پښتو ژبه ترجمه وکړئ نو ستاسي به دی همت
به ډیر نوي ملایان او طالبان د لغت د کړاونو څخه خلاص سي.

اَعوذ بِاللهِ من الشیطنِ الرجیم. وَاَمَّا السَّائِلَ فَلَا تَنْهَرْ

محترمه موږ د افغانستان په یوه لیرې سیمه کې سکونت کوو، ستاسو ملاقات
ته وخت نه سوای پیدا کولای. لکن ستاسو د کتابو حاشیې او تصحیح موږ ولیدله حکه
نو موږ هم دا غه امید چه مخکې بیخي قطع سوې وه را پیدا سوچه ستاسي و حضور ته
موږ الیک وړاندې کړې. خدای پاک جل شانه دې زموږ دا خط و تاسي ته ورسوي. ومن
الله التوفیق. د خدای په امان. ۱۳۶۹/۴/۲۵ش. دا و د هغه لیک متن او عبارت چه ما ته راغلی وو

د دې مکتوب په جواب کې درویش محمد عبیدالله کندهاري داسي وائی

باسمه تعالی و بحمده جل سلطانه!

کرانو عزیزانو او په رښتیا سره د دین مبین مینو طالبانو هر چیرې چه یاست تاسي
تولو ته دې زما د طرفه د محبت او اخلاص څخه ډک سلامونه ورسیږي. خدای دې د دین
تول مشکلات تاسو ته آسانه کړي. ستاسو مفصل خط را ورسیدی او زه ستاسي د دې
خط د احتراماتو څخه هم زه لا لوټ نه یم. ډیره ډیره منته کوم. او د اخلاص په فضا کې
ستاسي و دې خط ته لبیک وایم. الحمدلله چه په دې پرآشوبه زمانه کې طالبان د حق
او د اسلام په کثرت موجود دي او پتنګان د څراغ د علم دین او س هم په پرواز دي.

کرانو ورونو ستاسي د خط مضمون [illegible] منونکی دی. رښتیا
هم چه پښتنو علماؤ خصوصاً د افغانستان علماؤ د دین په باب کې د خپلې ژبې او قوم خدمت
کم کړی دی. او س او س چه لیک او لوست و لانس او ښځې ډیر دي باید و دوی ته د اسلام
د مبین دین عقائد او عملیات د دوی په مورنۍ ژبه عرض سي. چه تول په دین خبر سي.
افسوس چه انګریزي، شوروي، جاپاني وغیره کتابونه په پښتو ژبه ترجمه کیږي چه صرف
د دنیا ګټه په کښې ده. او دیني اسلامي کتابونه چه د دنیا و آخرت منافع په کښې دي
تعصبو دي څوک ئې نه ترجمه کوي.

کرانو عزیزانو! ستاسو مطالبه به لږ وخت وځنډیږي. لکن ان شاء الله که ژوند
باقي وو ترسره به سي. د تاخیر سبب هم دا دی چه څه وخت چه د فقیر ترجمه کړې کتاب
نوره ظلم شریف د پښتنو و جامعې ته عرض سو. او تخمیناً د دوو کلو په وخت کې پنځه واره
چاپ سو. او د عوامو د نرو او ښځو چه خط ئې زده وو د استفادې ور وګرځیدی.
نو د هغه وخته و ماته د نرو او ښځو متعدد د خطونو او د ډیرو دوستانو شفاهي سپارښتونه
په باره کې د قدوري شریفې چه یو معتبر او معتمد کتاب د فقهي شریفې دی را غلي دي
او دوی غوښتنه کړې ده چه قدوري شریفه هم پر طرز د نور ظلم ترجمه کړه تا چه

د احکامو په باره کې ټولو پښتنو ورو ونو او خویندو ته لکه عقائد چه واضح سوره. د غه رنګه لمونځ، روژه، حج، حیض، نفاس وغیره هم روښانه سي.

نو ځکه ما نو خط لیکو نکو اول که خدای توفیق راکړي د دغو ورو ونو او خویندو مطالبه چه سبقت لری پوره کرم. او بیا که شو وینډوو منتخب اللغات به پښتو کړم. د دې ترجمې ټولې مسئلې به انشاء الله العزیز په حواله د هدایې د مختار کنز او نورو د فقهې حنفي د کتابو لیکل شي.

وَمَا تَوْفِيقِي إِلَّا بِاللَّهِ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَإِلَيْهِ أُنِيبُ

او نه دی توفیق زما مګر د الله په مدد، په هغه زما توکل دی او هغه ته زما رجوع ده.

مصنف د قدوري وائي!

## بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

شروع کوم په نامه د خدای چه بخښونکی او مهربان دی

سوال! څه سبب دی چه ټول اهل تصنیف د خپلو کتابو په اول کې بسم الله شریف لیکي؟

جواب! اول دا چه متابعت د قرآن کریم د طریق کوي چه په هغه کې ابتداء په بسم الله ده. دویم دا چه نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي چه هر هغه کار چه د خیر او برکت وي او په هغه کې شروع په بِسْمِ الله ونه سي هغه کار به د برکت څخه خالي وي. روایت د امام نووي په شرح کې د مسلم شریف د اول جلد په سر کې. دریم دا چه وروستنی علماؤ د خپلو پښینه علماؤ متابعت مستحب او نیک ګڼي نو په دې اساس چه په بسم الله شریف شروع کول میراث قدیم دی نو ټول د دیني او غیر دیني کتابو مصنفین شروع په بسم الله کوي.

## د بسم الله الرحمن الرحیم په باره کې بعضې ضروري معلومات

د الله لفظ نوم دی د ذات د خدای پاک. او عربي لفظ دی. او دا مذهب د امام اعظم ابو حنیفه او د محمد بن الحسن او د امام شافعي او د خلیل احمد دی. او امام محمد د امام حنیفه څخه روایت کوي چه الله اسم اعظم شریف دی. او فقیه ابو جعفر الطحاوي وائي چه دا مذهب د ډېرو علماؤ او اکثرو صوفیانو دی. او تردې لوی ذکر نشته. رد محتار ص ۵ ج ۱.

درویش وائي چه که څوک غواړي چه دا لفظ مبارک هره ورځ وظیفه وګرځوي نو دوه شپې دې سوه شپیته واره ۲۳۶۰ دې وائي په اجازه د شیخ عامل او د پخوالی عدد په پنځه لکه واره په اعتکاف کې درویشتې سره په اجازه. او که چا ته یو مهم سخت کار

پښی سحر چه شمار واوی لودما خستن تر ماښځه وروسته دی دوه رکعته نفل وکړی اودا اسم مبارک دی پریوه ځای دوه زره درې سوه شپیته (۲۳۶۰) واره و وائی او بیا دی درب جل شانه په دربار کی دهغه مهم په باره کی خواست وکړی. تردرو شپو پورې ان شاء الله هغه کار به خدای پاک آسان او خلاص کړی. او د پوره بسم الله شریف روزانه وظیفه اووه سوه شپږ اتیا (۷۸۶) واره ده.

اولفظ د رحمٰن عربی دی. او د خدای پاک اسم صفت دی. یعنی معنی د رحمت چه مهربانی ورسره لحاظ ده. او معنی د رحمٰن ډیر مهربانه په دنیا او آخرت کی.

**پوښتنه!** رحمٰن وما سواته د خدای پاک ویل روادی که نه؟

**جواب!** عمومی کتابونه وائی چه نا روادی لکن د ردالمحتار په جلد اول ص۶ کی راغلی چه مخصوص په خدای پورې دی. هغه لفظ دالرَّحمٰن دی. یعنی دالف لام سره پس یوازې رحمٰن و غیرته د خدای پاک ویل کیدای سی.

او اَلرَّحِیم هم اسم صفت د خدای پاک دی معنی ئی مهربانه په آخرت کی پر مؤمنانو. د تصوف په کتابو کی راغلی دی چه وظیفه دالرَّحمٰن روزانه (۲۹۸) واره سبب د فراخی د رزق ده او وظیفه د الرَّحِیم (۲۵۸) واره سبب د نعمته د آخرت ده. ومن الله التوفیق

په حدیث شریف کی راغلی دی چه آنحضرت صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی چه کلی دقرآن بِسْمِ اللهِ الرَّحمٰنِ الرحیم ده. ابن عباس رض روایت کړی دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل چه څه وخت یو بنوونکی و هلک ته و وائی چه و وایه بسم الله الرحمٰن الرحیم. هغه هلک هم بسم الله شریف و وائی خدای پاک لیکی کاغذ د نجات د دوزخ د هغه هلک پر نامه او د هغه د مور او پلار پر نامه او د معلم پر نامه. تفسیر یعقوب چرخی ص۲۸.

**پوښتنه!** آیا د بسم الله الرحمٰن الرحیم په ویلو سره کبیره ګناهونه هم بخښل کیږی که نه؟

**جواب!** کتابونه د فقهی شریفی وائی چه پر هر ښه عمل یا قول چه په حدیث شریف کې وعده د بخښنی د ګناهو راغلی وی مراد له هغه څخه صغیره ګناهونه اما د کبیره ګناهو د بخښنی امید هم سته.

**پوښتنه!** د کبیره ګناهو بخښنه په څه شی کیږی؟

**جواب!** د اخلاص په توبه. ولی چه آنحضرت صلی الله علیه وسلم وائی چه "اَلتَّائِبُ مِنَ الذَّنْبِ کَمَنْ لَا ذَنْبَ لَهٗ" یعنی توبه کار د ګناه څخه داسی کرځی لکه ګناه چی کړی نه وی

پوښتنه! د قرآن مبارک د هر سورت په اول کښې بسم الله شریفه سته ماسوای د سورة برائت آیا دا د هر سورت جزء ده که څنګه؟

جواب! د حضرت امام شافعیؒ په مذهب کښې بسم الله د هر سورت جزء ده. اما امام اعظم ابوحنیفهؒ په دې باره کښې واضح خبره نه ده کړې. خو بیا هم د امام اعظمؒ د مذهب امامان وائي چه بسم الله شریفه د قرآن پاک یو مستقل او جلا آیة دی د هر سورة جزء نه ده او د هر سورة په ابتداء کښې د پاره د تبرک او د قرآني سورتو د جلا کولو د پاره ویل کیږي. تفسیر بیضاوی ص۳.

سوال! که څوک د بسم الله د قرآنیت نه منکر شي باید کافر شي او سره د دې فقهاء وائي چه کافر نه دی.

جواب! هغه آیة چه اتفاقاً قرآن وي نو منکر ئې کافر دی بسم الله شریفه اتفاقاً قرآني نه ده. ولې امام مالکؒ ئې قرآن نه بولي بلکه ذکر ئې بولي.

سوال! جنب او حائضې یا نفاسې ښځې ته ولې د بسم الله ویل روا دي او سره د دې چه دغه کسان د تلاوت د قرآن شرعاً منع دي؟

جواب! دغو کسانو ته ویل د بسم الله په نیت د تبرک روا دي نه په نیت د قرآن. خزینه ص۸۴

پوښتنه! دغو کسانو ته ماسوای د قرآن شریف نه نور اذکار لکه لا اله الا الله سبحان الله وبحمده. او نور اذکار ویل روا دي که نه؟

جواب! په اتفاق د ټولو مذاهبو روا دي. دغه رنګ دغه کسان اَلسَّلَامُ عَلَیْکُمْ وچاته ویلای شي. او وَعَلَیْکُمُ السَّلَام د چا په جواب کښې ویلای شي. او دغه رنګ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رب العلمین په قصد د تشکر د نعمت نه په قصد د قرآن هم ویلای شي. خزینه ص۸۴

په اسرار مخزونه کښې ص۵ داسې راغلي دي که څوک یو ظالم ته یا یو حاکم جابر ته ورځي او پنځوس واره بسم الله شریفه تر پایه پوره ووائي هغه ظالم او حاکم به پس د ده مهربان شي او دوی ته به ذلیل وي. او د ده ویونکي هیبت به پر هغه پریوزي. او د شر نه ئې په امان شي. او دغه رنګ که څوک د یوه پیریانو یا پېښو په غوږ کښې څلوېښت واره بسم الله شریفه ووائي هغه په هوښ کښې راځي او پیریان به ئې ایله کړي. که څوک بسم الله شریفه په وخت د خوب کښې ۲۱ واره ووائي په دغه شپه کښې به د شیطان، پیری، غله، د ناببره مرګ او د هر آفت نه په امان وي. او که څوک بسم الله شریفه ډیره هره ورځ ووائي رزق به ئې خدای پاک فراخ کړي. او په آساني به رزق ور رسیږي. خ ص۸۲

که څوک د یکشنبې په ورځ د لمر ختلو په وخت کې مخ پر قبله بسم الله شریف په حساب
د ګرد سولا نو یعنی (۳۱۳) واره و وائي. او ټول واره درود شریف هم و وائي خدای پاک
به یو نابیره رزق ورکړي. او دغه رنګ که څوک بسم الله شریف په حساب د ابجد یعنی
(۷۸۶) واره په نیت د اخلاص و وائي د هر حاجت د پاره چه روا وي خدای پاک به ئې هغه حاجت پوره
کړي. او که د ظالمانو او د ښمنانو څخه ویریږي خدای پاک به هغه ځني دفع کړي. او که د تجارت
ئې و وائي هغه تجارت به ئې ډیره ګټه ور ته وکړي. او که د چا را جلبول مقصود وي هغه سړی به
ور ته راسي. حضرت امام ابوحامد محمد غزالیؒ په احیاء العلوم کې وائي. که څوک د شپې یا
د ورځې بسم الله شریف (۱۲۰۰۰) واره په دې ترتیب و وائي چه اول او دس تازه کړي پاکې جامې
واغوندي په پاک ځای کښې نو بیا زر واره بسم الله شریف و وائي او بیا دوه رکعته نفل وکړي
او بیا لاس پورته کړي حمد د خدای پاک و وائي او خپل حاجت ځني وغواړي. وروسته بیا قرائت د
بسم الله شروع کړي زر واره چه پوره سوه بیا دوه رکعته وکړي او بیا دعا وکړي په دغه ترتیب
تر دوولسو زرو واره پوري هغه حاجت بې خدای پاک په لنډه موده کې د سره کړي. که هر څو
ګران کار وي. خ ص ۸۶

په یوه حدیث شریف کې راغلي دي چه آنحضرت صلی الله علیه وسلم وائي چه نن ورځې هغه خواست
چه اول پکښې بسم الله شریف و ویل سي. کذا فی تفسیر الفاتحة. او که څوک همیشه توب وکړي د بسم الله
پر ویلو (۷۸۶) واره خدای پاک به ور ته انسانان نر او بنځې ټول مسخر او فرمانبردار کړي او دا ټول
په اجازه. د تفسیر کبیر په اول کې د ابوهریرة رض په روایت داسې راغلي دي چه رسول الله صلی الله علیه وسلم
ور ته و ویل. یا اباهُرَیرة اِذا توضَّاْتَ چه ته او دس تازه کړې فقُلْ بِسمِ اللّٰہِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ وایه ته
بسم الله فَاِنَّ حَفَظَتَکَ لاَتَسْتَرِیْحُ. ولې چه په تحقیق سره ستا ساتونکي ملکي استراحت نه کوي. اَنْ تَکْتُبَ
لَکَ الْحَسَنَاتِ. چه تا ته نوشته کوي نیکي. حَتّٰی تَفْرُغَ. تر هغو چه ته د او دس څخه فارغ کیږې. وَاِذَا غَشِیْتَ
اَهْلَکَ. او که ته ورځې وخپلې مایني ته د جماع په قصد. فَقُلْ بِسْمِ اللّٰہِ. وایه ته بسم الله شریف یعنی تر بنګا
خلاصیدو محکې فَاِنَّ حَفَظَتَکَ یَکْتُبُوْنَ لَکَ الْحَسَنَاتِ. په تحقیق ملائکه ستا لیکي تا ته نیکي. حَتّٰی
تَغْتَسِلُ مِنَ الْجَنَابَۃِ. تر هغو چه ته غسل کوې د جنابت"

محمد عبید الله قندهاري ابوبې سلیمانخیلي وائي چه په فضائلو کې د بِسْمِ اللّٰہِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ
بیشماره حدیثونه او د امامانو د دین قولونه راغلي دي. که چیري زه ټول نقل کړم نو ډیري ورقې به
پکار سي. که څوک د بسم الله ټول بیان او خواصې او فضائل غواړي نو دې د اسرار مخزون د
(۸۰) صفحې څخه تر (۸۸) پوري مطالعه کړي.

قدوړی وائی!

# اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ

توله ثنا او صفت خدای پاک لره دی خاص چه رب او ساتونکی د ټولو مخلوقاتو دی۔

دال معنی ټوله۔ د حمد معنی صفت دی چا کول په ژبه که هغه د نعمت د سببه وی لکه وائی خدای پاک ما ته بنه رزق یا بنه زامن راکړی دی۔ یا د نعمت د قسمه نه وی لکه چه وائی خدای جل جلاله عالم دی قادر دی۔ او شکر عام دی که په ژبه د چا صفت کوی او که په لاس و پښو د چا خدمت وی او یا په زړه کی د چا سره محبت او اخلاص وی لکن خاص په نعمت باندی۔ او مدح بیا عام ده که په فعل اختیاری د چا صفت کوی لکه وائی فلانی بنه لمونځونه کوی بنی روژی نیسی۔ یا غیر اختیاری وی لکه چی وائی د فلانی بنه مخ او بنه قد و قامت دی۔ او په حمد او شکر کی دا شرط دی چه هغه صفت چه ته ئی بیانوی هغه به اختیاری وی۔

رب معنی تربیه کوونکی ساتونکی د خدای اسم صفت دی۔ آل په العلمین کی په معنی د ټوله۔ عالمین جمع د عالم ده او عالم په لغت کی علامه ته وائی۔ لکه د وی د چه علامه دا او ره ده او په اصطلاح کی هر هغه شی چه غیر د خدای پاک څخه وی هغه عالم دی۔ او په دې سبب عالم ورته وائی چه دا ټوله شیان په وجود د خدای پاک علامه او دلیل دی۔ سعدی شیرازیؒ وائی ؎

برگ درختان سبز در نظر هوشیار　　　هر ورقی دفتریست معرفت کردگار

عالم دوه قسمه دی عالم علوی یعنی بلند لکه آسمانونه، ملکی، جنتونه۔ او بل عالم سفلی دی یعنی کښته۔ لکه مځکه او په انسانان، حیوانان، درختی، غرونه او نور۔ د دې ټولو پیدا کوونکی، ساتونکی، رزق ورکوونکی۔ یوازی او یوازی یو خدای جل جلاله و عم نواله دی بل څوک شراکت نه ورسره لری۔

لوړه سلا! چه د عالم ټوله شمیر او حساب او په پوره تفصیل سره ئی حالات بې خدای جل شانه بل چا ته نه دی معلوم۔ قرآن، وَلَا يَعْلَمُ جُنُوْدَ رَبِّكَ اِلَّا هُوَ، او څرنګه دی په لښکر یعنی مخلوق د خدای مګر خدای پاک۔

سوال! تاسی څنګه دا ترجمه کوی چه ټول ثنا او صفت خدای لره دی۔ او سره د دې چه د مخلوق هم صفت کیږی لکه چه وائی فلانی بنه عالم دی فلانی ښه سخی دی یا فلانی بنه غازی دی۔ او نور۔

جواب! د غه صفتونه هم په حقیقت کی د خدای پاک دی ځکه ورکوونکی د علم یا د مال یا د شجاعت خدای پاک دی۔

مسئله ! حمد د خدای جل جلاله پر هر نعمت واجب دی او حمد او شکر د نعمت الهی سبب د زیاتوالی د هغه نعمت کرځی . قرآن «وَلَئِنْ شَكَرْتُمْ لَأَزِيدَنَّكُمْ» که تاسی شکر د نعمت وو ایاست نو زه به نعمت در زیات کرم.

فائده ! تر ټولو لوی نعمت او بهترین نعمت و مسلمانانو ته ایمان او اسلام دی چه په دې دنیا او هم په آخرت کی نعمت دی . او د نورو نعمتو سبب دی . ولی د دنیا ټول عذابونه لکه د لاس پر یکیدل پر غلا . په د بړو ویشتل پر زنا او نور د اسلام پر مخالفت بناء دی ولس . او د غه رنګه د آخرت د وزخ او په د وزخ کی عذابونه هم د اسلام پر خلاف کولو باندی بناء دی . لکه چه قرآن کریم او احادیث د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د دې خبری شاهدان دی .

پوښتنه ! څه سبب دی چه علماء د خپلو کتابو په سر کی حمد د خدای پاک وائی .

جواب ! په حدیث شریف کی چه روایت د ابن ماجه او نورو محدثانو کوی راغلی دی چه آنحضرت صلی الله علیه وسلم فرمائی «کُلُّ اَمْرٍ ذِیْ بَالٍ . هر هغه کار چه د رولو ونکی د شرافت وی . لَمْ یُبْدَأْ فِیْهِ بِحَمْدِ اللّٰهِ . او شروع ونه کړی شی په هغه کار کی په حمد د خدای . فَهُوَ اَبْتَرُ» هغه کار به قطع او بې برکته وی . او په دې کی شک نشته چه د کتابو تصنیف بنه کار دی .

سوال ! په ډیرو کتابو کی حمد د خدای نه لیدل کیږی نو هغه د دې حدیث مخالفت والی کوی . لکه بخاری شریف ترمذی شریف کافیه وغیره ؟

جواب ! شروع په حمد د خدای عام دی که په کتابت لیکنه سره وی او که صرف د خولې په ویناسره بیله کتابته . نو دغه مصنفینو حمد د خدای په خوله ویلی دی او لیکلی ئې نه دی . نو مخالفت د حدیثِ مذکوره پر دوی نه دی لازم . د شرح جامی د زیمو وکوره او د دی سوال نور جوابونه هم شته . چه ما په فیض القمر کی چه زما حاشیه ده پر عبد الغفور او نور محمد په تفصیل سره راوړی دی . او د بخاری شریف د اول مخ پر حاشیه کی هم راغلی دی .

فائده ! چونکه عمرونه د امت محمدی لنډ او کوتاه دی نو ځکه خدای پاک د دې امت ته جامع عبادات ورکړی دی . یعنی چه کول ئې آسان وی او ثوابونه ئې ډیر وی . د مغود جملې څخه اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ ده . ولی که مونږ په تفصیل سره د خدای پاک صفت کړو یعنی خدای پاک عالم دی . قادر دی . رازق دی . خالق دی . په هر حال دانا دی او نور چه تر حسابه تیر دی . نو نه مونږ څخه ډیر وخت بلکه میاشتی او کلونه غواړی . مګر چه یو وار سړی و وائی چه الحمد لله ثواب ئې دونه دی لکه چه د خدای پاک ټول صفتونه دی په تفصیل وکړه . یو څو شرعی مسئلې په باره کی د بِسْمِ اللّٰهِ او اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ وړاندی کوم .

(۱) بسم الله شریفه واجبه ده په ابتدا کې د ذبح د حیوان۔
(۲) واجبه ده په وخت کې د ویشتلو د ښکار په غشي یا په یو بل تیره شي۔
(۳) واجبه ده هغه وخت چه تعلیم یافته سپی په ښکار پسې ایله کوي۔
په بعضی کتابونو کې د فقهې شریفې راغلي دي چه په وخت د ذبح دې فقط بسم الله وائي یعني الرحمن الرحیم دې نه وروسره وائي۔ ولې چه ذبح د رحمت ځائ نه دئ۔ لکن په جوهره کې وائي که چیرې سړی په وخت د ذبح کې پوره بسم الله الرحمن الرحیم ووائي نه کار دئ او واجبه ده د مخه تر الحمد لله تر شروع په هره رکعت کې۔ لکن صحیح دا ده چه په دغه ځائ کې سنت ده لکه په عامو کتابونو کې د فقهې چه راغلي دي۔ او سنت ده بسم الله شریفه پوره ویل په شروع کې د اودسه۔ او سنت ده په ابتداء کې د خوړلو د یو شي۔ او سنت ده په وخت کې د شروع د هر ښه کار۔ لکه د قرآن تلاوت۔ د علوم دینیه د درس په وخت کې۔ د دینې کتابونو د تصنیف په وخت کې۔ او بسم الله ویل مباح ده په وخت کې د ولاړې یا ناستي یا تګ یا پریوتلو۔ او بسم الله ویل مکروه دي په وخت کې د دې چه عورت ئې لڅ وي۔ او په هر داسې ځائ کې۔ او په اول کې د سورة براءة۔ او په وخت کې د چلم څکولو یا نسوار کولو او یا بوئ ناکه شي خوړلو په وخت کې لکه پیاز وغیره۔ او بسم الله ویل حرام دي د حرام شي د استعمال په وخت کې۔ لکه چه شراب څښي یا د سود د ګټې مال خوري۔ یا زنا کوي۔ بلکه په فتاوائ بزازیه کې راغلي دي چه کافر کیږي هغه سړی په حرام قطعي بسم الله ووائي۔ او دغه رنګه حرام ده جنب و حائضې ته کې قصد د ذکر نه وو۔

او الحمد لله ویل واجب دي په لمانځه کې په دوو اولو رکعتونو کې۔ او سنت دی د خطبې په شروع کې۔ او سنت ده د مخه تر دعا۔ او سنت ده پس له خوړلو۔ او بې له کوم سببه الحمد لله مباح ده بلکه موجب د ثواب ده۔ او الحمد لله ویل مکروه دي په مردار و ځایو کې۔ او الحمد لله ویل حرام دی د حرام شي تر خوړلو وروسته۔ بلکه بزازیه وائي چه په کفر کې اختلاف دئ۔ دا ټولې مسئلې در د مختار د اول جلد په مخ کې ذکر دي۔

# ښهانه فائده

درویش محمد عبیدالله قندهاري ایوبي نقشبندي وائي چه بې ځایه به نه وي که په مناسبت د الحمد لله رب العلمین د دې ټوله سورة قرآن بعضی احوال او خواص بیان کړم د پاره د هغو ورو نو او خوندو چه د عربې کتابونو سره علاقه نه لري۔ بلکه د پاره

د هغو طالبانو یا نورو ملایانو چه نادر یا غټ کتابونه ورسره نه وی. او د ایشو لو طاقت ئې هم نه لری. او دا ټول د شفقت د لارې څخه.

پوهه سطلب! چه د دې مبارک سورة دیرش نومونه دی!

(۱) فاتحة الکتاب - یعنی اول د قرآن. دا نوم د رسول کریم صلی الله علیه وسلم څخه په روایت د ابوهریرة رض راغلی دی. وجه ئې دا ده چه د قرآن مبارک اول سورة دی. او بعضی وائی چه دا اول سورة دی چه په لوح محفوظ کی نوشته سوی دی.

(۲) فاتحة القرآن د دې وجه هم دغه ده چه موږ ذکر کړه.

(۳) اُمّ القرآن. یعنی مور او اصل د قرآن. بیضاوی وائی چه د ټول قرآن معانی په د ې سورة کی اجمالاً درج دی. دا نوم هم په روایت صحیح سره ثابت دی.

(۴) اُمّ الکتاب د دې وجه هم هغه ده چه اوس بیان سو.

(۵) اَلقرآن العَظیم. سبب ئې دا دی چه ټول معانی د قرآن شریف په د ې سورة کی سته دا نوم هم مروی دی د علیه الصلوة والسلام څخه.

(۶) اَلسَّبع المثانی - سبع ئې په دې بولی چه اووه آیته دی. او مثانی ئې په دې بولی چه مثانی یا د ثنا څخه جوړ سوی دی. او په دې سورة کی ثنا د خدای پاک ویل سوې ده. او یا مثانی د تثنیه څخه جوړ سوی دی. چه معنی ئې تکرار دی. دا سورة مبارک په لمانځه کی مکرر ویل کیږی. دا نوم قرآنی دی چه خدای پاک فرمائی، وَلَقَدْ اٰتَیْنٰکَ سَبْعًا مِّنَ الْمَثَانِیْ " په تحقیق ما در کړی وتا ته سورة د سبع مثانی.

(۷) الوافیة - سفیان بن عیینة رح وائی چه دا سورة وفا کوی په معانی د قرآن.

(۸) الواقیة - یعنی ساتونکی. او دا سورة مبارک که څوک وائی د ټولو آفاتو امراضو په امان وی.

(۹) سورة الکنز! معنی خزانه. دا سورة هم خزانه د ټولو معناګانو د قرآن پاک ده. او یا په دې سبب ئې کنز بولی چه حضرت سیدنا علی رض وائی چه دا سورة نازل سوی دی د هغو خزانې څخه چه تر عرش مبارک لاندی ده.

(۱۰) اَلکافیة - یعنی کفایت کوونکی. یعنی د قاری د پاره بس ده.

(۱۱) اَلاَساس! یعنی تاداؤ. وجه ئې دا ده چه اساس تر ټوله بناء مخکی او ډیر محکم وی. دغه رنګه دا سورة د قرآن تر ټولو سورتو د مخه دی او محکم دی.

(۱۲) سورة النور! ولی چه ویونکی ته نور باطنی ور په برخه کوی.

(۱۳) سورة الحَمد! د دې نام وجه ښکاره ده.

(۱۴) سورة الشکر! ولې چه حمد د خدای پاک پر نعمت شکر دی. او بل دا چه کوم سړی چه د خدای پاک کوم نعمت پیدا کړی وائي اَلْحَمْدُ لِلّٰه.

(۱۵) سورة الحمد الاولیٰ! ولې چه د خدای پاک حمد په ډیرو سورتونو کې راغلی دی لیکن اَلْحَمْدُ لِلّٰه شریف تر ټولو اول سورة دی چه حمد په کښې دی.

(۱۶) سورة الحمد القصوی! یعنی په نهایت او اعلیٰ درجه حمد.

(۱۷) سورة الرقیة! یعنی دَم او تعویذ. ولې چه په حدیث شریف کې چه صحیح حدیث دی راغلی دی چه دا سورة شفاء د هر مرض دی. او دا په تجربه اهل الله ته ثابت ده لیکن بعضی شرطونه لري او مخصوص عدد لري. د روحانیو پلو د پاره چه د هغه عدد او هغو شرطونو اظهار په دې عمومي کتاب کې مناسب نه دی ځکه چه دا اسرار و څخه دی.

(۱۸) سورة الشفاء! وجه ئې دا ده چه جابر رض روایت کړی دی چه آنحضرت صلی الله علیه وسلم و ویل. فَاتِحَةُ الْکِتَابِ شِفَاءٌ مِّنْ کُلِّ شَیْءٍ. سورة فاتحه شفاء ده د هر شي یعنی د هر مرض. اِلَّا السَّامُ وَالسَّامُ الْمَوْتُ. مګر نه سام او سام مرګ دی.

(۱۹) سورة الشافیة! له دې سببه ئې بولې چه دغه سورة مبارک شفاء بخښونکې دی د هر مرض. قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صلی الله عَلَیْهِ وَسَلَّمَ. ویلی دی آنحضرت صلعم اِنَّ فِيْ سُوْرَةِ الْفَاتِحَةِ. په تحقیق په سورة فاتحه کې. سَبْعِیْنَ شِفَاءً. اویا شفاء دی.

(۲۰) سورة الصلوٰة! ولې چه په لمانځه کې ویل د دې سورة واجب دی په مذهب د امام ابو حنیفه او فرض دی په نزد د امام شافعی.

(۲۱) سورة الدعاء! ولې چه اهدنا الصراط المستقیم بیا تر پایه پورې دعا او غوښتنه ده.

(۲۲) سورة الطلب! ولې چه طلب د هدایت پکښې دی.

(۲۳) سورة السوال! ولې چه سوالونه پکښې کی ستر درب جل وعلا شانه څخه.

(۲۴) تعلیم المسئلة! یعنی ښوونه د طریقې د سوال ولې چه په دې سورة کې موږ ته خدای پاک لاره ښوونه کړې ده چه هر وخت چه د خدای پاک څخه شی غواړې او لے حمد و ثنا د خدای پاک و وایاست او بیا شی ځنې و غواړئ.

(۲۵) سورة المناجات! یعنی د خدای پاک سره راز ویل. ولې چه په حدیث شریف کې راغلی دی چه لمونځ ګذاره سړی د خدای پاک سره راز وائي.

(۲۶) سورة التفویض! یعنی و خدای ته د کار سپارل. او موږ هم په دې سورة مبارک کې وایو وَاِیَّاكَ نَسْتَعِیْنُ، او خاص د تا څخه کومک غواړو وای خدایه.

(۲۷) سورة المكافات: يعنی وچاته عوض ورکول. په حديث مبارک کې راغلی دی چه د عربو د مکې شريفې يعنې د کافرانو او د قافلې په سينه جوش اوخروش سره مکې شريف ته راغلې او مسلمانان دغه وخت په مسکنت او تنگدستۍ کې وه نو د آنحضرت صلعم په زړه کې لږ ارمان او افسوس پيدا شو. خدای پاک دا آيت نازل کړی و. لَقَدْ اٰتَيْنٰكَ سَبْعًا مِّنَ الْمَثَانِيْ، په تحقيق ما درته درکړې دی او دا آيت سورة مثانی. په عوض دا دی قافلو د کفارو کې.

(۲۸) اَفضل سورة القرآن: يعنی بهترين د ټولو سورتو د قرآن.

(۲۹) اخير سورة القرآن: يعنی دا وستنی سورة تر ټولو سورتو د قرآن ولې چه الحمد لله شريف دوه واره نازل شوې ده يو وار په مکه شريفه کې او بيا په مدينه کې په يو وار. يعنی کامل سورة.

(۳۰) اعظم سورة فی القرآن: يعنی هغه لوی سورة په قرآن شريف کې. او لوئې والی د دې سورة په اعتبار د مرتبې دی نه په حساب د آياتو. په يو حديث مبارک کې چه روايت ئې امام بخاری، مسلم، ابوداؤد، ترمذی، ابن ماجة، نسائی، امام احمد، ابن جرير، بيهقی حاکم کړې د ابوسعيد رض. قَالَ بَعَثَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وويل ابوسعيد رض چه واستولو موږ آنحضرت. فِيْ سَرِيَّةٍ ثَلَاثِيْنَ رَاكِبًا. په يو کوچنی لښکر کې چه دېرش سپاره وو. فَنَزَلْنَا بِقَوْمٍ مِّنَ الْعَرَبِ. موږ واړه ولې پر يو قوم د عربو. يعنی پر کافرانو. فَسَاَلْنَاهُمْ اَنْ يُّضِيْفُوْنَا. سوال وکړو موږ د دغه قوم نه چه موږ ته ميلمستيا راکړي. يعنی د خوراک شی راکړي. فَاَبَوْا فَلُدِغَ سَيِّدُهُمْ. او دوی منع راته وکړه پس په هغه شپه د دوی رئيس لړم وخوړلو. فَاَتَوْنَا فَقَالُوْا هَلْ فِيْكُمْ اَحَدٌ يَّرْقِيْ مِنَ الْعَقْرَبِ. نو دوی موږ ته راغلل او وې ويل چه آيا ستاسو په تا سو کې څوک چه د لړم دم کوي. فَقُلْتُ نَعَمْ اَنَا. ابوسعيد رض وائي ما ورته وويل چه هو شته زه يم. وَلٰكِنْ لَا اَفْعَلُ حَتّٰى تُعْطُوْنَا شَيْئًا. مگر زه دم نه پرکوم ترڅو چه راته نه کړئ تاسی موږ ته يو شی. يعنی په اصطلاح شکرانه. قَالُوْا نُعْطِيْكُمْ ثَلَاثِيْنَ شَاةً. دوی وويل چه موږ درکوو تاسی ته دېرش پسونه. قَالَ فَقَرَاْتُ عَلَيْهِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ سَبْعَ مَرَّاتٍ. ابوسعيد رض وائي ما پر وويل پر هغه لړم والا باندی اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ يعنی ټوله سورة اووه واره او هغه سړی د ستی جوړ شو. فَلَمَّا قَبَضْنَا الْغَنَمَ. څه وخت چه موږ د دوی څخه واخستل هغه دېرش پسونه. عَرَضَ فِيْ اَنْفُسِنَا مِنْهَا. راوګرځېده زه موږ په زړو کی د دغه پسو اخستلو سببه يو وسوسه. يعنی په دې سبب چه پر قرآن شريف باندی مزدوري اخستل دی او حلال دي او که نه وي. فَكَفَفْنَا حَتّٰى اَتَيْنَا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

نوموږ هغوی پسو د ویشلو یا حلالولو او خوړلو څخه منع وکړه. یعني د علیه السلام تر مشورې
پورې. تر څو چه موږ راغلو نبي علیه السّلام ته. فَذَكَرْنَا لَهٗ ذَالِكَ. نو موږ ذکر کړه دا
ته یعني مبارک علیه السلام ته هغه قصه یعني د لړم او شکرانې. فَقَالَ مِنْ اَيْنَ عَلِمْتَ اِنَّهَا
رُقْيَةٌ. پس آنحضرت صلعم وفرمائل ته د کوم ځایه خبر وې چه دا سورة دم دی. اَقْسِمُوْهَا
وَاضْرِبُوْا لِيْ بِسَهْمٍ. سره وویشئ هغه پسونه او ما ته هم برخه پکښې راکړئ.

فائده! د دې حدیث شریف څخه په ښکاره د دې معلومه سوه چه پر دم او تعویذ
شکرانه او مزدوري اخستل روا دی. که څه د قرآن په آیا تو دم وکړي.

په دې مسئله کی وهابیان سخت منکر دی. دوی وائي چه هغه قوم خو کافران وه د کافر
مال خو حلال دی لکن دوی نه پوهیږی چه د کافر مال خو په غنیمت کی حلال دی. چه هغه د
جهاد شرعی نتیجه ده. او په چل ول یا په حرام طریقه خود کافر مال نه دی حلال. نو که د
قرآن پر ویلو مزدوری اخستل حرام وای نو ولې آنحضرت صلعم د دې حرام مال د ویشلو
او خپله هم د برخې اخستلو امر کاوه. او سره د دې چه دا مزدوری هم مشروطه وه. د
هبه په توګه هم نه وه. او بل دا چه وهابیان وائي چه اخستل د مزدوری پر کتاب الله د
یهودیانو کار وو. لکه خدای پاک چه په شان کی د دوی وائي " وَيَشْتَرُوْنَ بِهٖ ثَمَنًا قَلِيْلًا،
او رانیسی یهودیان یعني د دوی ملایان په عوض کی د کتاب الله یعني توراة شریف
ثمن یعني قیمت لږ.

جواب! ملایانو د یهودیانو خو پر تبدیل د توراة د آیاتو لکه بدلول د آیة د رجم یا
بدلول د اوصافو د آنحضرت صلی الله علیه وسلم باندی بیه او رشوت اخستی نه پر دم کولو.
دا مسئله. یعني شکرانه. د قرآن پر تعلیم مزدوری اخستل یا پر اذان کولو یا پر امامت
کولو مزدوری اخستل یا پر تعلیم د دیني علومو مزدوری اخستل په مشروطه ډول
ډیره مختلف فیها مسئله ده. قدماء د حنیفیانو " دا تول ناروا او حرام بولی. او متاخرینو
تول فتوی صادره کړې ده چه دا تول روا دی. دلائل د متاخرینو په شرح وقایه د مختار
او نورو فتاوی د فقهی حنیفی کی ذکر کړه سوی دی. دا ځای د تفصیل نه دی. ولې چه دا مسئله
دلته په تبع کی د فضائلو د سورة فاتحه ما اشاره وکړه د پاره د ګراننو وطنوالو نو او بنځو.
او یوه دا خبره ده چه د غیب ګوئ په شکرانه غواړی لکه بعضی تعویذ کران. هغه
یقیناً حرامه ده په اتفاق ولې چه علم غیب خاصه د خدای پاک ده.
نو دا تعویذ کی غیب ګوئ. پتی معلومونکی نه موږ وایو چه تر څنګه د غیبو او پتو

شیانو او حالاتو د علم دعوه کوي - نو د دې آیة څخه د قرآن کریم منکر دي - قُلْ لَا يَعْلَمُ الْغَيْبَ إِلَّا اللّٰهُ - ووایه ای محمده چه علم نه لري په غیب او پټ شی باندې خدایه بل څوک.

او بل آیة کی داسی راغلی دی - وَلَوْ كُنْتُ أَعْلَمُ الْغَيْبَ لَاسْتَكْثَرْتُ مِنَ الْخَيْرِ وَمَا مَسَّنِيَ مِنْ سُوءٍ - خدای پاک د آنحضرت صلعم د خوا وائی که چیری زه خبر وای په غیب هم آئینه ما به ډیر جمع کړی وای له خیره څخه او ماته به نه وای رسیدلی کوم غم او تکلیف.

نو د دې آیة مبارکه څخه دا معلومه سوه چه آنحضرت صلعم وخان ته علم غیب نه وایه - ولی چه لفظ د "لو" په عربی شربه کی په د غه دلالت کوی نکه چه په عربی خبر دار خلک په پوهیږی.

نو تعویذ کی کوډگری ته وخان ته څرنګه علم غیب وائی - ایا ته خپله رتبه تر علیه السلام پوره ته بولې - او که ته وائې چه ما ته خو پیریان شیطانان د پټو شیانو حالات را معلوموی نو زه وایم پس ته کاهن یې نکه د عربو د جاهلیت د وخت کاهیان - چه د هغوی باره کی آنحضرت صلعم داسی فیصله کړې ده.

"مَنْ أَتَى كَاهِنًا - که څوک ورځي غیب گوی ته - فَصَدَّقَهُ بِمَا قَالَ - پس باور او یقین ئې وکړی په هغه خبره چه کاهن ور ته وکړه - فَقَدْ كَفَرَ بِمَا أُنْزِلَ عَلَى مُحَمَّدٍ - پس کافر سو هغه سړی په هغه قرآن سره چه نازل کړه سوی دی پر محمد.

او بل دا چه کوډگره جادوگره - په ظاهر ملا په حقیقت کی شیطانه - ته خو نو عقیده لری چه پیریانان په پټو خبر دی خو دا هم کفر دی - او که ته وائی چه نه زه د علم غیب دعوه کوم او نه هم پیریانان ما ته خبر راوړی - بلکه زه د خولې په صفائی او په نوره وقر انو خلک خطا باسم او پیسې ځنې پرې کوم - نو زه وایم چه ته حرام خوره، غل او غدار یې - باید توبه وکاږې ځان او عیال د حرامو څخه وساتې - مرګ قبر او آخرت دی په عنکی دی.

درویش محمد عبیدالله کندهاری ایوبی وائی چه اکثر د دې غدارې او جادوگرې سبب ښځې او ناپوه د دین ناخبره انسانان دی - دوی چه د غه غدار غیب گوی پټې معلوموونکی ته ورسی ور ته وائی چه تر په کتاب کی وګوره چه په ما څه سوی دی - نو د غه کوډگر ور ته وائی چه یوه لنډه یا جګه یا توره یا سپینه ښځه د په تا ئې تعویذونه کړی دی - د هغې ښځې یا ئې په قریبا نو کی نژدې یا لیری کی د غسی رنګ ښځه وه نو وائی را ښتیا دی و ویل د غسی ښځه زما په قریبا نو یا همسایګانو کی سته - بیا نو هغه ښځه وجادوګر غدار ته وائی چه او س نو چاره را وکړه - غدار ملا ور ته وائی چه ته خپل نوم او د مور نوم را او سپیه او د هغې بلې ښځې نوم هم - نو زه ما بنام خپل پیریانان پسی

سوم هغه په تعویذونو او ورځ او ته صباسره د بنځې شکرانې (۱۰۰ یا ۲۰۰ مثلاً) راسره
بنځه کورته ولاړه سي. حقیقت خو داوي چه د هغې بنځې یا تبه وې یا ئې پر سر درد وې
یا به ناجوړې لړې د هغې ناجوړې سره نظر سي او د جادوگر غدار ملا پر قول ئې
باور سي کورته ولاړه سي. هغه انداره ورځي چه غدار ملا ورته ویلي وې برابرې کړي
د هرې خواڅه وي. صبا سحار چه راغله. غدار ملا د هغه لا ډیر تعویذونه او دائرې
په خاورو کي بنځې کړي وي. یوه یا دوې دائرې د هغو دائرو څخه راوکاږي او هغه نومان
چه بنځه ورسره ولي وه په یوه خام قلم پکښي نوشته کړي سحار چه بنځه راسي هغه پر
زړو تکرانو کي پیچلي په خاورو لړلي تعویذونه ور کړي. او ورته و وائي چه پر یوبل ملا
وکوره. ستا او ستاد مور نومان پکښي نوشته دي. بنځه خوشحاله سي. چي
د ناجوړې څخه خلاصه سوم. غدار ملا په مینه مینه مقرره شکرانه خپله واخلي. کورته
چه بنځه راسي هغه داوي هغه ئې ناجوړې وي.

د غدار نو یوه بله عجیبه نقشه او د ځان بزرګ ثابتول دا ده! دوې سحار تر غرمې
پوري په خپل ځای کي ناست وي. بنځې او نر ورته راځي صرف نومان نوشته کوي وائي سحار
راسئ هغه تعویذونه چه په تاسي سوي دي درکړم. ماپښین ډي کار نه کوي. بلکه هغه
ځای ته تعویذونه چه د ده لا پخوا په زړو ورستو تکرانو کي بنغ کړي وي راوکاږي او په
یوه تعویذ ته کي د یوه چا نوم او بل تعویذ ته کي د بلې بنځې نوم په خام قلم نوشته کړي وي.
ماپښین پسي راسي د هر چا کور ته چه نژدې هدیره یا یوبل خرابه ځای یا لیرې او
نژدې کوڅه یا باغ وي. هغه تعویذونه هلته تر مازدیگر پورې بنغ کړي سحار چه د
نورو خلکو د هغه هغه دیر وي بنځې او نر راسي ورځ یوه ته وائي چه شکرانه راکړه ستاد
تعویذ ځای به در وښیم ورسره په خپله ئې وکاږه. شکرانه چه ورکړي وائي ورسره په فلاني
هدیره کي د فلاني قبر تر څنګ یوه ډبره پرته ده هغه لیرې کړه او هغه ځای غار کړه په فلاني
رنګ تکرانو کي ستا تعویذ دي راوباسي کاږه. هغه چه ورسي هم هغسي وي. بلاته بیا
بل ځای مه ور ښيي. دیر ورځ خلک چه خلاص کړي بیا نوي کسان نوشته کوي. نورو خلکو
خصوصاً د ښځو دا عقیده سي چه فلانی ملا عجیبه بزرګ دی. خلک ئې لاسونه او پښې ورته مچوي.

درویش محمد عبید الله وائي. چه دا کاروبار په افغانستان کي ډیر کم وو. بلکه
تخمیناً نه وو. مګر په پاکستان کي د ډیر پخوا څخه دا کاروبار جاري وو. څه وخت چه په
افغانستان کي انقلاب راغی. او خلکو پاکستان ته هجرت وکړي. نو نه موږ په نامه ملایان

یعنی چه د شروط الصلوٰة پر وینائی قدرت نه دي لودئ. په دې ټکی او غدارئ او جادو کړي اخته سول. او د پیسو د جمع کولو د پاره ئي اسلام ته شا کړه. او د خلکو په خطا ایستو ئي لاس پوري کړئ. او بعضي زمونږ د غه ملایانو د اسي ترقي وکړه چه په غدارئ کې پاکستاني غداران ورته حیران دي د دوئ نولخستل ئي مناسب نه دي. اَللّٰهُمَّ اَعِذْنَا مِنْ مِّثْلِ صَنِيعِ هٰؤُلَاءِ الْغَادِرِيْنَ.

افسوس بیرته د سورة فاتحه پر لور!

درویش باگناه محمد عبید الله نقشبندی قندهاری سلیمانخیلی ایوبي وائی چه خواصي او فائدې د دې سورة مبارک بې حسابه دي او ډیرې ډیرې دي. که هغه فائدې چه په کتابو کې زما عاجزه کم علمه ته معلومي دي را وښکم نو ټول هغه کتاب به تخمیناً ځني جوړ سي. درویش وائی چه اولین شرط د نفعي اخستلو په دې سورة مبارک بنه اعتقاد او باور دئ.

دوهم شرط ئي پاکی د بدن ده.

دریم شرط ئي پاکی د ځائ دویلو ده.

څلورم اجازه د یو عامل سړي څخه اخستل.

پنځم بسم الله په وصل د الحمد لله سره ویل یعنی داسي. بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ.

شپږم. په ما بین کې د عدد پوره کولو د چا سره خبري نه کول.

اووم. مخامخ و قبله ته کښینستل.

اتم. د گناه په کار کي نه ویل.

نهم. د ناپوهانو څخه اسرار پټول.

لسم. همیشه توبه پر کول.

فقیر وائی چه زه به بعض ضروري فائدې وکړانو وروسته او خو ندوته بیان کړم. په فتاوٰی صوفیه کې په نقل د اسرار مخزونه منا راغلی دي چه یو وخت د ملتان په بنار کې سخته وُبا او طاعون پیدا سو. نو شیخ تمیمیؒ چه د هغه وخت یو بزرګوار شخصیت و و خپل مریدان ئي امر کړل چه تاسي د طاعون پر مریض باندي (۳) یا (۷) واره الحمد لله په وصل د بسم الله ووایاست او پر مریض ئي پوه کوئ. هغه وو چه خدائ پاک به هغه مریض ته شفاورکړه. او علاوه پر شفاء هغه وبا هم خدائ په لږ موده کي رفع کړل. منا

که څوک همیشه توبه وکړي پر قرائت د سورة فاتحې په ما بین کي د سنتو د سحار او فرض

(۱۳) واره که مسکین وی خدای پاک بې غني کړي. او که پوروړی وی خدای پاک به ئې پور اداء کړي. او که ناجوړی وی په هره ناجوړۍ چه اخته وی خدای پاک بې تر رجوړ کړي. او که ضعیف وی خدای پاک به ئې قوی کړي او که بې عزته وي خدای پاک به ئې لوړه عزت او مقام ته ورسوي. او که د یو منصب څخه لیری سوی وی خدای پاک به ئې بیرته وهغه منصب یا تر هغه بالاته ورسوي. او که ښځه یا نر د نکاح خواهش لری خدای پاک به د هغه د طبیعت سره موافق او برابر میړه یا ماینه ورپه برخه کړي. او که یو څوک عیال نه لري خدای پاک به عیال ورکړي که څه هم د کلو وچه ښځه وي. او که د دښمن څخه بیریږي هغه به خدای پاک پر مهربانه کړي یا ئې وړک کړي. او دی به ځنې خلاص سی. او که ئې تجارت نه چلیږي او که کته نه کوي هغه تجارت به ئې خدای وچلوي. او پر هر مریض چه په فاتحه شریفه سره دم وکړي خدای پاک به ئې جوړ کړي. کذافي اسرار الفاتحة.

او کتاب درة الافاق ص۱۱ لیکلي دي که څوک همیشه توب وکړي پر ویناد الحمد لله سره د بسم الله پسله هر لمانځه او وړه واړه خدای پاک به ئې خلاصي کړي پر هغه باندې د دنیا او آخرت د خیر دروازې. او خدای پاک به د ده د دین او د دنیا مهمات ور خلاص کړي. او د امن او د خوشحالۍ ژوند د ښه حلال رزق سره به خدای پاک ور کړي. والله الموفق. منه

که چاته منظوره وی چه زما هر مشکل دې ژر آسانه حل سی او د هری بلا څخه دې زه په امن کې یم او د هر چا په زړه کې زما هیبت او دبدبه ولوړی نو دی په حساب د دې سورة د حروفو چه (۱۲۵) دی ورو ستر د سهار تر لمانځه همیشه دا سورة مبارکه ولولي.

او د الطریقه هم ډیره ښه او محموده ده او د ټولو کامیابیو سبب ده چه دا سورة مبارک د سهار تر لمانځه ورو سته دیرش ۳۰ واره او د ماپښین تر لمانځه ورو سته پنځه ویشت ۲۵ واره او د ماز دیګر تر لمانځه ورو سته شل ۲۰ واره او د ماښام تر لمانځه ورو سته پنځلس ۱۵ واره او د ماخستن تر لمانځه ورو سته لس واره و وایئ چه مجموع سل واره کیږي.

خبرتیا! هغه لس شرطه چه ذکر سول مه هیروئ. موږ هغه شرطونه حکمه تر ټولو د مخه ذکر کړل.

سوال! یو د هغه لس شرطو څخه د الحمد لله اجازه اخستل وه د عامل څخه. موږ عامل د دې سورة چیری پیدا کړو. او موږ ئې څه پیش نو چه دا

سړي په رښتيا عامل دئ او که نه. هر سړي به دعوه د عمليت کوي او موږ ته به
پرځای د نفعې ضرر په برخه بېي ولې چه هغه سړي به په حقيقت کې عامل نه وي.

**جواب!** دا سوال پرځای دئ. فقير وائي چه زه د دې سورة حقيقتاً عامل يم
تخميناً د پنځو سوو کلو څخه. او ما د دې سورة اجازه وخپلو زامنو ته ورکړې ده.
نو بناءً على هذا که زه ژوندی وم تو ما پورې راسئ. او که زه مړ وم
نو ما د زامنو څخه اجازه حاصله کړئ. او که چيرې نه وها تر او نه زما وڼه امنو ته
رسيدل آسان و لکه دليرې و ملنو خلک نو داسې ترتيب دې وکړې. چه يوه
هفته پورې پسې د ما بنام تر لماځه وروستنه دې دوه رکعته نفل کوي او ثواب
دې و فقير ته وبخښي او تر نفلو وروستنه دې د مغفرت خواست د فقير په حق
کې په دربار کې د رب العزت کوي. و هغه سړي ته زما يوره اجازه ده.

**سوال!** عامل د دې سورة کوم سړي کيدای سي.

**جواب!** هغه سړي عامل دی چه پر يوه چهل خانه کې. يعنې په خلوت بنت ورځې
اعتکاف سره دروني ي يو لک پنځه ويشت زره واره و وائي (۱۲۵۰۰۰). او وروسته تر هغه
ئې هره ورځ يا شپه بلا ناغه تنل واره و وائي. دا دئ د الحمد لله د عامل حقيقت.

**سوال!** د غسې عمل کول هم اجازه غواړي؟

**جواب!** هو غواړئ. او دا اجازې هم هغه طريقه ده چه اوس اوس ما درته بيان کړل.

**سوال!** ايا ستا زامنو هم د عامل توب درجه پيدا کړې ده او که نه.

**جواب!** د پلار کته د اهل نوئ سره شريکه ده

**سوال!** ته چه عامل د الحمد لله خان بولې آيا ته د دښمنان بد خواهان نه لرې او که ئې لرې؟

**جواب!** حسد د ملايانو يو طبعي کار دئ مګر په برکت د الحمد لله شريف د ټولو
د ضرر او مخالف مقابلې څخه خدای پاک زه او زما عيال ساتلي يو تر اوسه پورې. د
ملايانو حسد د فقير سره يا خو په تعصب قومي دی او يا په تعصب علمي دئ. او
تعصب داسې يو آفت دئ لکه شاعر چه وائي ـ

چشم بد اندیش که بر کنده باد — عیب نماید هنرش در نظر
اگر بهر سر موئی دو صد هنر باشد — هنر بکار نیاید که بخت بد باشد
[illegible] — [illegible]

قدوس وائي!

# وَالْعَاقِبَةُ لِلْمُتَّقِينَ

او ثواب د اخرت (چه جنتونه او نعمتونه دي) خاص د پاره د پرهېزګارانو دي.

ځوک چه ترجمه کوي په جزاء د آخرت هغه ترجمه غلطه ده. ولې چه جزاء د آخرت ثواب وعذاب دواړو ته وائي. نو هغه په متقين پورې ولې خاصه ده.

پوهه شه! چه متقين جمع د متقي ده. متقي په عربي ژبه ځان ساتونکي د عذاب څخه که هم د دنيا عذاب وي. او په شرعه شريفه کې متقي هغه ځوک دي چه د قيامت د عذابه چه دوزخ دی ځان ساتي.

وائي رکه! چه تقوی درې قسمه ده! اول دابدي او هميشه عذابه او د دوزخه څخه د ځان ساتنه. دغه قسم تقوی په صرف ايمان سره پيدا کيږي. يعنې تصديق او باور او يقين کول په ټولو هغو شيانو چه د خوا څخه د خدای پيغمبر عليه الصلوة والسلام موږ ته راوړلي دي. او په خوله اوښه به لا اله الا الله محمد رسول الله ويل. نو حکه قرآن کريم ددې کلمې طيبې ته کلمة التقوی ويلې ده.

دوهم قسم تقوی هغه ده چه عام وخاص ورته تقوی وائي. هغه د عذابه د آخرت يکلخته او بالکل ځان ساتنه ده. چه هغه تقوی په دې سره پيدا کيږي چه ټول اوامر د خدای پاک او د رسول د ده پرځای کړي. يعنې عمل په وکړي او د ټولو هغه کارو څخه چه خدای او رسول منع کړې وي ځان وساتي. او که يو وخت ګناه څنې صادره شي نو سمدستي توبه ده پر هغه ګناه د صدق او اخلاص توبه وکاږي يعنې د هغې ګناه وخدای ته عذر وړاندې او بخښنه وغواړي. او د آينده د پاره ټينګ قصد وکړي چه بيا به دا کار نه کوم مطلب دا چه ترمرګه پورې پر هغه ګناه ځان نه پرېږدي. ورو وره او خوره! په توبه کې تلوار په کار دی داسې وايه سوف اتوب چه ژر به دې چه نه به وروسته توبه وکاږم ولې چه د مرګ نېټه نه ده معلومه. که ته ځوان يې ځوان هم مري. يو شاعر وائي ـ

توبه کن امروز تو هرگز مگو فردا کنم . شايد بميري صبحدم فردا نيابي در شمير

درېيم قسم تقوی! د خواصو بندګانو ده يعنې د کاملو اولياء الله يعنې د خدای پاک د دوستانو هغه دا ده چه د ټول ما سوی الله څخه که څه مباح شيان وي پرهيز وکړي. په دې معنی چه په زړه کې يو محبت الهي وي د بل شي محبت قلبي نه لري. دا معنی نه ده چه خوراک او څښل او نکاح او کالي نه کوي او د چا سره خبرې نه کوي. ولې چه په دې قسم شي وندا امکان نه لري. مطلب دا چه د خدای رضا او د ده د حبيب رضا ئي مقصد وي نه نور مخلوق. که مقابله راسي نو د خدای او د رسول راضي کولو ته غاړه اېږدي وباس.

# وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ مُحَمَّدٍ وَّاٰلِهٖ وَاَصْحَابِهٖ اَجْمَعِيْنَ

او رحمت د خدای او ساتنه د آفاتو څخه دی وی پر رااستولی سوی د خدای چه محمد دی او ددہ پر اهل بیت یعنی ددہ مبارک د کور بندګان ـ او پر هغو چا چه د رسول الله ﷺ نعمت د صحبت او مجلس ورته حاصل سوی وی پر هغو ټولو

**پوښتنه!** چه صلوة پر لغت کی دعاته وائی او په فقهه شریفه کی لاغځه ته وائی ـ او د درود ویلو په ځای کی د خدای پاک د خوا رحمت او د بندګانو د خوا طلب د رحمت ته وائی ـ

**سوال!** طلب د رحمت پر آنحضرت صلی الله علیه وسلم څه معنی لری ـ ولی چه پر آنحضرت صلعم د خدای رحمت سوی دی ـ

**جواب!** رحمت د رب جل وعلی هیڅ پای او نهایت نه لری ـ نو بندګان طلب د زیادة د رحمت الٰهی کوی پر آنحضرت صلعم ـ

او سلام دعا د سلامتیا په د نیا و آخرت کی د پاره د آنحضرت صلعم ـ چه یو د سلامتیا څخه د اهم دی په د نیاکی چه دین د آنحضرت بر قرار وی ـ او ساتونکی د دین محمدی بر یا لیان وی ـ

**سوال!** څه سبب دی مصنفان پخپلو کتابو کی تر حمد وروسته درود وائی؟

**جواب!** په صحیح حدیث کی راغلی دی چه آنحضرت صلعم فرمایلی دی که څوک درود وائی پر ما په یو کتاب کی ملائکه به تر هغو پوری چه زما نوم په دغه کتاب کی وی هغه بنده ته دعا د مغفرت کوی

**مسئله!** درود ویل په عمر کی یو وار فرض دی په قرار د امر الٰهی " یٰاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا صَلُّوْا عَلَیْهِ وَسَلِّمُوْا تَسْلِیْمًا " ترجمه! ای هغه کسانو چه ایمان مو راوړی دی درود و وایاست پر آنحضرت صلعم او دعا د سلامتیا ورته وکړئ ـ او بیس له هغه هر وخت چه نوم د رسول الله صلی الله علیه وسلم ذکر سی ـ بعضی فقهاء وائی چه درود ویل سنت دی ـ او که مکرر ذکر سی نوم ددہ مبارک په تداخل سره یو وار درود کافی دی ـ لکن مختار او فتوی پر دې ده چه د هر وار نام سره د آنحضرت صلعم درود ویل واجب دی او تداخل پکښی نسته ـ او بیله ذکر د نام ددہ مبارک درود ویل مستحب او سبب د ثواب دی ـ په حدیث مبارک کی راغلی دی که چا یو وار پر ما درود وایه خدای پاک پر هغه لس رحمت وکړی ـ او بل دا چی درود ویل سبب د قرب د آنحضرت صلعم دی ورځ د قیامت کی چه په صحیح حدیث کی راغلی دی چه تر ټولو د خلکو ما ته به ورځ د قیامت هغه سړی دی چه پر ما ئی په دنیا کی ډیر درود ویلی وی ـ د رسول معنی! رسول په لغت کی د عربو پیغام وړونکی ـ یا استول کړ سوی ته وائی ـ او په شرع شریفه کی ـ بعضی علماء وائی چه رسول او نبی یو شی دی ـ او بعضی ملایان وائی چه رسول ترنبی

عام دی. ولې چه ملکی تر رسول ویل کیږی او نبی نه وه تر ویل کیږی. لکن صحیح
داده چه رسول هغه انسان دی چه خدای پاک را استولی وی خلکو ته د پاره د تبلیغ
د احکامو خپل او نوی کتاب هم ورسره وی. او نبی هغه انسان دی چه د تبلیغ او رسولو
د حکم د پاره خدای را استولی وی. که نوی کتاب ورسره وی او که نه. نو پر دی مذهب
نبی تر رسول عام دی.

درویش محمد عبید الله قندهاری سلیمانخیلی نقشبندی ایوبی وایی چه دا مذهب د
احادیثو سره برابر دی. ولې په صحیح حدیث کې راغلی دی چه چا پوښتنه وکړه د آنحضرت
صلی الله علیه وسلم څخه چه انبیاء څو دی. مبارک ارشاد وفرمایه چه یو لک څلیرویشت زره [١٢٤٠٠٠]
هغه سره وه. وویل چه رسولان څو دی آنحضرت وویل چه دری سوه او دیارلس. [٣١٣]

سوال! په صحیح حدیث شریف کې راغلی دی چه کتابونه د خدای یو سل او څلور دی. نو
څرنګه یو سل وڅلور پر دری سوه و دیارلس رسیږی. تا خو وویل چه پر رسول کې نوی کتاب شرط دی.

جواب! بعضی د غه کتابونه مکرر نازل سوی دی. لکه سورة فاتحه چه دوه واره نازله
سوې ده. نو په دې ترتیب داغه (١٠٤) کتابونه (٣١٣) واره نازله سوی دی. شرح عقائد وخیالی وګوره.

فائده! اول د نبیانو آدم ع دی او اخیر محمد صلی الله علیه وسلم دی.

مسئله! د انبیاء علیهم السلام د شمیر تعیین دی سره نه کوی ولې چه په حدیثو کې
اختلاف دی. بلکه داسی دی وائی چه زه ماین تولو نبیانو ایمان دئ هر څو چه دی. او یا
دی داسی وائی چه یو لک و څلیرویشت زره زیات وکم پیغمبران منم.

پوهنه! چه دین د محمد علیه الصلوة و السلام ناسخ د تولو دینو دی. بیت

مپندار سعدی که راه صفا
توان رفت جز در پی مصطفی

محمد. د آنحضرت صلی الله علیه وسلم نومان هم ډیر دی. دلائل الخیرات وګوره
آل د علیه السلام څوک وائی چه اهل بیت دی یعنی د کوره انسانان چه امهات المؤمنین
دی یعنی د مسلمانانو میندی چه د آنحضرت صلعم کوره والاوې دی. او د آنحضرت لونړې دی
او خادمان. او بعضی علماء وائی چه آل د علیه السلام نسبی قریبان د علیه السلام دی په شرط
دایمان. یعنی اولاد د علی رض د عقیل ابن طالب. تر ورځی د قیامت پورې. او بعضی علماء پر دې
مذهب دی چه هر تقوی دار مسلمان تر او بنځه د علیه السلام آل دی. لکه په حدیث شریف
کې چه راغلی دی. کُلُّ مُؤمِنٍ تَقِیٍّ فَهُوَ آلِی. هر تقوی دار مسلمان زما آل دی.
او اَصحاب جمع د صاحب ده یعنی ملګری. په شرع شریفه کې صحابی هر هغه مسلمان دی

چه په وخت کې د اسلام نې آنحضرت صلعم لیدلی وې یا نې مجلس وې، سره کړې وې لکه عبد الله
ابن ام مکتوم رض چه په سترګو ړوند وو۔ او بیا په هغه اسلام مړ وې۔ که څه یو ساعت نې
د علیه السلام سره ملاقات کړې وي۔ او بعضې وائي چه کم از کم شپږ میاشتې نې ملاقات
کړې وي۔ او بعضې محدثین وائي چه روایت د حدیث نې هم حفظ کړې وي نو صحابي رض دی۔
ملا علي قاري د مشکوٰة شریف شرح وکوره۔

## درود په باره کې سپیڅلې معلومات

دا لاندې معلومات په حواله د اسرار مخزونة ملا محمد او د روح البیان د دې آیت په تفسیر
کې، إِنَّ اللَّهَ وَمَلَائِكَتَهُ يُصَلُّونَ الآية، معلومات ټول صحیح دې موضوع شي یکېنې نشته۔

پوره سره! چه صلوٰة یعنې درود په قول د روح البیان څلور زره قسمه دی۔ او په بل
روایت کې دوولس زره قسمه دې۔ عارفان او اولیاء، د شرق او غرب هرچا یو درود رابطه
د ځان او د آنحضرت صلی الله علیه وسلم کړځولی دی۔ او د قسم قسم امراضو او آفاتو نې یو درود
په تجربه رسولی دی او قسم قسم فائدې نې ځنې اخستې دي۔ چه د هغو ټولو تفصیل او بیان غټ
کتاب غواړي۔ د لته زه تبعاً د پاره د ګرانو وروڼو او خوندورو څو درودونه راندې کوم۔ شاید
محبان د آنحضرت صلی الله علیه وسلم به ګټه رابطه د آنحضرت صلعم ځنې حاصله کړي۔ اول
د پاره د دفع د ټولو غمو او مصیبتو او د جلب د ټولو ګټو او منافعو په تجربه رسیدلی درود هغه دا دی

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ، اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى سَيِّدِنَا مُحَمَّدٍ وَّعَلٰى آلِ سَيِّدِنَا مُحَمَّدٍ صَلٰوةً تُنْجِيْنَا
بِهَا مِنْ جَمِيْعِ الْأَحْوَالِ وَالْآفَاتِ۔ وَتَقْضِيْ لَنَا بِهَا جَمِيْعَ الْحَاجَاتِ۔ وَتُطَهِّرُنَا بِهَا جَمِيْعِ
السَّيِّئَاتِ۔ وَتَرْفَعُنَا بِهَا أَعْلَى الدَّرَجَاتِ۔ وَتُبَلِّغُنَا بِهَا أَقْصَى الْغَايَاتِ مِنْ جَمِيْعِ
الْخَيْرَاتِ فِي الْحَيَاةِ وَبَعْدَ الْمَمَاتِ، د ورځې کم از کم پنځه واره دې وائي۔

شیخ اکبر محی الدین بن عربي" وائي چه دا درود یو خزانه ده د خزانو څخه د عرش او ډیر
شه تاثیر لري۔ او د غه رنګه امام جزولي او شیخ بوني" د دې درود مبارک په سوو فائدې
بیان کړي دي۔ او صاحب د کتاب الاسرار د دې درود په خواصو کې ډیر بیان کړي دي۔
د حضرت جابر رض څخه روایت دی چه آنحضرت صلعم وفرمایل که چا درود وایه
پر ما هره ورځ سل واره خدائ پاک به پوره کړي د هغه سرې سل کاره۔ او یا د
آخرت او ډیرش په دنیا کې۔ او یو بل روایت د اسې راغلی دی که څوک درود وائي
پر ما هره ورځ پنځه سوه واره مسکین به نه شي ابدًا۔ او د غه رنګه د نبي علیه السلام

څخه روایت دی وائی چه زه حبیب دخدائ یم یعنی دوست - او درود ویونکی پرماندې حبیب دی. که څوک غواړی چه حبیب شی د حبیب - یعنی دخدائ پاک - نو درود دی ویل وائی پر حبیب -

حضرت امام جلال الدین سیوطیؒ وائی چه دا احادیث ټول صحیح دی - او په تحقیق سره ډیر درود ویل پر آنحضرت علیه الصلوة والسلام سبب د ډیر والی د رزق دی او د ډیر والی د برکت دی - او په درود ویلو سره حاجتونه د سره کیږی - او غمونه فکر خرابی وسواس دفع کیږی - امام سیوطیؒ زیاته کړی ده چه دا ټوله خبری په مشاهده او تجربه رسیدلی دی - او درود پر آنحضرت صلی الله علیه وسلم واسطه کول په ټولو کارو او مهما توکی د ټولو علماؤ که مفتی علماء دی که ورور ستنی - بلکه په پیریانو او ملکو کی هم قدیم رواج دی - امام سیوطیؒ په دی باره کی ډیر لوئ تحقیق کړی دی او ډیر داسی او کوتاه حدیثونه ئی روایت کړی دی.

## د درود په باره کی فقهی معلومات

مسئله! په هر درود کی چه لفظ د آل او د اصحاب وی هغه بنه دی په لند ودرودو کی دا درود بهتر دی او بنه دی. " اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰی مُحَمَّدٍ وَّعَلٰی اٰلِ مُحَمَّدٍ وَاَصْحَابِهٖ " رد محتار - شامی -

مسئله: صلوة او سلام دواړه ویل بنه کار دی - او یواځی صلوة بیله سلام مکروه نه دی - او یواځی سلام ئی کفایت کوی - دا مسئله رد محتار راوړی ده -

مسئله! ډیر علماء بلکه ټول اهل سنت پر دی عقیده دی چه درود ویل پر غیر د انبیاء علیهم السلام په مستقل توګه لکه چه وائی علی علیه السلام مکروه تحریمی دی او بعضی علماء وائی مکروه تنزیهی دی - او په تبع د انبیاء علیهم السلام روا دی - لکه چه وائی " وَالصَّلٰوةُ عَلٰی مُحَمَّدٍ وَاَصْحَابِهٖ وَعَلٰی اَبِیْ حَنِیْفَةَ وَاَحْبَابِهٖ " رد - منیح -

مسئله! په کنوز الحقائق شرح کنز الدقائق کی وائی چه بنه دا ده چه د صحابی نوم چه ذکر شی نو " رضی الله عنه " دی ووائی - او که د تابعی نوم ذکر شی نو " رحمه الله " دی ووائی - او که د بل عالم نوم ذکر شی نو " غفرله " دی ووائی - لکن امام نوویؒ وائی چه دعا په رضی الله عنه سره صحابه کرامؓ تابعین - تبع تابعین ته دی کوی او دعا په رحمه الله دی نورو علماؤ ته او دعا د مغفرت دی ټولو امت محمدیہ ته کوی.

سوال! د حضرت علیؓ ته ولی اکثر علماء دا دعا کوی چه " کَرَّمَ اللّٰهُ وَجْهَهٗ "

جواب! په فتاوی حدیثیة کی وائی چونکه حضرت علیؓ په کوچنیوالی مسلمان شوی دی او بت ته

ته ئې هرګز سجده نه ده کړې نو ځکه د ده په باره کې دعا د کرم الله وجهه ویل کیږي.
لکن په فتح الملهم شرح د مسلم کې وائي چه چونکه بعضي بد خواهانو د امیرالمؤمنین علي رض
د مرګ او شهادت څخه وروسته پر منبرو باندې په وخت د نامه اخستلو د علي رض د اسې ویله
سوّد الله وجهه. یعني خدای دې تور کړي د ده مخ. نو اهل حق وحقیقت علماء کرامو په مقابل
کې د هغوی د دښمنانو د علي رض په باب کې دا دعا یعني "کرم الله وجهه" شائع کړه. یعني خدای پاک
دې محترم ولري د ده مخ. دا روایت وائي چه دا وجه ډیره معقوله ده. او په رښتیا هم چه د امیر
المؤمنین دښمنانو امیرانو په باره کې د دې ستر صحابي امیرالمؤمنین علي رض د اسې ناروا او
نابناسته او مخصوص الفاظ استعمالول. وحسابهم علی الله. او د هغو حساب په خدای پورې اړه لري.

مسئله: زموږ اهل سنتو مذهب دا دی چه اصحاب د آنحضرت صلی الله علیه وسلم ټول
عادلان او د امت محمدیه غوره او بهترین کسان وه. هیڅ صحابي ته موږ بد نه وایو. البته وایو
چه افضل د ټول امت ابوبکر الصدیق رض وه. او بیا عمر بن الخطاب رض وه. او بیا عثمان بن عفان رض وه
او بیا علي بن ابي طالب رض وه.

سوال: ذکر یعني "الله" ویل افضل دی. او که درود ویل افضل دی.
جواب: د ملایانو په دې کې اختلاف دی لکن شاه انور شاه د اسې فیصله کړې ده چه د شفاعت
محمدي په امید درود افضل دی. او د پاره د نږدې والي وخدای پاک او د بخښنې د ګناه ذکر افضل دی.

سوال: په اذکارو کې کوم ذکر افضل دی؟
جواب: په حدیث نبوي کې راغلي دي چه "افضل الذکر لا اله الا الله". دا روایت وائي چه دا
کلمه طیبه شپږ لس حرفه ده. نو صوفیه کرام رح په شبانه روز کې شپږ لس سوه واره وهر یدانو ته د ویلو
وصیت کوي. او که د مرید همت لوړ وي نو دې شپږ لس زره واره وائي په شبانه روز کې. او که ئې په اعتکاف
کې ویله شپږ لس لکه واره ئې کل تعداد دی. پر تسل واره باندې کلمه پوره وائي یعني محمد رسول الله
دې هم ورسره وائي. په صلوات شریف کې وائي چه درود شریف ویل بې اجازې د شیخ پیر وانه لري. ولې
چه شیطان په درود کې مداخلت نه سي کولای. په خلاف د نورو اذکارو چه په هغو کې بې اجازې د مرشد کامل شرط ده

سوال: مرشد کامل کوم سړي ته وائي؟
جواب: مرشد کامل هغه څوک دی چه د شریعت مبارک سره په تمامو معناوو برابر وي. او د هغه
رنګه په مباح شهواتو نفسیه کې غرق نه وي. پیري په نسب نه ده. لکه د عوامو چه په اوس وخت کې ګمان دی
چه د چا پلار پیر او ښه سړی وي نو وي ئې هم پیر کامل وي که څه هم فاسق فاجر وي. حتی چه نیږ خریلي ئې لامغه
او نوره په ډیرو د فسق په کارو اخته کسان هم نن ورځ پیران دي خلک ئې مریدي کوي. بعضي څلک د پیرزاده

په پاړکي واني. د بنو غوبنو به بنوره واوري. جواب! هو لکن چه پر بنوره وا مرد اړه نه سي کړه. بيت:

پسر نوح بابدان بنشست — خانهٔ نبوتش گم شد

# قَالَ الشَّيْخُ الْإِمَامُ الْأَجَلُّ الزَّاهِدُ الْعَالِمُ أَبُو الْحُسَيْنِ

ويلي دی شيخ يعني پيشوا او بزرګ. چه خدای پرسته او عالم وو. چه د حسين پلار او نوم ئي

# اَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ جَعْفَرِ الْبَغْدَادِيُّ الْمَعْرُوْفُ بِالْقُدُوْرِيِّ

احمد د محمود زوی دی د جعفر لمسی. چه وطن ئی بغداد دی او مشهور په قدوري دی.

پوه سه! چه د قال تر بيا تر کتاب الطهارة پوري د خودی مصنف د دې کتاب قول نه دی. ولې چه تقوی دار کسان او علماء د خپل ځان تعريف نه کوي. بلکه دا قول د بعضې شاګردانو د مصنف دی دوی د پيش ندکلوی دپاره. شيخ. په لغت کی سپين ږيري ته وائي چه عمر ئي پنځوس کاله تر سره. يا له وی. او په اصطلاح د کتابو هغه چاته وائي چه مقتدا د خلکو وی په هر علم کی چه وی که د حکمت او منطق وی. لکه ابن سينا په حکمت کی يا عبدالقاهر په معانی کی. يا ابن حاجب په نحو کی. يا قدوري په فقه کی او نور داسی ذوات. او اِمَام هغه سړی دی چه خلک د ده په خبرو او کارو پسی اقتداء کوي. لکن نه په بد کارو کی. لکه امام ابو حنيفه په فقه کی او امام رازي په عقائدو کی او امام رباني په تصوف کی او نور دغسی مبارک کسان. او زاهد هغه چاته وائي چه د دنيا په کارو کی بې رغبته وی او د آخرت کارو ته متوجه وی. اَبُوالْحُسَيْن. دا د مصنف اسم کنيت دی.

فائده! نومان درې قسمه دی! اول اسم محض يعني خالص نوم. دا هغه نوم دی چه مور او پلار وسړی ته ايښی وی. لکه احمد. محمد. عبد الله. عبد الرحمن او نور د دغه قسم نومان. دوهم اسم کنيت دی چه په سر کې د اَب يا د اِبن يا د اَخ يا د اُم لفظ وی. لکه ابو الفضل. ابو الخير. ابو عبد الله وغيره. يا ابن عمر ابن عباس ابن الزبير. يا اخ الحرب. اخ الشر وغيره. دريم اسم لقب دی چه د خير يا د شر په نامه مشهور سی. لکه علامه. شيخ. شيطان وغيره. نو د مصنف د دې کتاب اَحْمَد ئي اسم محض وو او ابو الحسين ئي کنيت وو او شيخ او امام ئي لقب وو. بَغْدَاد يو مشهور لوی ښار دی چه پای تخت د عراق دی په اوس وخت کی چه په پخوا زمانو کی د لويو اهل علم او اهل الله مرکز او مدفن وو. لکه امام ابو حنيفه امام محمد امام ابو يوسف. پيران پير عبد القادر الجيلاني امام غزالي او نور نومور کسان. اَلْمَعْرُوف. يعني خلکو کی د دې مصنف د دې کتاب په قدوري مشهور کړی وو. او په دغه نامه خلکو پيژانده. قدور. په بغداد کی د يوې قريې نوم دی او مصنف د هغې قريې وو.

پوه سه! چه اصل کتاب اوس شروع کيږي. ومن الله التوفيق.

# كِتَابُ الطَّهَارَةِ

کتاب دے په بیان کې د پاکۍ

**فائده!** کتاب وهغه مبحث ته وائي چه ډیرې مختلفې مسئلې پکښې ذکر شوې وي. لکه کتاب الطهارة چې د طهارة مختلف اقسام پکښې ذکر شوي دي. یعنې اودس. غسل. تیمم. طهارة د جامې. طهارة د ځائ د لمانځه.

**سوال!** ولې ټول فقهاء د فقهې شریفې د کتابو په اول کې کتاب الطهارة راوړي.

**جواب!** سبب دا دې چه لمونځ پس له ایمانه اول رکن د اسلام دے او بهترین رکن د شریعت محمدي دے لکه چه صحیح حدیث داسې وائي. اَلصَّلٰوةُ عِمَادُ الدِّيْنِ. لمونځ پایه او ستنه د دین ده. مَنْ اَقَامَهَا فَقَدْ اَقَامَ الدِّيْنَ. که چا وساته دا ستنه د دین یعنې لمونځ پس هغه سړي وساتي دین او اسلام. وَمَنْ هَدَمَهَا فَقَدْ هَدَمَ الدِّيْنَ. او که چا ونړله دا ستنه یعنې لمونځ ئې نه کاوه یا ئې په خپلو شرطو برابر ئې نه کاوه پس هغه سړي ونړوله د دین خونه. او نور هم صحیح حدیثونه په باره کې د لمانځه ډیر دي. بلکه په قرآن مبارک کې تقریباً د لمانځه په باب کې ډیر آیتونه وارد او نازل شوي دي.

او س نو لمانځه لره ډیر شرطونه ستهٔ چه بیان به ئې راشي ان شاء الله. او په ټولو شرطو مهم او لوئ شرط ئې طهارت او پاکي ده. ولې چه طهارت په هیڅ عذر سره نه ساقطیږي. متعلم من المسنف

حاصل دا چه لمونځ پر ټولو عباداتو د مخه دې او طهارت پر لمانځه د مخه دې ولې چه شرط پر مشروط د مخه وي. نو نتیجه دا شوه چه طهارة د ټولو کتابو د فقهې شریفې اول کتاب شو. نو مصنف هم د کتاب الطهارة نه شروع وکړه

**پوښتنه!** چه طهارت که څه هم مختلف اقسام لري لکه چه ذکر شوه. لکن چونکه او دس یو عمومي او ډیر پیښید ونکې وظیفه ده نو ځکه مصنف اودس تر ټولو د مخه کړې. نو وائي!

## وَالْاَصْلُ فِيْ وُجُوْبِ الطَّهَارَةِ قَوْلُهٗ تَعَالٰى

او دلیل په واجب والي کې د طهارت یعنې اودس دا قول د خدای تعالی دی

سوال! اودس څو فرض دي او مصنف وجوب و وايه؟

جواب! واجب په معنیٰ د فرض په فقه کې ذکر راغلی دی که څه هم فرض او واجب فرق سره لري چه منکر د فرض کافر دی او منکر د واجب کافر نه دی. مګر د عمل په میدان کې یو شی دی یعنې عمل د دواړو لازم دی که څوک عمل د فرض یا د واجب نه وکړي نو دوزخ دی. دا آیت په سورت د مائده کې دی. او په سنه ۴ یا ۵ کې د هجرت نازل سوی دی.

سوال! په دې آیت کې حکم د فرض ولي دا او دا سره. غسل. تیمم بیان سوی دی. او لمونځ په مکه شریفه کې د معراج په شپه کې فرض سوی دی نو ټول مفسرین د قرآن کریم چه داغسی وائي نو په مکه شریفه کې لمونځ بې اودسه او بې غسل کیدی؟

جواب! او د لمانځه د فرض ولي سره سم اودس او غسل مشروع وو ولیکن صراحتاً امر په قرآن کریم کې وروسته نازل سوی دی. کذا في السعادیة ص۵۳

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلَاةِ فَاغْسِلُوا وُجُوهَكُمْ وَ

د معنی کسانو کړ نوي کړ بنځه. چه ایمان مو راوړی دی چه تاسي ولاړ سئ و لمانځه ته پس تاسي مینځئ مخونه ستاسي او

أَيْدِيَكُمْ إِلَى الْمَرَافِقِ وَامْسَحُوا بِرُءُوسِكُمْ وَأَرْجُلَكُمْ إِلَى الْكَعْبَيْنِ

لاسونه ستاسي تر څنګلو پوري او تاسي مسح کوئ (لوند لاس تیروئ) پر سرو ستاسي. او پښې مینځئ تر بجلکو پوري.

پوښتنه! چه په دې آیت مبارک کې چه داخلو شیان راغلي دي تول په اودس کې فرض دي. هدایه. در مختار. شرح وقایه. او نور ټول کتابونه د فقهي.

سوال! په دې آیت کریمه کې راغلي دي إِذَا قُمْتُمْ نو چه سړی پر لمانځه ودریږي نو بیا وروسته به اودس کوي؟

جواب! د دې آیت معنی دا ده چه تاسي اراده د لمانځه د دریدو وکړئ. هدایه سعایه. ردمحتار او نور کتابونه د فقهي

سوال! که سړی اراده د لمانځه وکړه او اودس یې د مخه لوړی بیا به هم اودس تازه کوي. لکه د دې آیت شریف څخه چه فهمیږي؟

جواب! په اتفاق د تولو مذهبو دا قید دلته و مروی دی. وَأَنْتُمْ مُحْدِثُونَ. یعنی چه تاسي بې اودسه یاست حاصل دا چه د بې اودسه په وخت کې اودس فرض دی کې لمونځ کاوه. او کې اودس د مخه لوړی بیا یې هم اودس نوی کړي دا مستحب او ډیر ثواب لري.

پوښتنه! چه غسل پر پولو ته وائي. او پر یوځل دا او بوي بهیدل مسح راځي. صرف لوند لاس پر مخ تیرول کافي نه دي. ولې چه دی ته مسح وائي. او په ظاهر روایت کې دا امام اعظم

ښيدل دا وي دا اندامه څخه شرط د غسل دی که څه هم يو ياد وړه شاڅکی وي ۔ و عليه
فتوی ۔ كذا في السعاية و الكفاية ورد المحتار وغيرها ۔
د مخ اندازه د تندی د لوړی برخې څخه تر زنې لاندې پورې ئې اوږد والی دی او د
غوږ څخه د يو غوږ بيا تر نرمې پورې د بل غوږ نې پسور دی ۔ نو زنه او که ښني په مخ کی داخل
دی ۔ هدايه ص۳ ۔ قوله تعالی وَاَرۡجُلَکُمۡ ۔ دا ويش وائی چه ارجلكم په زور د لام
وُجُوۡهَكُمۡ عطف دی ۔ يعنی تر فَاغۡسِلُوۡا لاندی دی ۔ نو دا هل سنت په نزد د پښو
پريولل فرض دی که ئې موزې نه وي په پښو ۔

**سوال** ! د پښو ذكر او بيان تر مسح د سر وروسته دی نو بايد چه تر مسح لاندی
وی او ارۡجُلِكُمۡ په زير د لام وی لكه په بل قرائت كی چه په زير سره راغلی دی ۔ چه
عطف پر رؤسكم سی ۔ نو بناءً عليه بايد وظيفه د پښو مسح وی لكه شيعه گان چه وائی ۔
كه چيری وظيفه د پښو غسل وائی نو بايد چه تر وَامۡسَحُوۡا ئې د مخ او لاسو وائی ۔ يعنی تر
اَيۡدِيَكُمۡ اِلَی الۡمَرَافِقِ وروسته دستی ۔

**جواب** ! وظيفه د پښو خو غسل يعنی پريولل دی ۔ لكن تر مسح چه وروسته پښې ذكر
شوی دی په دې بيان د ترتيب په اودا سه كی ۔ او قرائت د زير چه شيعه گان د هغه قرائت په
اساس وظيفه د پښو مسح بولی ۔ جواب ئې دا دی چه د زير قرائت پر حال د موزو محمول دی
چه په حال كی د موزو وظيفه د پښو مسح كول دی ۔ حاصل دا چه موږ د واړه قرائته منو او
عمل پر كوو ۔ هغه دا چه د زور قرائت پر وُجُوۡهَكُمۡ عطف دی تر فَاغۡسِلُوۡا لاندی
دی ۔ او دا هغه وخت چه موزه ئې نه وي په پښو ۔ او د زير پر قرائت عطف پر رؤسكم
دی چه تر وَامۡسَحُوۡا لاندی راسی او وظيفه مسح وگرځی دا هغه وخت چه موزه ئې
په پښو وی ۔ كذا في رد المحتار ۔ و نور الانوار ۔

او شيعه گان د زور قرائت بيخی نه منی او نه عمل پر كوی ۔ نو زموږ مذهب پر حق
دی ولی چه د قرآن مبارك په دواړو قرائتو موږ عمل كوو او منو ئې ۔ او بل زموږ دليل
دا دی چه په هيڅ حديث شريف كی نه دی راغلی چه آنحضرت صلی الله عليه وسلم پر
ښو پښو مسح وكړه ۔ كه چيری وظيفه د پښو مسح وائی نو بايد چه په ټولو حديثو كی بيان
د ښو پښو د مسح كولو وائی ۔ وَ اللهُ اَعۡلَمُ بِالصَّوَابِ ۔

## فَفَرْضُ الطَّهَارَةِ غَسْلُ الْأَعْضَاءِ الثَّلٰثَةِ وَمَسْحُ الرَّأْسِ

پس فرض د اودا سه په ینځل د درو اندامو دی او مسح کول د سر دی . او دوې

## وَالْمِرْفَقَانِ وَالْكَعْبَانِ تَدْخُلَانِ فِي فَرْضِ الْغُسْلِ

څنګلې او دوې بجلکې داخلې دی په فرض کې د پریولو یعنې پریولل ئې فرض دی کوچې پاتې سي او دس ئې نه دی صحیح ،

## عِنْدَ عُلَمَائِنَا الثَّلَاثَةِ خِلَافًا لِزُفَرَ

په نزد د موږ د علماؤ چه درې دی . او نه دی کی د امام زفر خلاف دی چه دده په نزد د څنګلو او بجلکو پریولل فرض نه دی

مراد د درو علماؤ څخه اول امام المذهب مجتهد اعظم ستر پیشوا ابو حنیفه رح دی چه اصلي نوم ئې نعمان دی . دوهم قاضی القضاة مجتهد کبیر د امام صاحب شاګرد ابو یوسف رح چه نوم ئې یعقوب رح دی . او دریم د امام اعظم رح شاګرد دی چه په مذهب کې ډیر لوی کتابونه تصنیف کړي دي . لکه مبسوط ، جامع صغیر ، جامع کبیر ، زیادات ، هارونیات وغیره . محمد بن الحسن الشیباني رح .

پوښتنه ! چه د دغو امامانو تاریخ بیانول د دې کوچنۍ کتاب سره مناسب نه دی . ولې چه د دوی تاریخ بیانول په جلدو جلدو کتابونه غواړي .

پوښتنه ! آیة شریف په بیان کې د اودا سه هغه وچه تیر سو او معنی د دې آیة مبارکې ښکاره ده نو بیا ولې د دغو لویو امامانو رح په بجلکو او څنګلو کې اختلاف پیدا سو ؟

جواب ! امام زفر رح وائي چه د اودا سه د آیة معنی داسي ده لکه د دې آیة شریف چه د روژې په باره کې نازل سوی دی « ثُمَّ أَتِمُّوا الصِّيَامَ إِلَى اللَّيْلِ » یعنې بیا نو پوره کړئ روژې تر شپې پورې . نو شپه خو په روژه کې نه ده داخله . نو دغه رنګه څنګل او بجلکه د لاسو او پښو په وظیفه کې چه پریولل دي نه دي داخل . او موږ وایو چه روژې چونکه یو حد معین ئې په عربي شریعت کې نه درلودی بلکه یو ساعت امساک ته هم روژه وائي د عربو په لغت کې . نو خدای پاک په « إِلَى اللَّيْلِ » سره حد شرعي د روژې معلوم کړی . نو حکه شپه د روژې پای سوه . او شپه خارج سوله . اما « أَيْدِي » یعنې لاسونه خو تر اوږو پورې او پښې تر زنګنو پورې د اندامونه ویل کیږي . نو « إِلَى الْمَرَافِقِ » یا « إِلَى الْكَعْبَيْنِ » د دې د پاره خدای پاک وویل چه تر څنګلو لوړ یا تر بجلکو لوړ د حکم څخه ډیر لوی وباسي . ولې که دغه « إِلَى الْمَرَافِقِ » یا « إِلَى الْكَعْبَيْنِ » نه وای نو

پر یوله دلاسو بر تی او پښو یې فرض وائی ـ او د پښو یوله بر ترین نکتو پورې وائی
نو بناءً علیه چه لوړې بر خی دلاسو او پښو غاړې چی سوې ښکلی او جلکی تر بریو لو لاندی راغلی
او په اصطلاح دفقهی شریفی دلاسو او پښو په باره کی الی غایة الاسقاط بولی ـ یعنی
لوړنی ساقط کړې ـ او د ړوشرې په باب کی الی دپاره د مد الحکم ده ـ یعنی حکم د ړوشرې
نی ترشپې پورې کش کړې ـ رد محتار ـ هدایه ـ شرح وقایه ـ نور الانوار ـ مستملس ـ بلکه تول کتابونه دفقهی والی دغسی

## وَالْمَفْرُوْضُ فِیْ مَسْحِ الرَّأْسِ مِقْدَارُ النَّاصِیَةِ وَهُوَ رُبُعُ الرَّأْسِ

او فرض په مسح کی دسر اندازه د نزلې ده ـ چه هغه څلرمه د سر کینې ی ـ

**پوهه سره!** چه سر څلور حصې دی ـ نزله ـ څټ ـ دوه تیکه ـ مصنف چه مقدار و وایه اشاره صفری
وه چې تر ده چه خاص د نزلې مسح فرض نه ده ـ بلکه پر هره څلرمه د سر چه مسح وکړې د فرض وفا کړې خلاـ

**فائده!** د حضرت امام شافعیؒ په نزد مسح دیوه یا دوه یا دری ویښتانو قدر فرض ده
دلیل ئی دادی چه په آیة شریف کی خو مطلق مسح راغلی ده ، او مطلق مسح عام ده ـ او امام مالکؒ
د توله سر مسح فرض بولی ـ دی وائی چه د تیمم په باب کی خدای پاک وائی ، فَامْسَحُوْا بِوُجُوْهِكُمْ
تاسی مسح کوئ پر مخانو ـ نو په تیمم کی خو بالاتفاق مسح د توله مخ فرض ده ـ نو په آیة کی
داو داسه چه وَامْسَحُوْا بِرُءُوْسِكُمْ راغلی دی په هغه آیت کی هم د توله سر مسح فرض ده
او زموږ په مذهب کی څلرمه دسر مسح کول فرض دی ـ زموږ دلیل د احدیث مبارک دی
چه صحیح کتابونو روایت کړې دی ـ

## لِمَا رَوَی الْمُغِیْرَةُ بْنُ شُعْبَةَ اَنَّ النَّبِیَّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ

په سبب دده چه روایت کړې مغیرة د شعبه زوی خدای دی د ده څخه راضی سی چه آنحضرت صلی اللہ علیه وسلم

## اَتٰی سُبَاطَةَ قَوْمٍ فَبَالَ وَتَوَضَّأَ وَمَسَحَ عَلَی النَّاصِیَةِ وَخُفَّیْهِ

ورغی جاروکښ اچولو ځای ته د یو قوم ـ یعنی هغه ځای ته چه خلکو به هلته جاروکښ اچاوه ـ پس
بولی ئی وکړې او اودس ئی تازه کړې او مسح ئی وکړه پر نزله او پر موزو چه په پښو ئی وې ـ

**سوال!** په دی حدیث شریف کی خو صرف دا راغلی چه آنحضرتؐ مسح پر نزله وکړه نو ددې حدیث
څخه فرض والی د مسح د ناصیه څنګه معلومیږی احتمال سته چه آنحضرتؐ دی مسح د ناصیة استحبابا کړې وی ـ

**جواب!** آیة مبارک په باره کی د مقدار د مسحی مجمل دی ـ یعنی واضح بیان یکښی

نسته چه څو نه اندازه د سر مسحه کول فرض دي. پس د آنحضرت صلعم فعل چه پر ناصیه مسح وکړه بیان د هغه آیة مبارک د مراد دی. نو اصلي فرضیت د ناصیه په آیة شریف سره ثابت دی. لکن پس له بیانه د آنحضرتؐ. کذا في رد المحتار والهدایه وشرح الوقایه ونور الانوار وغیرها.

## وَسُنَنُ الطَّهَارَةِ غَسْلُ الْيَدَيْنِ قَبْلَ اِدْخَالِهِمَا الْاِنَاءَ

او سنت داودس چه دي پر لول د لاسو دي. د مخه تر داخلیدو په لوښي کې.

سنت هغه کار ته وائی چه آنحضرت صلی الله علیه وسلم همیشه تو به پر کړی وي. مګر یو وار یا دوه واره ئی پرې ایښی وي. د سنت حکم دادی چه پر کولو ئی ثواب دی او پر نه کولو ئی سرزنش وړ کول کیږي. رد محتار وفتح القدیر وغیره.

## كَمَا قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اسْتَيْقَظَ اَحَدُكُمْ مِنْ

لکه چه ویلي دي آنحضرت صلی الله علیه وسلم کوم وخت چه بیدار سي یو ستاسي څخه د خوبه

## مَنَامِهٖ فَلَا يَغْمِسَنَّ يَدَهٗ فِي الْاِنَاءِ حَتّٰى يَغْسِلَهٗ ثَلَاثًا

څخه پس نه دي غوټه کوي لاس خپل په لوښي کې. تر څه وخته چه مینځي لاس درې واره. ولی

## لَا يَدْرِيْ اَيْنَ بَاتَتْ يَدُهٗ مِنْ جَسَدِهٖ

چه دی نه دی خبر چه چیری شپه تیره کړې ده لاس دده د بدنه څخه د ده.

پوهیږه! چه ذکر د لوښي بناء پر عادت د عربو چه په لوښي به ئی او دس تازه کاوی ولې چه په عمر نبویؐ کی عموماً جارې او بهنده ګې او نه نلکې وي. نهایه شرح هدایه.

پوهیږه! چه د دې حدیث څخه دا معلومیږی چه سنت ولې د لاس پر یولو خاص د هغه چاد پاره دی چه د خوبه څخه را بیدار سي. تفصیل دادی! چه د عربو محکی کرې وې او د دوی عادت داو و چه استنجاء به ئی په لوټه او خاوره و وهله نو به بیدیدله. په دې صورت کی غالباً د سړې بدن خوله کوی حتی د بره ئی هم خوله کوی. او سړی چه بیده وې هر ځای چه کاه وکړه هغه ځای ګوره وي. نو که د سړې په خوب کی د بره ته لاس ور سیزی او هغې هم خوله کړې وې او استنجاء هم په خاوره و وهل سوې وی. نو احتمال د دې سته چه لاس به ئی مردار سوې وي. نو له دې احتماله سره دی لاس په لوښي نه چیغی

ولې چه اوبه مردارې نه سي. نوځکه بعضې فقهاء پردې عقيده دي که چيرې سړي د بيديدو په وخت کنډکې نه وکړې او يا استنجاء په اوبو ونه ولې وه. نو د لاسو پريولو بېيا سنت نه دی. او دا مذهب ضعيف دئ. الهدادیه په حاشيه کې د هدايه ص۳۱ وائي چه دا حديث شريف يوازې د هغو کسانو د پاره دی چه د خوبه ويښ سي او د لاسو په مردارې کې شک وي. ولې چه په دې صورت کې پريولو د لاسو تينګ سنت دی او اصل سنت دا دی خو د لاسو پريولو په شروع کې د اودا سه دی مطلقاً که د خوابه ويښ سی او که نه که لاس په لوښي چيخي او که نه. بلکه که پر ځنګه يا په جاړې او بو اودس تازه کوې او يا يقيناً لاسونه ئې پاک وي خو بيا هم دا اودا سه په شروع کې د لاسو پريولل سنت دی تر اوه لو بند ويوری. بحر آفتح القدير ملا العبرا

**پوښتنه!** بيله اودا سه څنګه د سړي لاس مردار بلل کيږي.

**جواب!** که چيرې ئې پر لاسو نجاست حقيقي ظاهرې و وتکه بولې، کنډکې، وينې، شراب. نو لاس ئې مردار دئ کې په لښو او بوبچ کې هغه هم مردار يږي. او که چاګوته يا پُسکی واچوله دا نجاست حکمي دئ. په دې صورت کې که ئې په او بو لاس چ کړې او به نه مردارېږي. لکن د ودي د خوړلو په وخت کې پريولل مستحب دی. او که اوس د ړلو دی بيائ د ودې خوړلو د لاسو پريولل ادب دی. په احاديثِ مبارکه کې ثابته ده.

**فائده!** دا حديث مبارک چه ټيس سوشپين وصحيح کتابو د حديثو ئې روايت کړې دی. تخريج زيلعي.

# وَتَسْمِيَةُ اللهِ تَعَالىٰ فِى اِبْتِدَاءِ الْوُضُوْءِ وَالسِّوَاكُ

او بل سنت دا ودا سه نوم اخستل د خدای تعالی دی په شروع کې دا ودا سه. او بل سنت استعمال د مسواک دی يعنی بسم الله الرحمن الرحيم ويل په شروع کې د اودا سه او بسم الله ويل تر استنجاء د مخه او وروسته دواړه سنت دی. وهو الصحيح هدايه ص۳۱.

**پوښتنه!** چه سنت وائې د بسم الله ويلو د امام قدوري او د فقيه ابوجعفر طحاوي مذهب دئ. او د صاحب د هدايې او نورو کتابو والا مذهب دا دئ چه بسم الله ويل چه په دغه وخت کې مستحب ده

**سوال!** په صحيح حديث کې راغلی دی. لَا وُضُوْءَ لِمَنْ لَمْ يُسَمِّ. اودس نسته هغه چا د پاره چه بسم الله ونه وائي. نو د دې حديث په اثر بايد بسم الله ويل په اودا سه کې شرط او فرض وي. لکه چه اصحاب ظواهر الحديث چه هم دغسې وائي.

**جواب!** شارحان د حدیثو وائی چه مراد په دې حدیث کې نفی د فضیلت او ثواب دی. نه نفی د وجود د اوداسه. هدایه ص ۳۱/۱۲

**پوهه سه!** چه مسواک په اندازه د کوچنۍ گوتې وي. او اوږد والی ئې وار د ولاړ یوه لوینت وي بیا که وره وسته کوچنۍ سې پروانه لري. او مسواک دی د غاښو پر عرض وهي نه پر طول. ولې چه اوږې خرابې

**فائده!** مسواک وهل په اوداسه کې دونه لوئی سنت دی. چه آنحضرت صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی. که چیرې د امت د مشقت بیره نه وای ما به دوی امر کړی وای وجوباً په مسواک وهلو سره. رواه البخاری

**مسئله!** که مسواک نه وو د سړی سره بیا به څه کوی؟ **جواب!** بیا به پر غاښو تینګه گوته تیروي چه آنحضرت صلعم هم یو وخت د غسی کړی دی. هدایه ص ۳۱/۱۲

**مسئله!** که د سړی په خوله کې غاښونه نه وی نو به څه کوی؟ **جواب!** پر وریځو دې گوته تیروي.

**سوال!** ښځه به هم مسواک وهي که څنګه؟

**جواب!** فقهاء وائی چه د ښځو وریځې ضعیفې دی نو د وی ته اولی ثه وول د مسواک ځای وهي. مګر گوته دې پر غاښو تیروی.

**فائده!** که د یوه سړی خوله او غاښونه دیو سبب څخه بدبویه وه چه وبل چا ته آزار رسیدئ د هغه د پاره بې اوداسه هم مسواک وهل سنت دی ولې چه آزار ول د خلکو نارواء دی. نو ځکه آنحضرت صلی الله علیه وسلم هغه سړی چه پیاز اوم یا گندنه او هم یا هوږه خوړلې وی د جماعت د حضور څخه منع کړی دی. رواه البخاری.

## وَالْمَضْمَضَةُ وَالْاِسْتِنْشَاقُ

او بل سنت د اوداسه په خوله اوبه لغړول دی. او بل سنت د اوداسه په پزه اوبه لغړول دی.

دلیل ئې دا دی چه شلو کسانو ناموړو اصحابو روایت د اوداسه د رسول کریم صلی الله علیه وسلم کړی دی. هغو ټولو مضمضه او استنشاق ذکر کړی دی.

**سوال!** په هدایه ص ۳۱/۱۲ کې وائی چه آنحضرت صلعم د مضمضه او استنشاق فعل په اوداسه کې مواظبت کړی دی. نو باید مضمضه او استنشاق یا واجب یا فرض وای لکه اهل حدیث چه دغه دواړه په اوداسه او غسل کې فرض گڼي.

**جواب!** عینیؒ او ملا علی قاریؒ او نور تکړه محدثین وائی چه آنحضرت کله هم دا دواړه په اوداسه کې قصداً پرې اینې دی نو په سبب د دې موږ حنفیان او د نورو مذهبو امامانؒ ئې سنت بولی. او د هدایه د مواظبت څخه دیر استعمال مراد دی.

د مضمضه او استنشاق کیفیت دا دئ چه خوله دې درې واره میننځي او د هر واره د پاره دې تازه اوبه اخلي او د غړه تر کړ د پزې د پاره ۔ هدایه ص۳ ردالمحتار ص۱۰۸
او حضرت امام طبراني د آنحضرت صلی الله علیه وسلم داو د اسه د غه روایت کړې دې ۔ او د حضرت امام شافعي په نزد درې واره ګوټه واره د پاره کافي دی ۔ یعنې په یوه واره دې خوله او پزه د واړه میننځي ۔

**پوه سه!** چه په مضمضه او په استنشاق کې پنځه سنت دي (۱) ترتیب یعنې خوله تر پزې د مخه میننځل (۲) درې درې واره (۳) هر واره نوې اوبه اخستل (۴) د واړه دې په ښي لاس کوي ۔ لکن پزه دې په چپه لاس سونګوي (۵) ډیره مبالغه او کوشش دې په د واړو کې کوي ۔ مګر مخه وخت کې روژه نه وه ۔ ردالمحتار ص۲۸ ج۱

**پوه سه!** چه مضمضه او استنشاق سنت مؤکد دی ۔ یعنې ټینګ سنت ۔

**مسئله!** که چیرې اوبه لپ وي یو یو واره کفایت کوي ۔ ردالمحتار ۔

**مسئله!** په خوله او پزه کې دې ګوته هم وهي سره د مسواکه ۔ ردالمحتار ۔

## وَمَسْحُ الْاُذُنَیْنِ

او بل سنت د اودا سه د دواړو غوږو مسح ده ۔

**پوه سه!** چه مسح د غوږو دې په یوه واره سره کوي ۔ په دې ډول چه د تسبیح د وړې ګوتې ګوتې د غوږو په سوري کې اوډوي ۔ او د ګوته کوتي دې د غوږو پر شا وخوا تیری کړې ۔

**مسئله!** د غوږو مسح دې په هغو لند و لاسو کوي چه د سر مسح ئې پرې کړې وي ۔ یعنې نوې اوبه دې نه اخلي ولې چه په ابن ماجه کې حدیث دی چه آنحضرت صلی الله علیه وسلم وائي چه اَلْاُذُنَانِ مِنَ الرَّأْسِ ۔ یعنې غوږونه د سر په جمع کې حساب دي ۔ په ردالمحتار ج۱ ص۱۲۳ کې راغلي دي چه سنت په نزد د امام اعظم مسح د غوږو په اوبو د سر ده ۔ حلیه ۔ کنز ۔ تاتارخانیه ۔ غایه ۔ شرح الجمع ۔ عیني شرح هدایه ۔ هدایه ۔ بدائع ۔ شرح الدرر ۔ او مذهب د امام شافعي دا دئ چه د غوږو د پاره دې نوې اوبه اخلي ۔ ص۱۲۳ ج۱

**مسئله!** که چا ګوته په د غوږ و کو ټو کې پورته کړه نو بیا د غوږو د پاره نوې اوبه اخلي او خطره نه ده په نوې اوبه اخلي کړي د ګوتو لند والی وچ سوی وو ۔ ردالمحتار

## وَتَخْلِیْلُ اللِّحْیَةِ وَالْاَصَابِعِ

او بل سنت د اودا سه خلالول د ږیرې او د ګوتو د پښو او د لاسو دي ۔

پوهه! چه نیت د زړه کار دی په ژبه نیت ویل کوم ضروري کار نه دی.
مستحب هغه کار ته وائي چه یې کولو ثواب وي او که یې نه وکړي په ورځ د قیامت ملامتیا ورته نشته. یعنی مستحب تر سنت په درجه کې کم دی. او د امام شافعیؒ په نزد نیت فرض دی.
سوال! که چه د ځان د خونک کیدو د پاره او دس تازه کړي نه د طهارة په نیت حکم یې څه دی.
جواب! اودس او د سه ثواب یې نشته او لمونځ کول په روا دی. هدایه - رد محتار - شرح وقایه وغیره

## وَيَسْتَوْعِبَ جَمِيعَ الرَّأْسِ بِالْمَسْحِ

او یو مستحب دا دی چه کښیباسی ټول سر په مسح سره.
یعنی په ټول سر به مسح کوي. او امام شافعیؒ د ربع وایي په ټول او یو د سر مسح سنت گڼي.

پوهه! چه په کیفیت کې د مسح د ټول سر اختلاف دی. مشهوره دا ده چه بټې گوتې او ورپسې دوې گوتې او ورغوي دی د سر کوبنه و نیسی صرف درې گوتې د دواړو لاسو دی د سر پر مقدم حصه کښیږدي او تر شته دې کش کړي. او بیا د شته څخه دی ورغوي پر تیکوړه کش کړي تر مقدم حصه پورې. او بیا دی په بټو گوتو او څو د نورو گوتو غوږونه مسح کړي. لکن زیلعیؒ شارح الکنز او مصنف د فتح القدیر وائي چه دې کیفیت لره اصل په سنت کې نشته. بلکه په یوه وار دی د دواړه لاسونه د سر پر مقدم حصه کښیږدي او تر شته دې کش کړي. او بیا دی د غوږونو مسح وکړي. او په دې کار د گوتې او به نه مستعملیږي ولې چه غوږونه د سر په جمله کې دی. رد محتار ص ۱۱۲ ج ۱ تفصیل هورې وګوره.
خبرتیا! د نن زماني ښځې خصوصاً پښتين والا ښځې د سر په مسح کې بیخي غفلت کوي سنت لا څه کوي بلکه فرض قدر چه څلورمه د سر ده هم نه پرځای کوي. افسوس د دوی پر حال.

## وَيُرَتِّبُ الْوُضُوءَ فَيَبْدَأُ بِمَا بَدَأَ اللهُ تَعَالَى بِذِكْرِهِ وَبِالْمَيَامِنِ

او په ترتیب دی اودس کوي پس شروع دی کوي په هغه اندام چه خدای پاک شروع کړی ده په ذکر د هغه. او شروع دی کوي په راسته اندام. (په لاسو او پښو کې)
یعنی اول دی مخ مینځي بیا دی لاسونه مینځي او بیا دی د سر مسح وکړي او اخیر دی پښې پر مینځي
پوهه! چه ترتیب په مذهب کې د امام شافعیؒ فرض دی. دلائل په هدایه ص ۲۳ ج ۱ کې وګوره یا د رد محتار په ص ۱۱۳ ج ۱ کې وګوره.

## شپږمه فائده

دادرېیم کار یعنی نیت - د سر مسح - ترتیب د اوداسه - پوښتنې او پوهاوی په نزد د قدورۍ مستحب دی - نوره تول مشائخو او فقهاؤ لکه صاحب هدایه - رد المحتار - در مختار - بحرالرائق پردې متفق دی چه دا درې واړه کارونه سنت دی - هدایه ص ۳۲ جلد اول -

## باته سنت او مستحب دا دی -

هغه سنت چه قدورۍ په سبب د کوتاه والی د کتاب نه دی راوړی دا دی !

(۱) وَالدَّلْكُ - یعنی اودس پیوسته تازه کول دی - یعنی چه مخکنی اندام لا نه وی وچ شوی د بل اندام په پرېولو یا مسح دی شروع وکړی - که عذر نه وی لکه چه اوبه خلاصې شی نوری اوبه پیدا کوی - یا هوا ډیره گرمه وی چه اندام ژر وچ شی -

(۲) سنت دَلْک دی یعنی مښول د اندامو -

(۳) اسراف نه کول دی - او دا سنت مؤکد دی - رد المحتار ص ۱۱۴ یعنی ډیرې اوبه دې نه توېوی ولی چه آنحضرت د اسراف څخه نهی کړی دی -

سوال ! په پنځم کتاب کې وائی — ورتوای تو جه بر لب جوئی — نیست اسراف هر چه می شوئی

جواب ! اگرچه اوبه خو نه ضائع کیږی لکن تول فقهاؤ وائی چه د اسراف هم خلاف سنت دی او چه ضائع کیدل ئې عمر دی -

(۴) وَتَرْكُ لَطْمِ الْوَجْهِ - او بل سنت دا دی چه په شړپ دې اوبه پر مخ نه وهی -

(۵) وَغَسْلُ فَرْجِهَا الْخَارِجِ - او بل سنت دا دی چه ښځه دې د باندی فرج هم پرې مینځی -

باته مستحب دا دی - پوه شه چه مندوب - ادب او مستحب یو دی - در مختار ص ۱۱۵/۱

(۱) مسح د غاړې یعنی غاړه د کوتو په شا - او هغه چه مَنِيَّة والا وائی چه نوی اوبه غاړې ته غلط دی - ولی چه د کوتو د شا اوبه نه دی مستعمل شوی - رد مختار ص ۱۲۲/۱ لکن مسح دې پر څنګ پلو د غاړې کوی - نه د غوټې پر برابری چه هغه بدعت دی - رد مختار جلد اول ص ۱۲۲

(۲) وَاسْتِقْبَالُ الْقِبْلَةِ - او مخامخ و قبلې ته کښینستل په وخت کې د اوداسه - یعنی بیله استنجاء -

(۳) وَالتَّقْدِيمُ عَلَى الْوَقْتِ - او تر وخت د مخه دې اودس تازه کوی - لکن په شرط د دې چه معذور نه وی - رد المحتار جلد اول ص ۱۲۲

(۴) وَتَحْرِيكُ خَاتَمِهِ الْوَاسِعِ - او ښورول د گوتمې چه فراخه هم وی - یعنی چه لوړی او ښکته کښی - بیا دې هم د احتیاط د پاره ښوروی او که چیری تنګه وه چه اوبه

ئې لاندې نه سيده بيائې ښوروَل فرض دي چه اوبه ورته ورسيږي - رد محتار ص۱۱۱

## ضروري خبرتیا

ښځې علی العموم او بعضې نر ښځې طبیعتاً داسې تنګې کوټې په کوټه کوي چه په غوږ کې ناستې وي - چه هیڅ امکان د اوبو ورسیدو تر کوټې لاندې نه وي او دوئ هم کوټې نه ښوروي - نو د غسې ښځو او نرو نه اودس صحیح دی او نه غسل او نه لمونځ - افسوس -

سوال! نروته د کوټې په کوټه کول روا دي او که نه؟

جواب! د سرو زرو کوټې و نروته قطعاً حرام دی - او د سپینو زرو کوټې چه تر مثقال هم کمه وي و نروته روا ده - لکن چه ضرورت ورته وي - په صحیح حدیث کې راغلي دي چه آنحضرت صلی الله علیه وسلم وفرمایل چه وریښم او سره زر استعمالول حرام دي زما د امت و نروته او روا دي و ښځوته - افسوس چه نران ولې د ښځو په مثال سوځه وریښمي جامې استعمالوي او د سرو زرو او سپینو زرو کوټې په کوټه کوي - خوانان لا څه کوي چه د سپینو ږیرو په کوټو هم د سرو زرو کوټې لیدل کیږي - اخیر څه شرم په کار دی. د اسلام په خاطر -

مسئله! که د ښځې غوږ والې په غوږ وې باید د غسل په وخت کې ئې و ښوروي چه غاړه ته ئې اوبه ورسیږي - رد محتار جلد اول ص۱۱۱

(۵) وَعَدَمُ الْاِسْتِعَانَةِ بِالْغَیْرِ - او نه به غواړي کومک په اودس کې د بل چا څخه - که داسې وکړي په تو یولو کې وي او که د اندامو په مینځلو کې وي - مګر هغه وخت بیا پروا نلري که مریض یا ضعیف وي

(۶) وعدم التکلم بکلام الناس - او نه به کوي په اودس کې خبرې د خلکو مګر هغه وخت چه ضرورت وي او فرصت د لاسه وځي -

(۷) وَحِفظ ثیابه من تقاطر الماء - او ساتل به کالي خپل د څاڅکو څخه د اوبو - یعني حتی الامکان دي د مستعملو اوبو د څاڅکو څخه ځان ساتي -

(۸) وَالتَّسْمِیَةُ عِنْدَ غَسْلِ کُلِّ عُضْوٍ - او بسم الله دي وائي په وخت د پریولو د هر اندام -

(۹) وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلَی النَّبِيِّ بَعْدَهٗ - او درود او سلام دي وائي پر نبي علیه السلام پس له اودسه -

(۱۰) او وروسته تر اودسه دي داسې دعا کوي - خدایه ما وګرځوې د توبه کوونکو څخه او د پاکي کوونکو څخه - رد محتار ص۱۱۷-۱۱۸/۱۱۹ - دا ټول پاته مندوبات -

اللهم اغفر لکاتبه ولمؤلفه ولوالدیهما - آمین یا رب العلمین -

# فَصْلٌ فِي نَوَاقِضِ الْوُضُوْءِ

دا فصل په بیان کې د هغو شیانو دی چه ما[ت]وي اودس.

پوهه سه! چه ماتوالی اصلاً په اجسامو کې دی لکه کاسه چه ماته سي. نو بیا هغه فایده نه حُنی اختتل کیږی چه کاسه د هغی فایده، دپاره وه لکه دودیه پکښي وړل وغیره. پس اودس چه یوه معنوی ده ددې ماتیده مجازدی په دې اعتبار چه هغه فایده چه داودس څخه اختتل کیده لکه لمونځ کول یا مسح د قرآن شریف کول وغیره اوس چه اودس مات سو نه حُنی اختتل کیږی.

## اَلْمَعَانِيُ النَّاقِضَةُ لِلْوُضُوْءِ كُلُّ مَا خَرَجَ مِنَ السَّبِيْلَيْنِ

هغه شیان چه ماتونکی دی د اودس دا دی. هر هغه شی چه راووځی د یوې څخه د دوو لارو څخه د نرو یا کوچنی

یعنی د مخ د خوا چه د نر هغه ذکر بولی او د ښځی هغه فرج بولی ـ او قُبُلْ ئې هم بولی ـ یا د شا د خوا چه د نر او ښځی هغه دواړو ته دُبُرْ وائی. په حدیث شریف کې راغلی دی چه آنحضرت صلی الله علیه وسلم څخه چا پوښتنه وکړه چه ماتونکی د اودس څه شی دی آنحضرت وویل چه " مَا يَخْرُجُ مِنَ السَّبِيْلَيْنِ "

پوهه سه! چه راوتونکی د دغو دوو لارو څخه عام دی که عادتی شی وی لکه بولی او کندی یا غیر عادتی شی وي لکه د استحاضی وینی یا دبړه یا چینجی ـ او د دُبُرې په باد سره هم اودس ماتیږی ـ چه کوزه یا پسکی ئې بولی

سوال! د فرج یا د ذکر په باد سره اودس ماتیږی که نه؟

جواب! بعضی کتابونه وائی چه په دې باد اودس نه ماتیږی ـ لکن صحیح دا ده چه دا په حقیقت کې باد نه دی بلکه اختلاج دی یعنی د نرو پرسیږی د سرې خیال داسی چه باد ووځی ـ هدایه

## وَالدَّمُ وَالْقَيْحُ إِذَا خَرَجَا مِنَ الْبَدَنِ فَتَجَاوَزَا

او وینه او نوَیاَ زوی اودس ماتوی چه ووځی د بدن څخه (هرځای د بدن چه وی) نو تیر سی دغه وینه یا نو

## إِلَى مَوْضِعٍ يَلْحَقُهُ حُكْمُ التَّطْهِيْرِ

هغه ځای ته چه هغه ځای ته رسیږی حکم د پاکوالی. یعنی پاکول د هغه ځای

فرض وي په اودا سه کې یا په غسل کې۔

مسئله! که دیوځای پوست واوړي او وینه بنکاره سي لکن تر هغه ځای تیره نسي اودس نه په ماتیږي۔ نهایه

مسئله! که وینه د پزې ونړمک ته راغله یا د غابنو وینه وخولې ته راغله اودس ئې مات سو ولې چه د پزې او د خولې پریوتل په غسل کې فرض دي۔

مسئله! که بولې ونلکې ته د ذکر راغلې او نه راووتې اودس نه په ماتیږي ولې چه د دغې نلکې پریوتل په هیڅ وخت کې فرض نه دي۔ حواشی هدایه ص۲۳

او امام شافعیؒ وائي چه هرشی د غیر سبیلینو څخه ووځي اودس نه په ماتیږي۔ د ده دلائل او زموږ جوابونه په هدایه کې۔ رد مختار کې۔ شرح وقایه کې وګوري۔

## وَالْقَيُّ إِذَا كَانَ مِلْأُ الْفَمِ

او قی اودس ماتوي که چیري وي په ډکه خوله سره۔

امام شافعیؒ وائي چه قی که څه هم په ډکه خوله وي اودس نه په ماتیږي۔ ولې چه په حدیث شریف کې راغلي دي چه عَلَيْهِ السَّلَام قی وواهه او اودس ئې نه کړئ تازه۔ زموږ جواب دا په کوو۔ چه امکان لري چه د علیه السلام دغه قی به په ډکه خوله نه وو۔ او بل دا چه د لمانځه وخت به نه وو۔ نو د قی سره متصل خو اودس نه دئ لازم۔ بلکه د لمانځه په وخت کې۔

زموږ دلیل دا دئ چه د ابن ماجهؒ په روایت په حدیث کې راغلي دي، مَنْ قَاءَ اَوْ رَعُفَ فِيْ صَلَاتِهٖ فَلْيَنْصَرِفْ، که چا قی وواهه یا ئې پزه وبهي سوه په لمانځه کې پس د لمانځه څخه دې ولاړ سي۔ یعني په اودا سه پسې۔ د دې حدیث شریف څخه معلومه سوه چه په قی سره اودس مات سو۔ او امام زفرؒ وائي چه په لږ او په ډېر قی د واړو اودس ماتیږي۔ دلائل ئې په هدایه ص۱۳ کې وګوره۔

پوښتنه! ډکه خوله قی کومه بولے؟

جواب! څوک وائي هغه دئ چه خبرې نه سي وړ سره کولای څوک وائي هغه دئ چه پې تکلیف ئې نه سي ټینګولای

سوال! که چا څو واره قی وواهه چه هر واري ئې ډکه خوله کوو لکن مجموع ئې ډکه خوله کیده اودس په ماتیږي او که نه؟

جواب! په نزد د امام ابی یوسفؒ که د ټولو واړو د قی مجلس یو وه نو اودس په ماتیږي او که جلا جلا ځایونه وه اودس نه ماتیږي۔ او امام محمدؒ وائي که چیري د زړه شناؤ یو وه نو اودس به ماتیږي او که د زړه اشناؤ جلا وه اودس نه په ماتیږي

پس که مجلس یو وی او د ښځې اشیدل هم یو وی او دس په اتفاق مات دی. او
مجلس یو وی مګر د ښځې اشنا ؤ جلا وو د ابو یوسف په نزد اودس مات سو او
محمد وائی اودس نه دی مات. او که د ښځې اشنا ؤ یو وو لکن مجلس د قیا نو جلا وو
د امام محمد په نزد اودس مات دی د امام ابو یوسف په نزد نه دی مات. و فقه شو
ته نزدې مذهب د امام محمد دی. والله اعلم بالصواب.

سوال! د کوم شي ته وهل اودس ماتوي؟

جواب! چه د و ډ ی وی یا اوبه وی یا سودا وی یا ش ر وی. او که چیری بلغم ق کړ
د امام اعظم او امام محمد په نزد اودس نه په ماتیږی. او د ابو یوسف په نزد اودس
په ماتیږی که په ډک خوله وی.

فائده! دا اختلاف په هغو بلغمو کی دی چه د نس څخه راوځي او که دا بلغم د سر
څخه وی او دس په اتفاق نه په ماتیږی. هدایه جلد اول ص۲۵ ولي چه سر د نجاست ځای نه دی.

# وَالنَّوْمُ مُضْطَجِعًا اَوْ مُتَّكِئًا اَوْ مُسْتَنِدًا اِلٰى

او خوب اودس ماتوی چه پراته وی. یا ئی تکیه پر یو ه اړخ کړې وی او یا ئی شا تکیه کړې وی پر

# شَیْءٍ لَوْ اُزِیْلَ عَنْهُ لَسَقَطَ

شي ته که هغه لیرې کړه شي د ده څخه نو دی غورځیږی

دلیل ئې دا دی چه پر دغو ډولو خوب کول بند وونه سستوی. نو غالباً کوم
یا بسکی ځنې وځي. او غالب لکه یقین دی. هدایه جلد اول ص۳۵

مسئله! که څوک په ولاړې کی بیده سو. یا په رکوع کی یا په سجده کی یا په ناسته کی او
ئې نه ماتیږی. که په لمانځه کی وی او یا بی لمانځه. هدایه ج۱ ص۳۵

مسئله! په بعضو کتابو کی وائی که چیری دیوسري په ناستی خوب عادت وو اودس ئې ماتیږ

# وَالْغَلَبَةُ عَلَى الْعَقْلِ بِالْاِغْمَاءِ وَالْجُنُوْنِ

او چه غلبه راسی پر عقل ئې اودس ئې ماتیږی په سبب د بیهوښی او لیونتوب.

مسئله! په خلاصة الفتاوی کی وائی چه سکر یعنی مستی تر دی حده پوری چه نر او ښځه
نه پیژنی هم اودس ماتوی.

پوښتنه! چه سبب د ماتېدو د اوداسه په اغماء سره دا دی چه بندونه سست سي او
په ځان نه پوهېږي چه باد راغلو او که نه. او د جنون د ماتېدو سبب دا دی چه قوات تینګېږي
د باد یعني کوز او پسکی نه لري او نه په پوهېږي. هدایه جلد اول ص ۳۵.

---

# وَالْقَهْقَهَةُ فِي كُلِّ صَلٰوةٍ ذَاتِ رُكُوْعٍ وَسُجُوْدٍ

او په زوره خندل په هر هغه لمانځه کي چه رکوع او سجده په کښې وي اودس ماتوي.

او امام شافعيؒ وائي چه اودس نه په ماتېږي. ترجمه: دلیل هغه صحیح حدیث دی
چه علیه السلام پر لمانځه د جماعت ولاړ وو او صحابهؓ ورپسې ولاړ وه چه یو صحابي
چه سترګي ئې ضعیف وې په تلوار لمانځه ته راروان و او په مسجد نبويؐ کي یو خړابه خاوه
په هغې کي پرېوت ولوېدی. بعضي لمونځ کوونکو په زوره وخندل. علیه السلام چه
سلام وګرځاوه وې فرمایل چه هر چا چه په زوره خندلي وي هغه دي اودس او لمونځ دواړه راوګرځوي

پوښتنه! چه خندا درې قسمه ده! قهقهه - چه نژدې خلک ئې واوري که
چیري هلته څوک موجود وي. په دې خندا هم لمونځ فاسدیږي او هم اودس په ماتیږي.
ضحک - چه فقط لمونځ کوونکی ئې واوري نه بل څوک. په دغه خندا لمونځ فاسدیږي
مګر اودس نه په ماتیږي. هدایه جلد اول ص ۳۶. تبسم - هغه دا چه صرف شونډان
ئې سپین سي. په دې نه اودس ماتیږي او نه لمونځ فاسدیږي. ردالمحتار.

پوښتنه! چه په قهقهه خندا سره د جنازې په لمانځه کي یا په سجده د تلاوت
کي یا خارج د لمانځه څخه اودس نه ماتیږي. هدایه ص ۳۵/۱۲ وهکذا في ردالمحتار.

فائده! که نابالغ کوچنی په لمانځه کي په زوره وخندل لمونځ ئې فاسد سو
اودس ئې نه دی مات. او که سړی په لمانځه کي بیده وه او وې خندل لمونځ ئې
فاسد سو اودس ئې نه دی مات. په حواله د کوکب دري پر حاشیه د
قدوري طبع مجیدي ص ۵

---

پوښتنه چه تبسم هیڅ پروا نه لري ولي چه په ترمذي شریف کي په روایت د عبدالله بن الحارث
بن جزء راغلي دي ما رأیت احدا اکثر تبسما من رسول الله صلی الله علیه وسلم، ما نه دی لیدلی
هیڅوک دی تبسم کوونکی تر رسول الله صلعم. او ضحک هم ګناه نه ده. او خنده
قهقهه سخته ګناه ده.

# فَصْلٌ فِي الْغُسْلِ

فصل دی په بیان کی د غسل

## وَفَرْضُ الْغُسْلِ الْمَضْمَضَةُ وَالْاِسْتِنْشَاقُ

او فرض د غسل په خوله او به لغړول دی او په پزه او به لغړول دی۔

او په مذهب د امام شافعیؒ لکه په اوداسه کی په غسل کی هم دواړه سنت دی۔
زموږ دلیل دا دی چه بیهقیؒ او دار قطنیؒ روایت کړی دی چه آنحضرت صلی الله علیه وسلم ویل چه مضمضة او استنشاق جنب لره فرض دی۔ حاشیه هدایه ج۱ ص۴۷
او بل دلیل دا دی چه خدای پاک فرمائی۔ وَاِنْ کُنْتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوْا۔ او که چیرې تاسی جنب واست نو ځان پاکوئ۔ نو ځان پاکول هغه دی چه هغه ځائ ته چه بیله اوبه ورسیږی هغه ځای به مینځی۔ هدایه ص۳۷

## وَغُسْلُ سَائِرِ الْبَدَنِ

او بل فرض د غسل پریمنځل دی د باقی ټوله صورت۔

پوهه سه! اد فرض غسل بیان دی چه هغه درې دی۔ د جنابت غسل۔ د حیض غسل۔ د نفاس غسل۔ تنبیه! په غسل کی ډیر احتیاط په کار دی۔ حتی هر هغه ځائ چه بې تکلیفه اوبه ورسیږی پریمنځل ئې فرض۔ لکه شپیلی د غوږ او۔ د نوم غار د ورځ او بریتو پوست۔ ما بین د بریری۔ د ښځی خلاص فرج۔ مگر کوم نه دی نه په چیغی که څه هم بې تکلیف نه دی۔ لکن هغه حکم د باطن لری او د غه نکته د ستر کو د ننه پریولل نه دی فرض۔ رد محتار ج۱ ص۱۴۱

مسئله! که د ښځی سر اود لی نه وو د ټوله ویښتانو پریولل فرض دی او کې کوڅه او وی نو لنډول د بیخو د کوڅیو کافی دی د کوڅیو غوړول نه غواړی ولی چه په دې کی حرج او تکلیف دی۔ دا مذهب ظاهر د متو نو دی۔ رد محتار ص۱۴۲۔

مسئله! که د ښځی د ویښتانو وبیخو ته اوبه نه رسیدلې بیائی غوړول د سر فرض دی۔ رد محتار ص۱۴۲ نو په اساس د دغی مسئلې کومی ښځی چه د سر ویښتان ئې ټول په کنډو ورو وهلی وی او د غسل په وخت کی صرف اوبه پر تو یوی بیل دی چه اوبه ئې د ویښتانو و بیخو ته ورسیږی غسل

ځي نه دي صحيح.

مسئله! که د ښځې غوږونه والي په غوږونو کښې هغه به ښوروي چه اوبه ورسي. (درمختار ص۱۴۳)

## وَسُنَّةُ الْغُسْلِ اَنْ يَّبْدَءَ الْمُغْتَسِلُ بِغَسْلِ يَدَيْهِ وَفَرْجِهِ

او سنت په غسل کښې دا دي چه شروع به کوي غسل کوونکې په پريولو د دواړو لاسونو تر بندونو پورې او استنجا به وکړي

يعني که څه هم نجاست په فرج پورې نه وي.

## وَيُزِيْلُ النَّجَاسَةَ اِنْ كَانَتْ عَلٰى بَدَنِهٖ

او لرې کړي به يعني مينځي به مردارې که چيرې ئې پر بدن نجاست وو.

يعني د دې دپاره دې مينځي چه پسې دېرېنه سي د اوبو اچولو څخه پر بدن باندې.

مسئله! په بحرالرائق کښې راغلي دي چه هر څه چه سنت دا ود اسې دي په غسل کښې هم هغه سنت دي بيله استقبال د قبلې ولې چه غالباً په حال کښې د غسل د سرې عورت لڅ وي. حاشيه کنز ص

ده ويلي وائي د دې څخه د امعلومه سوه چه جنب به بسم الله آه هم وائي. لکن په نيت د قرائت

## ثُمَّ يَتَوَضَّاُ وُضُوْءَهٗ لِلصَّلٰوةِ اِلَّا رِجْلَيْهِ

او بيا دې اودس تازه کړي لکه اودس د لمانځه. مګر پښې دې نه مينځي.

د دې عبارت څخه دا معلومېږي چه مسح د سر دې هم وکړي. او دا هم ظاهر روايت دي. کوکب دري ص۵

مسئله! که غسل والا په داسې ځای کښې غسل کاوه چه د غسل اوبه د ده تر پښو لاندې جمع کيدې. او يا ئې پښې په خټو کيدې. مطلب دا چه بل وار ئې د پښو پريولو ته ضرورت وو نو دې پښې په اودا سه کښې نه مينځي ولې فائده نه لري. او که په د بره يا سميټ ځای ئې غسل کاوه نو دې پښې په اودا سه کښې پرې مينځي او بيا په اخير کښې د پښو پريولو ته حاجت نشته. کوکب دري ص۵

## ثُمَّ يُفِيْضُ الْمَاءَ عَلٰى رَأْسِهٖ وَعَلٰى سَائِرِ بَدَنِهٖ ثَلَاثًا

بيا دې توی کړي اوبه پر سر خپل او پر باقي بدن خپل درې واره.

پوښتنه! چه په کيفيت کښې د اوبو اچولو پر بدن اختلاف دی. ملا مسکين او نور ملايان وائي چه اول دې پر ښي اوږه او به درې واره واچوي. او بيا دې پر چپه اوږه

دېرې واړه - او بیا پر سر او پر نورو بدن درې درې واره - او دا قدوري د عبارت څخه دا معلومیږي
چه اول دې پر سر اوبه واچوي - او صحیح هم دغه ده او ظاهر روایة د امام اعظم رح
هم دغه دی - در مختار ص ۱۴۷ ج ۱ -

پوښتنه! چه موبنل د بدن فرض نه دی لکن مستحب دی - در مختار ص ۱۴۷ ج ۱

## ثُمَّ يَتَنَحّٰى عَنْ ذٰلِكَ الْمَكَانِ فَيَغْسِلُ رِجْلَيْهِ

او بیا دې وښته دي کوښه شي د هغه ځای څخه د غسل او بیا دې پرې مینځي پښې خپلې - او دا اهلیت کي
چیرې پښې پر او دا سه کې نه وي پر پولې -

## وَلَيْسَ عَلَى الْمَرْأَةِ اَنْ تَنْقُضَ ضَفَائِرَهَا فِي

او نشته پر ښځه باندې چه غوړوي به کوڅې خپلې په غسل کې

## الْغُسْلِ اِذَا بَلَغَ الْمَاءُ اُصُوْلَ الشَّعْرِ

که چیرې رسیدې اوبه بیخونو د ویښتانو د دې

په دلیل د هغه حدیث چه آنحضرت صلعم و اُم سلمه رض ته وویل کافي دی تا لره په
غسل کې چه او به ورسیږي بیخونو د ویښتانو ستا -

مسئله! نشته پر ښځه باندې د غسل په وخت کې چه لندوې به خپلې کوڅې
دا هم صحیح مذهب دی ولې چه په دې کار کې تکلیف دی - هدایه ص ۳۷ ج ۱

د ویښتو والی چه د دې مسئلې پوره بیان په حواله د رد محتار د مخه تېر شو -

## وَالْمَعَانِي الْمُوْجِبَةُ لِلْغُسْلِ اِنْزَالُ الْمَنِيِّ عَلٰى وَجْهِ

او هغه اسباب چه واجبوونکي دی د غسل هغه دا دی - راوتل د دې د مني پر طریقه

## الدَّفْقِ وَالشَّهْوَةِ مِنَ الرَّجُلِ وَالْمَرْأَةِ

د غورځیدلو د آلې او د خوند که د نر څخه وي او که د ښځې څخه وي -

مسئله! که مني نه راووزي غسل نشته - کوکب دري - در مختار ص ۱۴۸ ج ۱
مسئله! که سړي د رونډ بار پوره کړي او مني رانه وتله غسل پر نشته ولې چه شهوت نشته -

**فائده !** صاحب د در مختار دا منلی دی چه د ښځې پر انزال د فق نسته نو دا ئې حکم مصنف نه کړی ذکر چه! لکن صحیح دا ده چه د دفق معنی بهیدل دی د منی چابک. کما فی الکوکب الدری ص۳۰. نو په دې معنی دفق په ښځه کی هم سته. لکن چونکه د ښځې فرج فراخ دی په ظاهره ئې تاثیر نه معلومیږی.

**فائده !** وتل د منی غسل واجبوی پس نو اوس ښځه که په ویښه وی او که په خوب کی. عینی ص۳۷

**سوال !** ښځه هم په خوب کی شیطان خطا باسی لکه نر ئې او که نه ؟

**جواب !** هو! شیطان ئې خطا باسی لکن دوی د شرم نه وائی او په بهانه د سر په غسل کوی دلیل ئې دا دی! چه په بخاری شریف کی راغلی دی. چه ام سلیمؓ وائی ما سوال وکړی د آنحضرت صلی الله علیه وسلم څخه عَنِ الْمَرْئَةِ تَرٰی فِیْ مَنَامِهَا مِثْلَ مَایَرَی الرَّجُلُ فَقَالَ اَتَجِدُ لِذَالِكَ لِذَّةً قَالَتْ نَعَمْ قَالَ فَلْتَغْتَسِلْ » په باره کی د هغی ښځی چه دا وینی په خوب کی په مثل د هغه چه نر ئې وینی ، یعنی جماع ، پس آنحضرت صلعم وویل چه دې ښځی ته خوند وررکوی. دې ورته وویل چه هو! آنحضرتؐ وفرمائیل چه نو دی غسل وکړی.

**مسئله !** که ښځه د خوب را ویښه سوه او پر توک ئې لوند وو لکن هیڅ شی ئې په یاد نه وو غسل پر واجب دی لکه په نر و کی هم دا غه حکم دی. رد محتار.

# وَالْتِقَاءُ الْخِتَانَيْنِ مِنْ غَيْرِ اِنْزَالٍ

اوهغه نګه غسل واجبوی یوځای کیدهٔ د دوه سنتی دځایو. یعنی د نر د سنتی ځای او ښځی بیله انزاله.

یعنی بیله او د رس او ښتو. دلیل ئې دا حدیث دی » اِذَا الْتَقَى الْخِتَانَانِ وَغَابَ الْحَشَفَةُ وَجَبَ الْغُسْلُ اَنْزَلَ اَوْ لَمْ يَنْزِلْ » ترجمه ! چه سره یوځای سی دوه د سنتی ځایونه د نر او د ښځې. او پټ سی د ذکر سر غسل واجبیږی که انزال سی او که نه

**سوال !** مصنف ولی وویل » مِنْ غَيْرِاِنْزَالٍ »

**جواب !** په انزال سره خو په اتفاق غسل واجبیږی.

**سوال !** د نر د سنتی ځای خو معلوم دی چه هغه زیاتی پوستکی ځنی پری کړی او د ذکر سر ئې ښکاره سی. د ښځې سنتی څنګه ده ؟

**جواب !** په حدیث کی راغلی دی چه عرب ښځې هم په کوچینوالی لکه نر سنتوی. هغه داسی چه د ښځې د فرج پر ما بین د لوړی خوا څخه زیاتی غوښه سته لکه د چرګ چار خول هغه زیاتی غوښه ځنی پری کوی. نو ئې وطی او جماع ډیره مزه کوی. عینی جلد اول.

مسئله ! که چا خپل د ذکر سر د بل چا په دُبُره کې داخل کړي او انزال نه سي غسل یې واجب دی - او د عورت ته د دُبري په والا هم غسل سته احتیاطاً - هدایه ص٣٣

مسئله ! که چا د خرې یا غواسره کار وکړي یعنی حشفه ئې پکښې داخل کړه تو غسل نسته چه انزال نه سي -

مسئله ! که چا په نوکې د ښځې خپل ذکر داخل کړي یائې سر یا بوله تو هم غسل نسته بلندي چه انزال نه سي - هدایه ص٣٣

پوښتنه ! ته بیخي صریح الفاظ استعمالوې ایا دا به د شرم څخه خلاف نه وي ؟

جواب ! د دین په خبرو کې شرم نسته د غسې صریح الفاظ په کتابو کې د فقهې شریف بلکه په احادیثو کې هم استعمال سوي دي - مګر دا فرق دی چه هغه عربي دي - او ما په پښتو ژبه بیان کړي دي - د تعجب وړ خبره دا ده ! چه فقهاء د دغو الفاظو څخه شرمیدل او موږ به شرم کوو - مثلاً ذکر - عربي - غڼ پښتو - قُبُل - عربي - کُس - پښتو دُبُر - عربي - کونه - پښتو - خصیتین - عربي - خوټې - پښتو - حشفه - عربي - د غڼ سر فرج - عربي - غڼ او کُس د واړه - پښتو -

او دې قسم نور الفاظ هم سته - نور د غه په فقه شریفه کې چه کتابونه ئې عربي دي نه استعمالیږي ؟ یقیناً استعمالیږي - نو موږ چه د عربي کتاب ترجمه ئې په پښتو کوو د دغسې الفاظو په ترجمه کې څه وفرمایو ؟ ایا بیرته هغه عربي الفاظ استعمال کړو - نو ترجمه څه فائده وکړه - او که په بلا کې سره تعبیر وکړو - البته عقلمندو طالبانو چه د دغو الفاظو په ترجمه خبر دي د ترجمې ضرورت نسته - لکن کوچنیان او کوچنۍ نجیلۍ ته بایده په ترجمه کې صریح الفاظ ایراد سي - چنانچه اردو شریف والا یا فارسي والا هم د عربو کوي - نو په دغنا طرح موږ هم په ځنې ځایو کې د غه پښتو الفاظ استعمال کړي دي -

# اِذَا تَوَارَتِ الْحَشَفَةُ وَالْحَيْضُ وَالنِّفَاسُ

هغه وخت غسل واجبیږي چه حشفه د نر د ښځې په فرج کې پټه سي - او حیض و نفاس غسل واجبوي

پوښتنه ! چه کمه مده د حیض د امام اعظمؒ په مذهب کې درې ورځې ده - او لویه مده ئې لس ورځې ده -

مسئله ! که د ښځې د حیض وینې تر لسو ورځو کم قطع سوې میړه ئې کار یعنی جماع نه سي ورسره کولای څو چه غسل ئې نه وي کړي - یا د یوه لمانځه وخت نه وي

پس تیر سوی. او که پرلس ورځی وړاندې د هغه تر غسل نه هم وطی روا دی. رد محتار. هدایه.

مسئله! میړه ته د خپلې ماینې څخه په وخت کې د حیض هر قسم نفع اخستل روا دی. لکن تر پرتکا بنې لاندې دې کاره نه په لرې د احتیاط د پاره. چه جماع ځنې ونه سی.

مسئله! که چیرې د ښځې وینې تر لس ورځې تیرې سوې یا هغه وینې استحاضې بولې. غسل دې وکړي او لمونځ دې کوي او میړه ورته تلای سی. لکن معذوره ده هر لمانځه ته به اودس تازه کوي او اکثره مده د نفاس څلویښت ورځې ده اقل ئې هغه ده چه وینه ئې قطع سوې وی. نور تفصیل به وروسته راسی.

## وَسَنَّ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْغُسْلَ

او سنت کړلی دئ رسول الله صلی الله علیه وسلم غسل د جمعې د پاره او د کوچنی اولوی

## لِلْجُمُعَةِ وَالْعِيدَيْنِ وَعَرَفَةَ وَالْإِحْرَامَ

اختر د پاره. او د عرفات د ورځې د پاره چه پر عرفات وی. او د حج او د عمرې د پاره.

دا څلور قسم غسلونه د قدوری پر مذهب سنت دی. او بعضی علماء وائی چه دا څلور سره مستحب دی. هدایه ص۲۱. په رد محتار کې وائی چه دا غسلونه د سنن زوائدو څخه دی بو س ز نش په پرېښوولو کې نسته.

مسئله! غسل د جمعې د ورځې او د دوو اخترو د پاره د لمانځه دی. دا هم ظاهر روایت دئ. او دا قول د امام ابو یوسف دئ او دا هم صحیح ده. رد محتار ص۱۵۲/۱

او حسن بن زیاد رح ئې د پاره د ورځې بولي. نو که څوک د جمعې یا د اختر په ورځ سهار غسل وکړي او لمانځه ته ئې او دس مات سی بیا او د س تازه کړي. سنت ئې نه سو په ځای.

مسئله! دا غسلونه پر هغه چا سته چه د جمعې یا د اختر لمونځ پر کیږی نو پر ښځو پر نابالغ او پر قریه یعنی کلی والا باندې نسته. او که دوړځې د پاره وائی نو پر ښځو او کلی والا به هم وائی.

حکمت! ما سوا د احرام د غسل د دغو نورو غسلو فلسفه دا ده چه دا ورځې د جمع کیدو د مسلمانو دی په جامع مسجد کې یا په عیدگاه کې یا پر عرفات باندې نو غسل د دې د پاره دی کوی او سنت دئ چه یو و بل ته د خولې او بدن په بد بوئ سره آزار ورنه کړي.

فائده! شریعت مبارک د خولې د بوئ آزار یو و بل ته نه خوښوی. نو د بشکلو یا و هلو یا مال خوړلو وغیره آزار به څه وی.

## وَلَيْسَ فِي الْمَذْيِ وَالْوَدْيِ غُسْلٌ وَفِيْهِمَا الْوُضُوْءُ

او نشته د مذی په وتو سره یا د ودی په وتو سره غسل - او د دغو دواړو په وتو سره اودس لازمیږی

پوهیږه! چه منی د نر خټه سپینه او بډه دی او سرېښ ناکړدی چه د هغه په وتو سره ذکر ماتیږی او د ښځې منی ژړ او بډه دی نرۍ - او مذی هغه نرۍ سپینې او به دی چه په وخت د ستړی د نرا او ښځې د ذکر ځنې د نر کراره کراره وځی او ذکر نه ماتیږی - او شهوت ماتوی - او ودی ختې او به دی چه تر بولو وروسته وځی بیله کوم شهوته -

فائده! د ودی وتل که دیر سی وهغه ته جریان وائی - او سبب د کم والی د جوهر د دماغ کرځی او ضعف د بدن دی تنگ ژوب والی وه سره پیدا کیږی - طبی علاج نی کول په کار دی -

## فَصْلٌ - وَالطَّهَارَةُ مِنَ الْأَحْدَاثِ جَائِزَةٌ

او پاکی (که اودس وی که غسل وی که د کالو پریوله وی) د بی او د سیانو ځنې روا دی

## بِمَاءِ السَّمَاءِ وَالْأَوْدِيَةِ وَالْعُيُوْنِ وَالْآبَارِ وَالْبِحَارِ

په اوبو د اسمان یعنی د باران په اوبو - د شیلو په اوبو او د چینو په اوبو او د څاهانو په اوبو او د د . یا بو په اوبو - که جاری وی چه هغه ته په پښتو کښې ود وائی او که ولاړې وی چه هغه ته په پښتو د . یاب وائی

سوال! په اوبو د ولوهم اودس روا دی هغه نی ولی نه کړی ذکر؟

جواب! واله په رود کی داخله ده په عربی ژبه کی که څه هم فرق نه لری - په پښتو کی فرق سره لری -

## وَلَا تَجُوْزُ الطَّهَارَةُ بِمَاءٍ اُعْتُصِرَ مِنَ الشَّجَرِ وَالثَّمَرِ

او نه ده روا پاکی په هغه اوبو سره چه په نښتیځلو سره راوېزی د د ونې یا د میوې ځنې لکه د انگورو ځنې.

فائده! د قدوری د عبارت ځنې داسی فهمیږی - که اوبه پخپله د د ونې ځنې و څڅیدلې لکه تاک چه بېرې کړی نو اودس په روا دی - او صاحب د مجتبی او نورو علماؤ لکه صاحب د هدایه هم ودغه ته تللی دی - لکن بحر رائق والا وائی چه په هغه اوبو اودس نه دی روا - کوکب دری ص۶

## وَلَا بِمَاءٍ غَلَبَ عَلَيْهِ غَيْرُهُ فَاَخْرَجَهُ عَنْ طَبْعِ الْمَاءِ

او نه په هغو اوبو اودس روا دی چه پر غالبه سی یعنی دیر سی پر د غه اوبو بل شی - لکه خاوری -

یا ږیک۔ پس وباسی دغه اوبه د خپل طبیعت څخه۔ طبیعت د اوبو سیلان یعنی بهیدل دی۔

مسئله! که چیری بیله دغو اوبو کوم چه قدوری وائی چه طهارت نه دی پری روا۔ نوری اوبه نه وی نو سړی به و لمانځه ته تیمم وهی۔ کذا فی الهدایه ص۳۹ ج۱

## كَالْأَشْرِبَةِ وَالْخَلِّ

لکه شربتونه۔ او لکه سرکه۔ چه د انګورو څخه او د ونو څخه او د خرما څخه جوړیږی۔

پوه سه! چه بعضی شربتونه د ډیرو ختو څخه جوړیږی۔ او بعضی د د ختو د میوو څخه جوړیږی۔ او بعضی د ډیرو ختو یا نو څخه تیاریږی۔ په دی طهارت نه دی روا۔ درمختار ص۱۶۰

## وَالْمَرَقُ وَمَاءُ الْبَاقِلٰی

او لکه ښوروا او د هر قسم غوښو ښوروا چه وی او دس نه دی پری روا او د باقلی اوبه۔ یعنی چه باقلی پخښی ایشیدلی وی او تغیر ئی پیدا کړی وی او اجزاء د باقلیو پخښی که سوی وی۔ او که د باقلی په اوبو کی خشته کړی وی نو کی خو هم دا اوبه رنګ ته تغیر ورکړی وی طهارت پری روا دی۔ هدایه

## وَمَاءُ الْوَرْدِ وَمَاءُ الزَّرْدَجِ

او په اوبو د ګلابو (چه د ګلابو د بلکو څخه ئی وباسی) او په اوبو د زرده کو (چه د زرده کو یا ملو څخه ئی وباسی) او دس نه دی روا۔

مسئله! په شید وهم او دس نه دی روا۔

## وَتَجُوزُ الطَّهَارَةُ بِكُلِّ مَاءٍ خَالَطَهُ شَيْءٌ طَاهِرٌ فَغَيَّرَ أَحَدَ أَوْصَافِهِ

او روا دی او دس په هغه اوبو سره چه ګډ سوی وی په هغو اوبو پاک شی پس تغیر ورکړی و یوه صفت ته د اوبو

پوه سه! چه اوصاف د اوبو دری دی۔ خوند۔ رنګ۔ بوی۔ د عبارت څخه د قدوری داسی معلومیږی۔ که چیری هغه طاهر شی دوه اوصاف یا دری اوصاف د اوبو ورته بدل کړی نو طهارت نه دی پری روا۔ لکن صحیح دا دی چه تر هغو پوری چه سیلان او بهیدل د اوبو پاته وی او دس پری روا دی۔ ولی چه تر ډیرو ختو لاندی چه غټ حوض وی د منی په موسم کی د هغو ډیرو ختو بلکوڼ په حوض کی ډیر تویږی۔ حتی چه بوی رنګ او خوند ئی دری سره بدل سی۔ مګر علماء کرام د هغه حوض په اوبو سره او دس تازه کوی۔ او هیڅوک انکار نه ځنی کوی۔ کذا فی النهایه و العنایه علی حاشیة الهدایه ص۲۴

**كَمَاءِ الْمَدِّ وَالْمَاءِ الَّذِي يَخْتَلِطُ بِهِ**

لکه اوبه د سیل - او هغه اوبه چه گډ ه سی په هغه او بو

**الْأُشْنَانُ وَالصَّابُونُ وَالزَّعْفَرَانُ**

بن وخه                یا صابون                یا زعفران

که څه هم د دغو شیانو په گډ یدو سره یو وصف د اوبو تغیر مومی لکه به بروخه سره بوئی په صابون سره خوند په زعفران سره رنګ بدلیږی -

پوهه سه! چه ښکاره خبره ده چه په بروخه سره هم د اوبو خوند او هم بوئی بدلیږی مګر باید داووایو چه د بوئی بدلیده په بروخه ډیر دی - په دی باره کی باید چه د مختار ته رجوع وسی - والله اعلم بالصواب - درویش باګناه محمد عبید الله غفرله -

**وَكُلُّ مَاءٍ دَائِمٍ إِذَا وَقَعَتْ فِيهِ نَجَاسَةٌ**

او هر هغه اوبه چه ولاړی وی هغه وخت چه ولویږی په هغو اوبو کی مرداری

**لَمْ يَجُزِ الْوُضُوءُ بِهِ قَلِيلًا كَانَ أَوْ كَثِيرًا**

نه دی روا په هغه اوبو سره اودس کول - لږ وی مرداری او که ډیره وی -

پوه سه! چه ولاړی اوبه هغه بولی چه نه بهیږی - لکه په څنګریو کی ګرم اوبه یا د څاه اوبه یا که هر څوی څاه جوړ وی - لکن چه هغه ولاړی اوبه واندازی ته د حوض شرعی نه وی رسیدلی - او د حوض شرعی بیان به راسی -

**لِأَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ بِحِفْظِ الْمَاءِ مِنَ النَّجَاسَةِ**

ولی چه نبی صلی الله علیه وسلم امر کړی دی په ساتلو سره داوبو د مردارئ څخه

**فَقَالَ لَا يَبُولَنَّ أَحَدُكُمْ فِي الْمَاءِ الدَّائِمِ وَلَا**

پس فرمایلی دی آنحضرت صلعم چه هرګز دی بولی نه کوی یو ستاسی په ولاړو اوبو کی

## يَغْتَسِلَنَّ فِيْهِ مِنَ الْجَنَابَةِ

او هرګز دې غسل نه کوي په ولاړو اوبو کې د جنابت څخه.

پلوه سره! چه د بولو او نورو مردارو یو فرق نشته. او دا نهی د آنحضرت صلعم په سبب دې دی چه ولاړې اوبه په بولو سره مرداریږي. او دغسې نګه چه غسل پکښې وکړي نو هم هغه اوبه مرداري سوي. اما کې په لوښي کی اوبه راخستي وي او د هغو ولاړو اوبو کی کډیږي. مرداري د بدن په هغو ولاړو اوبو کی کډیږي. ولې اوبه خو پاکې وي. کی او به راخستی وي او د هس یا غسل ئې د باندي تر او بو کا وه بیا روا دی.

## وَقَالَ عَلَيْهِ السَّلَامُ إِذَا اسْتَيْقَظَ أَحَدُكُمْ مِنْ مَنَامِهِ

او ویلی دی آنحضرت صلعم چه څه وخت بیدار سی یو ستاسی د خوبه څخه پس هرګز دې

## فَلَا يَغْمِسَنَّ يَدَهُ فِي الْإِنَاءِ حَتَّى يَغْسِلَهَا

نه غوټه کوي لاس خپل په لوښي کې د اوبو تر هغه وخته پورې چه مینځي لاس خپل

## ثَلَاثًا فَإِنَّهُ لَا يَدْرِي أَيْنَ بَاتَتْ يَدُهُ مِنْ جَسَدِهِ

درې واره ولې چه دی نه دی خبر چه چیرې ئې مالاس شپه تیره کړې ده ئې ماد بدن څخه.

په دې حدیث کې په احتمال د مردار والی د لاس منع وکړه د داخلید و څخه د لاس په لوښي کی. د دې حدیث مبارک څخه داسی معلومیږي چه سړي چه بیده وي امکان لري چه ډېره چه ځای د نجاست دی کوم ولې به وي او به لاس پورې به نجاست مبتلیٰ وي.

مسئله! که د سړي په لاس پورې مرداري نه وه لکن او د س ئې نه ده لودي نو کې به لوښي لاس ننه کړي هغه اوبه نه مرداریږي او او د س پره روا دی. کې نیت د پریولو د لاس نه وو. او کې لاس د پریولو د پاره په ننه کړي هغه اوبه مستعملی سوې او د س نه دی پره روا په اتفاق د اهل مذهب او به مردار والی کی اختلاف دی چه وروسته به راسی. إِنْ شَاءَ اللهُ

## وَالْمَاءُ الْجَارِي إِذَا وَقَعَتْ فِيْهِ نَجَاسَةٌ جَازَ الْوُضُوءُ مِنْهُ

او روانې اوبه چه ولویږي په هغو اوبو کی مرداری روا دی او د س د هغو اوبو څخه بلکه غسل هم پره روا دی او د مردار وکالیو پریولل هم پره روا دی.

إِذَا لَمْ يُرَ فِيهِ أَثَرُهَا لِأَنَّهَا لَا تَسْتَقِرُّ مَعَ جَرَيَانِ الْمَاءِ

کہ چیری نہ معلومیدی پہ او بو کی اثر دھغہ نجاست ولیحچہ نجاست قرار نہ لری سرہ د بہید و د اوبو

پوہ اسہ! چہ اثر د نجاست خوند۔ رنگ او بوئی دی او دا مسئلہ پہ ھغہ نجاست کی دہ چہ

نری وی لکہ بولی شراب وغیرہ ولی چہ ھغہ نجاست دا او بو دیہید و سرہ نہ پاتینی ی۔

مسئلہ! کہ چیری دا وبو رفتار دیر سست وو چہ د ھغہ نجاست اثر پکبنی معلومیدہ

نو پہ ھغو اوبو اودس نہ دی روا۔

مسئلہ! کہ چیری ھغہ مردار ی مونږ ت والا وہ لکہ د انسان گند کی یا یو مردار سوی

حیوان نو کہ چیری ھغہ اوبہ چہ د د غہ مردار شی سرہ مُبتلی تر مردار ی دیری وی۔ نو

اودس پہ ھغہ ځای ھم روا دی۔ او کہ اوبہ لږ وی تر ھغہ مردار شی۔ نو د مردار شی

پہ برابر اودس نہ دی روا او بل ځای روا دی۔ کوکب دری شرح قدوری صـ

وَالْغَدِيرُ الْعَظِيمُ الَّذِي لَا يَتَحَرَّكُ أَحَدُ طَرَفَيْهِ بِتَحْرِيكِ

او ھغہ کرکی یا حوض لوی چہ نہ بنوری یو طرف د د ہ پہ بنورولو سرہ

الطَّرَفِ الْآخَرِ إِذَا وَقَعَتْ نَجَاسَةٌ فِي أَحَدِ جَانِبَيْهِ

د ھغہ بل طرف۔ کہ چیری ولویږی مردار ی د ھغہ پہ یوہ طرف کی

جَازَ الْوُضُوءُ مِنَ الْجَانِبِ الْآخَرِ لِأَنَّ الظَّاهِرَ

روا دی اودس د ھغہ بل طرف نہ د حوض۔ ولی چہ بنکا رہ خبرہ دا دہ

إِنَّ النَّجَاسَةَ لَا تَصِلُ إِلَيْهِ

چہ مرداری نہ رسیږی ھغہ بل طرف تہ۔

دلیل ئی دا دی۔ چہ تاثیر د بنورولو دیر دی تر تاثیر د نجاست نو چہ د بنورولو

تاثیر نہ رسیږی۔ د نجاست تاثیر ھم نہ رسیږی۔

مسئلہ! امام اعظمؒ بنورول د غسل معتبر بولی۔ او امام محمدؒ بنورول پہ

وخت کی د اودا سہ معتبر بولی۔ ھدایہ صـ۱۲

یوه تنبیه! چه دا اندازه د حوض مذهب دی زموږ د مذهب د عراقي فقهاؤ . او د بخارا فقهاء زموږ د مذهب وائي چه لوی حوض هغه دی چه لس گزه په لس گزه کې وي . یعنی مخ د اوبو سل گزه مربع وي . او دا وخلکو ته آسانه ده . ولې چه معینه اندازه ده . وعلیه الفتوی . هدایه ص۲۲

مسئله! معتبر گز د کرباس دی چه شپږ موټه دی . کوکب دري . او ځینې وائي او وهمو ته دی فتح القدیر

مسئله! ژوره والی د اوبو به کمه اندازه کم دومره وي چه په غبرګه اخستلو سره به ځمکې ته نه رسیږي . وهو الصحیح . هدایه . او ځینې وائي چه یوه لویشت ژوره والی غواړي . فتح القدیر .

## وَمَوْتُ مَا لَيْسَ لَهُ نَفْسٌ سَائِلَةٌ فِي الْمَاءِ لَا يُفْسِدُ الْمَاءَ

او مرګ د هغه شي چه نه وي هغه شي لره وینه بهیدونکې په اوبو کې نه مرداره وي اوبه

## كَالْبَقِّ وَالذُّبَابِ وَالزَّنَابِيرِ وَالْعَقَارِبِ

لکه غوماشه او مچ او غالبوزي هر قسم چه وي . او لړماڼ .

او امام شافعي وائي چه د دغو شیانو په مرګ سره په اوبو کې اوبه مرداریږي . او زموږ لره حدیث د سلمان فارسي دلیل دی چه آنحضرت صلی الله علیه وسلم وفرمایله . چه هر هغه خوراکي شي یا اوبه چه په هغه کې مړ سي هغه شي چه وینه بهاندونه نه لري پس هغه حلال دی خوړک و څښک ئې . او اودس تازه کول په هغه اوبو روا دی . کوکب دري . هدایه ص۲۲

## وَمَوْتُ مَا يَعِيشُ فِي الْمَاءِ لَا يُفْسِدُ الْمَاءَ

او مرګ د هغه شي چه ژوند کوي په اوبو کې نه مرداره وي اوبه

## كَالسَّمَكِ وَالضِّفْدَعِ وَالسَّرَطَانِ

لکه ماهي که غټ وي که کوچنی . او لکه چنګوښه که څه هم غټه وي . او لکه چنګاښ .

مسئله! هغه حیوان چه د باندې تر اوبو پیدا کیږي که څه هم په اوبو کې ګذاره کوي د هغه په مرګ اوبه مرداریږي . لکه ایلمه - زاني .

مسئله! د اشیان که په شید و یا سرکه او یا په بل نرم شي کې مړه سي فرق نه لري یعني هغه شی نه په مرداریږي . فتح القدیر .

# وَالْمَاءُ الْمُسْتَعْمَلُ لَا يَجُوْزُ اِسْتِعْمَالُهٗ فِيْ طَهَارَةِ الْاَحْدَاثِ

او مستعملې اوبه نه دي روا استعمال ئي د سره غځه په پاکولو کې د بې اودسيانو.

يعنې چه يو وار مستعملې سي بيا په هغو اوبو نه اودس روا دئ او نه غسل.

مسئله! په مستعملو اوبو کې اختلاف دئ. امام شافعيؒ او امام مالکؒ وائي چه اندامونه په ظاهر نجاست مردار نه وي په هغو مستعملو اوبو ديږ وار روانه اودس روا دي.

او امام زفرؒ وائي که مستعملوونکي اودس د ره لودی. اوبيا ئي اودس وکړي هغه مستعملې اوبه هم پاکې دي او هم اودس په روا دئ. او که بې اودسه وو نو هغه اوبه پاکې دي. يعنې شي نه په مرداروي. مګر اودس نه دي په روا. او امام اعظمؒ او امام ابو يوسفؒ وائي چه مستعملې اوبه مرداري دي. او امام محمدؒ وائي چه مستعملې اوبه پاکې دي شي نه په مرداروي لکن اودس يا غسل نه دئ په روا. وَعَلَيْهِ الْفَتْوٰى الْمُفْتٰى بِهٖ. کوکب دري ص

مسئله! مصنفؒ داسې ويل دي فِيْ طَهَارَةِ الْاَحْدَاثِ. ولې چه نجاست او مرداري په نه الله وي. په روايت د امام محمدؒ د امام اعظمؒ څخه هغه اوبه مرداري دي.

# وَالْمَاءُ الْمُسْتَعْمَلُ كُلُّ مَاءٍ اُزِيْلَ بِهٖ حَدَثٌ

او مستعملې اوبه هرهغه اوبه دي چه زائل کړه سي په هغو اوبو سره بې اودسي. يا د جنابت او يا کو چنۍ بې اودسيا

# اَوْ اُسْتُعْمِلَ فِي الْبَدَنِ عَلٰى وَجْهِ الْقُرْبَةِ

او يا استعمال کړه سي په بدن کې پر طريقه د ثواب.

لکه سړی چه اودس لري د ثواب د پاره بل اودس تازه کړي. يا ثواب غسل وکړي.

مسئله! که په اوبو نجاست حقيقي (لکه بولې. ګندګي. يا شراب) پريمنځي يا استنجاء په وينځي يا مردار کالي په پريمنځي هغه اوبه په اتفاق مرداري دي. او هغه اوبه چه پاک شي په پريمنځي پاکې دي او اودس هم په روا دئ په اتفاق سره. کوکب دري ص

مسئله! که چا اودس د ره لودی او به نيت د خنکي د بدن (نه په نيت د ثواب) ئي اودس تازه کړي هغه اوبه مستعملې نه دي. هدايه ص

ﻫ ولي چه نيت د ثواب ګناه توييږي او ګناه لکه نجاست حکمي ده کذا في البحر و منه

## وَكُلُّ إِهَابٍ دُبِغَ فَقَدْ طَهُرَ

او هر هغه اوم پوست (که د حلال شي وي لکه پسه اوبن وغيره او که د مردار شي وي لکه گيدړه د شغال ليوه وغيره) چه پوخ سي په تحقيق هغه پوست پاک سو۔

مسئله! پخيده د پوست رقم رقم دی۔ په بروخه۔ په بار کو۔ په مالګه۔ په خاورو۔ په لمر۔ کوکب

مسئله! دا هغه پوستکی دی چه پختيا قبلوی نو د مار او موږک پوست خارج سو۔ فتح القدير

مسئله! د هغه حيوان پوست چه په دباغ پاکيږی د هغه حيوان پوست په حلاليدو سره هم پاکيږی مثلاً ګيدړه يا ليوه مسلمان حلال کی پوست ئې پاک سو۔ هدايه صـ۴۲

مسئله! هغه چه هدايه والا وائی چه په حلاليدو سره ئې غوښې هم پاکيږی کڅه هم خوړک ئې نه دی روا۔ او په باب کی ئې ويلی دی وهوالصحيح۔ امّا نهايه والا وائی چه صحيح مذهب زموږ دادی چه غوښې د هغه حيوان چه د اصله مردار ی وی مرداری دی په حلاليدو نه پاکيږی۔ او ډير شارحان د هدايه هم پر دغه دی۔ فتح القدير۔

مسئله! هغه پوست چه د باغت ئې په دول وسی لکه بارک او مان هغه چه لوند سی نه مرداريږی۔ او که په لمر يا خاورو ئې رطوبت وچ سو هغه پوست ته چه اوبه ورسيږی او لوند سی د امام اعظمؒ څخه دوه روايته دی په يوه روايت کی وائی چه بيرته مرداريږی۔ او امام محمدؒ وائی چه دبغ سوی پوست بيا نه مرداريږی۔ کوکب دری صـ

## جَازَتِ الصَّلٰوةُ فِيْهِ وَالْوُضُوْءُ مِنْهُ

روا دی لمونځ په هغه پوست کی (مثلاً که پوستين څنی جوړ کړی او که مصلی کړی لمونځ پر روا دی) او اودس

## إِلَّا جِلْدُ الْخِنْزِيْرِ وَالْاٰدَمِيِّ

تانه کول د هغه پوست څخه (مثلاً کرتۍ يا مشکوله څنی جوړ کړی) مګر پوست د سرکوزی (چه نجس العين دی په هيڅ دول نه پاکيږی) او د انسان پوست (په سبب د کرامت)

په محيط او بدائع کی وائی چه د انسان پوست دبغ قبلوی لکن د انسان پوست کښل او نفع په اخستل حرام دی۔ کڅه هم هغه انسان کافر وی۔

اوکی چيری د انسان پوست دبغ کړه شي هغه پاک دی لکن استعمال يه حرام دی۔ در صـ۱۸۸ منه

# وَشَعْرُ الْمَيْتَةِ وَعَظْمُهَا طَاهِرٌ

او ویښتان د مردارې او هډوکي د مردارې پاک دي۔

مسئله: او داپه سیاک د سرکوزې دي۔ او د مردارې پلي او ښکر او نوکان هم پاک دي۔ کوکب دري

# وَشَعْرُ الْإِنْسَانِ وَعَظْمُهُ طَاهِرٌ

او ویښتان د انسان او هډوکي د انسان پاک دي۔

یعني که د سړي په جیب کې د انسان ویښتان یا هډوکي وي لمونځ ورسره روا دی لکن استعمال ئې په سبب د کرامت ناروا دی او دغه رنګه خرڅول ئې۔ هدایه ص۴۵

مسئله: که د ښځې خپل ویښتان لنډ وي د بلې ښځې یا نر ویښتان په کښې جاړ ول حرام دي۔

تفریع: نن صبا یو مریض ته چه هغه د جراحي۔ اپریشن ضرورت لري او ډاکټران وئې ته وائي چه دغه مریض هومره جراحي کوو که وینه د بل انسان ورنه کړه سي۔ یعني د رګو په ذریعه د ده ته وینه نسي پیچکاري۔ او د ماهرینو تجربه کاره و ډاکټرانو په نظر دغه مریض چه جراحي نه سي مري۔ او که جراحي بیله وینو وسي هم مري۔ او بل انسان یا په بیعه یا مفت خپله وینه ور کوي۔ آیا دغه انسان چه مریض دی د وینې د انسان پیچکاري کول روا دي او که نه دي۔ او بیعه اخستل ئې روا دي که ناروا؟

جواب: د خدای په توفیق۔ جراحي یا اپریشن په دغه عنوان چه اوس کیږي۔ یا پیچکاري یا انتقال د وینې چه اوس معمول دی۔ د متقدمینو یعني د مجتهدینو په وخت کې نه وو۔ تاچه د وې مباره کانو خپل شخصي نظر او فتوی په دې باب کې ښکاره کړې وای۔ او دا هم ښکاره خبره ده چه د فقهاؤ[1] په شخصي توګه نه ده راغلې البته د قواعدو د دین څخه داسې معلومیږي چه په بالا تیر سوې صورت کې دا د انسان د وینې څخه نفع اخستل روا دي۔ دغه قواعد دا دي۔

(۱) فقهاؤ تول وائي او د فقهي شریفې په ټولو کتابونو کې نوشته دي "الضرورات تبیح المحظورات" یعني ضرورت ته مباح ګرځوي ممنوع او حرام شیان۔ نو ترد غه جراحي او اپریشن په لوی ضرورت څنګه وي۔ چه مریض د ډاکټرانو په اتفاق د مرګ سره مخامخ دی که وینه ورپیچکاري نه سي۔ ترد ی

(۲) تول فقهاؤ[2] او مجتهدین په یوه خوله وائي که یو سړی په داسې لویه مبتلا سو چه

دده دا او تقین چه د اوږې ئې څخه مرهم - او بیله مردار وغوښو مثلاً بل د خوړک شي نه وي نو د غه سړي ته د دغو غوښو خوړل روا دي. اما د ونه قدر چه د مرګ څخه په خلاص سي. نو د غه جراحي ضرورت د لوږې تر ضرورت کم دی؛ هرګز نه دئ کم. ولې چه په د واړو کې د مرګ بیره سته.

(۳) په صحیح کتابو کې د حدیثو او په ټولو کتابو کې د فقهې راغلي دي. که یو چا و بل چا ته پیشر واو د همکې د وژلو ورکړه. که چیرې هغه سړی کلمه د کفر نه وواي. او د هغه سړي هم غالب ګمان دا وي که نه کلمه د کفر نه و وایم ما وژني. نو د غه سړي د ځان د ساتلو د پاره کلمه د کفر صرف په ژبه وویل روا دئ. لکن په زړه کې ئې مستحکم ایمان وي دا موضوع د آنحضرت صلی الله علیه وسلم په وخت کې یو صحابي ته پیښه سوې ده.

(۴) فقهاء وائي کر یو چا یو مسلمان په مرګ سره تهدید کړئ که بت ته سجده ونکړې هغه مسلمان ته د بت سجده روا ده. نو د وینو پیچکارې ورد غه مریض ته چه بیان سو د کفر تر کلمه یا د بت تر سجده ډیره بده ده. بلکه نه ده.

(۵) د امام ابویوسف څخه روایت دئ چه د اوبنانو بولې د استسقاء د مریض د پاره اوس هم چنبل روا دی. د غه مختصر موضوع کان چه بیان سوې په ټولو مذهبي کتابو کې سته. څوک دې دا نه وائي چه پېرتولې د کان حواله ده. حاسد کله کاهي داسې خبرې کوي.

بیت! چشم بر اندیش که بر کنده باد      عیب نمایش هنرش در نظر

اما دوهم سوال جواب دادئ چه وینه ورکول ونکې ته دوینې خرخول حرام دي. ولې چه دانسان جزء خرخول په اتفاق حرام دي.

داو هاغریب کوعلمه وینا      والعلمُ الکامل عند الله

---

داهاب په باره کې ضروري معلومات! داهاب د پاکوالي په دبغ سره دلیل دا قول د آنحضرت صلی الله علیه وسلم دی "ایما اهاب دُبغ فقد طهر" رواه الترمذی. یعنی هر هغه پوست چه دبغ سي په تحقیق هغه پاک سو.

دا حدیث د موږ د خوا دلیل دی پر امام مالک چه هغه وائي چه حیوان مردار سي د هغه پوست نه پاکیږي حتی دي وائي چه د مردار سوي پوست که څه د بغ سي لمونځ نه دی پر روا او نه بله نفع ځنې اخستل.

# فَصْلٌ فِي الْبِيْرِ

فصل دئ په بيان کی داحکامو دخاه - يعنی چه مس داری یا حیوان وه ولويږی

## اِذَا وَقَعَتْ فِي الْبِيْرِ نَجَاسَةٌ نُزِحَتْ

چه ولويږی په خاه کی مرداره شی نو وچ دې کړی هغه خاه (اوبه دی توکی ځنی وکاږی)

## وَكَانَ نَزْحُ الْمَاءِ طَهَارَةً لَهَا

او دئ کښل د ټولو اوبو پاکوالی د پاره د خاه -

مسئله ۱ که هغه نجاست په ستر کو معلومیده نکه نجس توکی یا مرداره پوست یابل دغسی شی - نو اول دی هغه نجس ځنی وکاږی او بیا دی وچ کړی - او که نجاست په ستر کو نه معلومیدئ نکه بولی - شراب نو صرف خاه دی وچ کړی -

پوهه سه ۱ په مسائل دخاه برافوالو دنبی علیه الصلوٰة و السلام بناء دی - هدایه صلا یعنی عقل او قیاس کاره نه یکښی لری - ولی دعقل دلاری که دخاه اوبه توکی مرداری وی نو ختی او دیوالونه هم مردار دی نو چه اوبه تولی را وکاږی نوی اوبه دچینو څخه راوزی خو هم په هغو مردارو ختو سره بیرته مرداریږی حکم بشرح چه یوا مام دی وائی خاه چه مردار سو بیا دهیشه دپاره نفع نه دکه په راوزبیا پاکیږی - او بل قیاس داهم وائی چه د خاه څخه چه اوبه راخیزی او دچینو دخوا نوری اوبه پیدا کیږی - نو نکه حوض دحمام باید کی سره مردار نه سی - نکه په یوه روایت کی دامام محمدؒ څخه داغسی هم راغلی دی - نهایه صلا

مسئله ۱ خاه چه وچ سو ختی دیوالونه د برکی سو لاغه رسی دا او بوره آکښونکی لا سونه ټوله پخپله پاک سوه - کوکب دری صلا

## فَإِنْ مَاتَتْ فِيهَا فَارَةٌ أَوْ عُصْفُوْرَةٌ أَوْ صَعْوَةٌ أَوْ

که مړسو په خاه کی موږک یا چوغکه - یا سور سری کوچنی چوغکه - یا

## سُوْدَانِيَّةٌ أَوْ سَامُّ أَبْرَصَ نُزِحَ مِنْهَا مَا بَيْنَ

توره دلی ډک - یا کرپوړی - نو و دی کاږی د هغه خاه څخه په مابین کی

## عِشْرِيْنَ دَلْوًا اِلٰى ثَلٰثِيْنَ بِحَسْبِ كِبَرِ الدَّلْوِ وَ صِغَرِهَا

د شلو سو لغو تر دیرشو پورې په حساب او اندازه د لوئ والي د سولغې او د کوچنی والي د هغې

یو کاسه اچه د شلو سو لغو کښل واجب دی او لس نورې مستحب دی. لکن موږ کبلب یا هغه بل حیوان دی او ل د څاه څخه وکاږی۔

مسئله! دا حکم په هغه وخت کی دی چه موږ ک زخمی نه وی یا د پیشی څخه په مغاست کی نه وی۔ او که زخمی وو په وینو د څاه ټوله مردار یږی۔ او که د پیشی څخه مغاستې نو دی طبعًا بولی کوی نو بیا هم او به ټولی مرداریږی دی۔ کوکب دری۔ مث

مسئله! که دغه مذکوره شیان ژوندی را وکښل سی نو څاه نه دی مردار۔ نهایة

فائده! مصنف ووېل بحسب کبر الدلو و صغرها، د دې معنی دا ده چه اعتبار د مردار څاه اصلی سولغې لره دی که لوی وی او که کوچنی۔ او بعضی علماؤ وائی چه اعتبار میانه سولغې لره دی۔ او بعضی ملایان وائی چه د یوې کاسې په اندازه د سولغې ته دی حساب وکړي۔ لکن د مصنف خبره اعلی ده۔ او کې چیرې د څاه چیله سولاغه او به نه راکښي بلکه په لوی تیم ئی راکښلې هغه تیم ته دی د څاه په سولاغه حساب کوی۔ وَعَلَيْهِ الْفَتْوٰى۔

## وَاِنْ مَاتَتْ فِيْهَا حَمَامَةٌ اَوْ دِجَاجَةٌ اَوْ سِنَّوْرٌ

او که مړه سوه په څاه کی کوتره او یا چرګه او یا پیشی۔ و دی کښل سی د هغه

## مِنْهَا مَابَيْنَ اَرْبَعِيْنَ دَلْوًا اِلٰى خَمْسِيْنَ

څاه څخه په مابین کی د څلویښتو سولغو تر پنځوسو پورې (چه څلویښت ئی واجب دی او پنځوس ئی مستحب دی)

## وَاِنْ مَاتَ فِيْهَا كَلْبٌ اَوْ شَاةٌ اَوْ اٰدَمِيٌّ

او که مړ سو په څاه کی سپی او یا پسه یا انسان۔

مسئله! د سپی مرګ نه دی شرط کې ژوندی را وکښې هم به ټوله څاه وچوي۔ کوکب دری مث

مسئله! انسان که ژوندی را وکښل سو که ئې چیرې او د سن د لوړی او به پاکی دی او که بې او د سه وو څلویښت سولغې دی را وکاږی او که جنب وو ټوله څاه دی وچ کړي۔ کوکب

مسئله! هر حیوان ماسوا د سپی او د سرکوزی څخه چه و څاه ته ولویږی او ژوندی

را وکېښل سي کوږي خوله او بوتره نه وي نو سيدلي څاه پاک دی. او که ئې خوله او بوتره سيدلي وي نو کې پسخوره ده پاکه وي لکه د انسان نو څاه پاک دی. کې پسخوره ده مرداره وي لکه د چغال او کيدړي نو څاه ټول مردار دی. او کې پسخوره ده مکروه وي او به مکروه دی. مستحب داده چه لس سولغې دی را وکاږي. او کې پسخوره ده مشکوکه وي لکه دخره نو ټول څاه دی وچ کړي. نهايه حاشيهٔ هدايه ص۴۲

نُزِحَ جَمِيعُ مَافِيهَا مِنَ الْمَاءِ وَإِنِ انْتَفَخَ الْحَيَوَانُ فِيهَا

ودی کښل سي ټول اوبه چه په څاه کې وي. (يعنی وچ دی سي) او که وپړسيدي حيوان په څاه کې او يا

أَوْ تَفَسَّخَ نُزِحَ جَمِيعُ مَافِيهَا صَغُرَ الْحَيَوَانُ أَوْ كَبُرَ

وشو پېدي (ټکړې ټکړې سو) ودی کښل سي ټول هغه اوبه چه په څاه کې وي. که کوچنی وي هغه حيوان او که لوئ وي. ولحکه ده د بدن ټول اجزاء او رطوبت په او بوکښ سوه. هدايه ص۴۲

وَعَدَدُ الدِّلَاءِ يُعْتَبَرُ بِالدَّلْوِ الْوَسَطِ الْمُسْتَعْمَلُ

او حساب د سولغو معتبر دی په هغه سولغه ميانه چه مستعمليږي د پاره د څاهانو په ښارو

لِلْأَبَارِ فِي الْبُلْدَانِ فَإِنْ نُزِحَ بِدَلْوٍ عَظِيمٍ

کې. (مقصود دادی چه د هر څاه خپله سولغه معتبره ده) که ئې را وکښی او به په يوه لويه سولغه

يَسَعُ قَدْرًا مِنَ الدِّلَاءِ الْوَسَطِ احْتُسِبَ بِهِ

چه ځايولی هغې لوی سولغې يوه اندازه د ميانه ئ سولغو څخه (يا دوه يا درې يا څلور مثلاً) هغه ته دحسا وکړه سي په دغه ميانه سولغه حتی که ئې په لويه سولغه ټول قدر واجب را وکښلې بس کافي دي. کوکب دري ص۸

وَإِنْ كَانَتِ الْبِئْرُ مُعِينَةً لَا يُمْكِنُ نَزْحُهَا

او که چيری وو څاه چشمه خينه (ديری چشمې ئې در لودې) چه ممکن نه وو ټول اوبه کښل ئې. يعنی وچيدل ئې ممکن نه وه.

## وَقَدْ وَجَبَ نَزْحُ مَا فِيْهَا اُخْرِجُوْا مَا كَانَ فِيْهَا مِنَ الْمَاءِ

او حال دا دی چه واجب تولې اوبه کښل وه ـ او دی کا بنړی هغه اندازه اوبه چه په وخت کی د ښکیل والی په څاه کی وی

د ذې اندازه معلوموول پر دریو لارو کیږی!

اول ـ د څاه داوبو اندازه دی په یوه لکړه معلومه کړی او د څاه پسور دی هم معلوم کړی نو بل ځای دی نژدی په هغه اندازه غار وکینی د څاګه دی او بیا کا بنړی په هغه غار کی دی اچوی چه غار ډک سی او به د څاه پاکی سوی ـ

دوهم ـ یوه لکړه یا او بډ د نل دی وځاته ور ښوره کړی او د څاه داوبو اندازه دی معلومه کړی ـ بیا دی چابک چابک لنبی سولغی ور وکابنړی او بیا دی لکړه یا نل ور ښوره کړی چه په لس سولغو څو مره اوبه کمیږی یا کمی سوی ـ نو بیا دی پر لس لس سولغی حساب ور ته کوی ـ تا چه لکړه ختمه سوه څاه پاک سو ـ

دریم ـ دوه کسه داسی کسان چه د اوبو په ذریه او نور پوهیږی پیدا کړی هر وخت چه هغو دوو کسانو وویل چه اوبه نوی سوی څاه پاک سو ـ هدایه ص۴۲

او د امام اعظمؒ څخه روایت دی چه پاکی د دغه څاه په رایه پوری د خلګو ده تړی که د دوی داغالب ګمان سو چه د څاه نړی او به ور و ختلې څاه پاک سو ـ

## وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْحَسَنِ يَنْزَحُ مِنْهَا مَا ئَتَا دَلْوٍ اِلٰى ثَلٰثِ مِائَةٍ

او د امام محمد بن الحسنؒ څخه روایت دی چه و دی کا بنړی د هغه مردار څاه څخه دوه سوه سولغی تر دریو سوو پوری

یعنی دوه سوه واجبی دی او تر ټول نوری مستحبی دی ـ علماؒ وائی چه امام محمدؒ دا فیصله پر غالبه څاګانو د بغداد کړی ده چه د بغداد په څاګانو کی تر دوو سوو سولغی بالا او به نه وی ـ هدایه ص۴۲ ـ نو بناء پر دې په نورو څاګانو کی چه اوبه ئی تر دریو سوو سولغی ډیری بالا وی په قول د امام محمدؒ دی فتوی څوک نه ور کوی ـ ولی چه مقادیر په عقل نه معلومیږی ـ لکن په دې کی شک نشته چه د امام محمدؒ قول وعوامو ته ډیره آسانی ده ـ نو د دې سببه په خزانة المفتیین کی وائی چه فتوی پر قول د امام محمدؒ ده ومع هذا په بحر رائق او شرح الوقایه کی وائی چه اصح دا ده چه په قول د دوو کسانو چه په اوبو پوهیږی عمل وکړه ـ او په هدایه کی وائی ‹‹وهو الاشبه بالفقه›› یعنی د غه مذهب و فقه ته ډیر نژدی دی ـ

وَإِذَا وُجِدَ فِي الْبِيْرِ فَارَةٌ أَوْ غَيْرِهَا وَلَا

اوکه چیری پیدا کړه سو په څاه کی موږک مړ یا بیله موږکه بل حیوان لکه پشی سپی وغیره او خلک نه

يَدْرُوْنَ مَتَى وَقَعَتْ وَلَمْ تَنْتَفِخْ وَلَمْ

پوهیږی او نه وو خبر چه د اوڅاه ته څه وخت لویدلی دی او حال دا وو چه داموږک نه پړسیدلی وو

تَتَفَسَّخْ أَعَادُوْا صَلوٰةَ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ إِذَا كَانُوْا

او نه شوکیدلی وو. راودی ګرځوی دغه خلک لمونځونه دیوی ورځی او دیوی شپی - که چیری دوی

تَوَضَّؤُوْا مِنْهَا وَغَسَلُوْا كُلَّ شَيْءٍ أَصَابَهُ مَاؤُهَا

اودسونه کړی وو د هغه څاه څخه او پریمنځی دی هر هغه شی چه د دغه څاه اوبه ورته رسیدلی وی (که جامی که بدن)

وَإِنْ انْتَفَخَتْ أَوْ تَفَسَّخَتْ أَعَادُوْا صَلوٰةَ ثَلٰثَةِ أَيَّامٍ وَ

اوکه چیری هغه موږک پړسیدلی وو یا شوکیدلی وو نو دی راوګرځوی لمونځونه د درو ورځو او د درو

لَيَالِيْهَا فِيْ قَوْلِ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَقَالَ أَبُوْ يُوْسُفَ وَمُحَمَّدٌ

شپو - دا حکم په قول د امام ابی حنیفة رح دی - او امام ابو یوسف رح او امام محمد رح وائی

لَيْسَ عَلَيْهِمْ إِعَادَةُ شَيْءٍ حَتّٰى يَتَحَقَّقُوْا مَتٰى وَقَعَتْ

چه نشته په دوی خلکو راګرځیدنه د هیڅ شی تر هغه چه تول معلوم نه کړی چه پړسیدلی وی یا شوکیدلی وی یا نه (وی)
تر هغه وخته پوری چه دوی ته په یقین نه وی ثابته شوی چه موږک کله ورته لویدلی دی.

**مسئله:** کله چیری د هغه څاه په اوبو د وړی یا غوښی پخ کړی وه هغه دی وسپو ته واچوی. (در مختار)

## د عوامو غلطیا

دوی وائی هغه مردار که د ووړی د مسکینانو یا طالبانو ته ور کړی - دا غلط دی ولی چه
د مردار شی خوړل حلال نه دی چه د لویږی د سبب د مرګ بیره وی.
تفصیل د دغی مسئلی: مصنف د جوهره وائی چه فتوی په قول د یارانو ده او په فتاوی

عتابي کې وائي چې قول د یاراتو مختار دی. لکن په رد المحتار ص ۲۰۳ ج ۱ کې وائي چې قول د
امام اعظم رح مختار دی د ډیرو فقهاوو. لکه امام برهاني، امام نسفي، امام موصلي،
صدر الشریعة او صاحب د بدائع. او په ټولو کتابو کې دلائل د امام اعظم رح قوي بیان سوي دي
نو باید فتوی پر قول د امام اعظم رح وي. لکن په مجتبی کې وائي په نقل د رکن الائمة السباغي
چې په باره کې د لمونځ یاد او د سو فتوی پر قول د امام اعظم رح د احتیاطاً في امر العبادة.
یعني د جهت د احتیاط د عبادة په کار کې. او په باره کې د ډیرو دي، کتو، په پسخلی کالی د
هغه خاره په اوبو او غیره فتوی پر قول د یاراتو ده. حاشیه شرح وقایه جلد اول ص ۱۲ او هم د
مذهب بعضی علماوو خوښ کړی دی. او د فتیه هم دغه مختار دی. والله اعلم.

## وَسُؤرُ الاٰدَمِیِّ وَمَا یُؤکَلُ لَحْمُہٗ طَاهِرٌ

او پسخوړه (کړاوبه وي که بیوړ وال وي) د انسان (که نر وي که ښځه وي) او د هغه شي پسخوړه ده
چې غوښه ئې خوړل کیږي (یعني مرداري نه وي) ټول پاک ده (شي نه په مرداري خوړک ئې حلال دي)

**مسئله!** پسخوړه د جنب د حائضې ښځې د لنګې ښځې د کافر دا ټولي پاکې دي.

**مسئله!** که چا شراب وڅښل او فوراً ئې په کوزه یا منګي کې اوبه وڅښلې هغه پسخوړه ده
مرداره ده. او که ئې څیري ناړې د وره د رې وارې تیرې کړې او بیا شي ئې نو ئې هم څو
واره په تیره کړه د هغه پسخوړه ده پاک ده.

**مسئله!** که حیوان پسه یا غوائی یا اوښ کندګې خوړل اکثره اوقات. نو پسخوړه ده ئې
مکروه ده. او که ئې کاهي کاهي خوړل نو پسخوړه ده ئې پاک ده. کوکب دري حاشیه قدوري ص ۹ ج ۱

## وَسُؤرُ الْکَلْبِ وَالْخِنْزِیْرِ وَسِبَاعِ الْبَهَائِمِ نَجِسٌ

او پسخوړه د سپي او سرکوزي او درنده ګانو د ځاروو یا نو لکه لیوه ګیدړ او نور مرداره ده.

ولی چې په صحیح حدیث شریف کې راغلی دی چې آنحضرت صلعم وفرمایل که څیري
سپي په لوښي کې اوبه وڅښي هغه لوښی دې د بې وارې پریمنځي. بخاري. مسلم. مشکوة.
د دې حدیث شریف څخه معلوم سوه چې د سپي پسخوړه ده مرداره ده. ولی چې لوښی
مردار سو څو په پسخوړه ده مردار سو.

**مسئله!** ټول درنده ګان په حکم کې د سپي دي. ولی چې غوښې ئې مرداري دي. نو
ناړې چې د غوښو څخه پیدا کیږي هم مرداري دي او هغه ناړې په پسخوړه ده ګډیږي.

مسئله! په سپي او سرکوزي کي امام شافعي رحمه الله زموږ سره موافق دی او د نورو ځناورو ځنګانو پسخوړده امام شافعي رحمه الله پاکه بولي. کوکب دري، ص ۹۰ ج ۱

## وَسُؤْرُ الْهِرَّةِ وَالدَّجَاجَةِ الْمُخَلَّاةِ وَسِبَاعِ الطُّيُوْرِ

او پسخوړده د پیشي او د چرګ یا چرګي چې خپل سره ایله وي (چه په قفس کي بنده نه وي یا تړلې نه وي) او پسخوړده د ښکاري مرغانو (لکه ترخک، تپوس، باښه او نور د غسي ښکاري مرغان)

## وَمَا يَسْكُنُ فِي الْبُيُوْتِ مِثْلُ الْحَيَّةِ وَالْفَأْرَةِ مَكْرُوْهٌ

او پسخوړده د هغه شیانو چه په کورونو کي اوسیږي لکه مار او موږک مکروه ده.

## وَسُؤْرُ الْبَغْلِ وَالْحِمَارِ مَشْكُوْكٌ ؛

او پسخوړده کي د قچر او د خره شک سته.

مسئله! د دې د وو حیواناتو پسخوړده چه مشکوکه ده له دې سببه چه دلائل د وه قسمه راغلی دی د ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دئ چه «سؤر الحمار طاهر» پسخوړده د خره پاکه ده. او د ابن عمر رضی الله عنه نه روایت دئ چه «سؤر الحمار نجس» یعنی د خره پسخوړده مرداره ده. لهٰذا علماؤ حکم د مشکوک وکړې.

## فَإِنْ لَّمْ يَجِدِ الْإِنْسَانُ غَيْرَهُمَا تَوَضَّأَ بِهِمَا وَتَيَمَّمَ

پس که چیرې پیدا نه کړو انسان بیله د غه پسخوړدې (د ملاتړاره نی وه او د س نی نه وه لوړ) نو دی به د غه پسخوړده او د س تازه کړي او تیمم دی هم وکړي ولی که پسخوړده پاکه وه او د س به یی اوکه هغه پسخوړده مرداره وه وی تیمم کافی دئ.

## وَأَيُّهُمَا قَدَّمَ جَازَ ؛

او هر یو د دوئ د وو چه د مخه کړی روا دئ ؛

پوهه شه! که هغه پسخوړده تو ی کړي نو یوازی تیمم کافی دی.

# بَابُ التَّيَمُّمِ

باب دی په بیان کی د احکامو د تیمم

پوهه! چه تیمم په قرآن مبارک او په حدیث شریف سره ثابت دی۔ قرآن دا دی «فَلَمْ تَجِدُوْا مَاءً فَتَيَمَّمُوْا صَعِيْدًا طَيِّبًا» پس که نه موکړی پیدا اوبه نو تیمم وکړئ په پاکه خاوره۔
او حدیث دا دی «اَلتَّيَمُّمُ طَهُوْرُ الْمُسْلِمِ مَالَمْ يَجِدِ الْمَاءَ» یعنی تیمم پاکی د مسلمان ده تر هغو پوری چه اوبه نه وی پیدا کړی۔

مسئله! تیمم د امام اعظم په نزد طهارت کامل دی حتی چه په یوه تیمم څو لمونځونه روا دی لکه په اودا سره۔ او په نزد د امام شافعیؒ تیمم طهارت ضروری دی یعنی چه لمونځ ئې په وکړی بل لمونځ نه دی په روا بلکه بل تیمم به کوی۔

## وَمَنْ لَّمْ يَجِدِ الْمَاءَ وَهُوَ مُسَافِرٌ اَوْ هُوَ خَارِجُ الْمِصْرِ

او چا چه اوبه نه کړی پیدا د ودنه قدره چه د اودا سره بس کیدی او دغه سړی مسافر وو او یا د بناره او کلی څخه د باندی وو او که څه هم مسافر نه وی لکه چه د بناره د باندی په لرګو او یا وښو پسی تللی وی۔

مسئله! په بناره او لویو کلو کی که څه هم اوبه نه کړی پیدا تیمم نه دی روا۔ ولی دا سی نادره پیښیږی۔ په مبسوط او محیط کی دا مسئله وکوره۔

## وَبَيْنَهُ وَبَيْنَ الْمِصْرِ نَحْوُ الْمِيْلِ اَوْ اَكْثَرُ

او په مابین کی ده او بناره مثل دیوه میل یا ډیره تر میل مسافت وو۔

پوهه! چه میل زره کامه دا وبن دی او څلور زره کزه شرعی دی۔
فائده! د میل اندازه د سړی په ګمان پوری اړه لری که د سړی خیال وو چه تر ما او تر اوبو پوری تر میل کم مسافه ده تیمم نه دی ورته روا که څه هم په واقع کی ډیره وی او که سړی ګمان وو چه مسافه یو میل یا بالاده ورته روا دی که څه هم په اصل کی کم تر میل وی۔ کوکب دری صـ
رابنا! یو میل مسافت مشهوره دی روایت لټ۔ او اکثر فقهاء هم په دغه روایت عمل کوی۔ او بعضی علماء وائی چه ده او تر اوبو پوری آذان نه اوری بدل کیږی تیمم روا دی

او څوک وائي که اوبه په څلور میله مسافت کښې دي نو دا مسافر وي. نو د دوه میله مسافت په کار دي. اګر تر شا وي یا پر راسته خوا یا پر چپه خوا وي نو یو میل مسافت غواړي. او د امام ابو یوسف څخه روایت دي که چیري اوبه دومره لیري وي چه دی تللې واپس راتللې او د ده سره قافله یا ملګري ولاړ شي تو بیا دده ته تیمم روا دی. په ذخیره کي وائي چه دا دیر ښه روایت دی.

## اَوْكَانَ يَجِدُ الْمَاءَ اِلَّا اَنَّهُ مَرِيْضٌ فَخَافَ

او یا ئې اوبه د لاسه وي او به موجودې وي مګر سړی یا ښځه مریض وي نو ویره ئې وي که اوبه استعمال کړم مرض به مې سخت

## اِنْ اِسْتَعْمَلَ الْمَاءَ اِشْتَدَّ مَرَضُهُ

سي یا د اوبو څخه یاد ښو ړیدو څخه لګه یو سړي چه اپریشن کړي وي. او ډاکټر ورته ویلي وي چه ښوړي به نه

## اَوْخَافَ الْجُنُبُ اِنْ اِغْتَسَلَ بِالْمَاءِ يَقْتُلُهُ الْبَرْدُ اَوْ يُمْرِضُهُ

او یا بیرېږي جنب که چیري غسل په اوبو وکړي نو وبه وژني یخ او یا ئې مریض کړي.

**فائده!** مصنف غسل ذکر کړي ددې سبب که ئې او د سړي بیریدې په بناء یا په قرینه کي په مرګ یا مرض که په اوبو او دس وکړي وهغه ته تیمم نه دی روا په اتفاق په صحیح مذهب کوکه ولې چه په بناء یا په قرینې کي دا ان د تود ولو ځایونه سته دا او د اسه دیخ څخه او خلاف د صحرا څخه. بعضي علماء وائي که په بناء کي حمامونه وه او د حمام واخ دا او چه مزدوري ئې ورسره سته غو بنته نو جنب دی هم تیمم نه کوي بلکه په حمام کي دې غسل وکړي او بیا دې حمامي ته خپل د مسکنت عذر ووائي.

**مسئله!** که د جنب سره روپۍ د حمام وي هغه ته تیمم نه دی روا.

**سوال!** په بناء یا په قرینه کي هم د تود یدو ځایونه لکه مسجد ونه سته نو ولي وجنب ته تیمم روا دی.

**جواب!** امکان لري چه دغه جنب دی مریض یا ضعیف البدن یا مسکین نه وي نو که چیري په یخو اوبو غسل وکړي د تو دیدو ترځایه به نه ورسیږي او یا که ورسیږي فائده به ورته ونه کړي خلاف د اودس.

## فَاِنَّهُ يَتَيَمَّمُ بِالصَّعِيْدِ

پس په دغو بالا تولو صورتونو کي دی سړي تیمم وکړي پر پاکه ځمکه باندي.

## وَالتَّيَمُّمُ ضَرْبَتَانِ يَمْسَحُ بِاَحَدِهِمَا وَجْهَهُ

او تیمم دوه واره لاسونه پر خاکو وهل دی. نو په یوه ضربه دی مخ مسح کړی

## وَبِالْاُخْرٰی یَدَیْهِ اِلَی الْمِرْفَقَیْنِ

او په بله ضربه دی لاسونه مسح کړی تر څنګلو پورې

مسئله! جنب ته چه تیمم روا سوا و بیا ئې په تیمم لمونځ وکړی هغه لمونځ روا دی که څه د نه غواړي.

مسئله! په تیمم کې استنجاء نشته او د سر او د پښو مسح نشته. دا حکم الٰهی دی د عقل کار نه دی.

## وَالتَّیَمُّمُ فِی الْحَدَثِ وَالْجَنَابَةِ سَوَاءٌ

او تیمم په بې اودسیا او جنابت کې سره برابر دی.

یعنی هغه دوه ضربې چه ذکر سوې. که څه هم په او بو کې سره جلا دی. یعنې په غسل کې ټول بدن پریوللغواړي. په حدیث مبارک کې چه روایت ئې بخاری او نورو کتابو کړی دی راغلی دی چه یو صحابي په سفر کې جنب سوی وو او اوبه ئې نه وې نو چپل فکر ئې داسې تیمم وکړی. چه خاوري ئې ټول وکښل او په خاورو کې ولغښتې نو څه وخت چه مدینې منورې ته راغلی د خپل تیمم موضوع ئې وآنحضرت صلی الله علیه وسلم ته عرض کړه نو رسول الله صلعم ورته وویل ستا بس وه دوه ضربې. یعنی لکه د اودا سه تیمم د غسل تیمم د جنابت د پاره هم کافی دی. او موږ ته د مخه وویل چه شریعت د عقل تابع نه دی. نو باید خوک په برابر والی کې د تیمم د جنابت او د بې اودسیا شک او وسوسه ونه کړی

فائده! تیمم خاص په امت کې د آنحضرت صلی الله علیه وسلم روا سو. بخاری مسلم مشکوٰة

## وَيَجُوْزُ التَّيَمُّمُ عِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ بِكُلِّ

او روا دی تیمم ... په نزد د امام اعظم او امام محمد رحمهما الله پر هر هغه شي

## مَا يَكُوْنُ مِنْ جِنْسِ الْاَرْضِ كَالتُّرَابِ وَالرَّمْلِ

چه د قسم او جنسه څخه د مځکې وي. عموماً. لکه خاوري. لکه ریګ.

## وَالْحَجَرِ وَالْجِصِّ وَالنَّوْرَةِ وَالْكُحْلِ وَالزَّرْنِيخِ

لکه ډبره او ګچ. لکه اهاک یا سره خاوره. او رانجه. او زرنیخ.

زرنیخ نام دوائی که بهندی هرتال گویند از بحر الجواهر و کشف. چه په پښتو کی زرنه بولی. غیاث

## وَقَالَ اَبُوْ يُوْسُفَ لَا يَجُوْزُ اِلَّا بِالتُّرَابِ وَالرَّمْلِ

او ویلی دی امام یوسف نه دی روا تیمم مګر په خاوره و یا په ریګ.

## وَقَالَ الشَّافِعِيُّ لَا يَجُوْزُ اِلَّا بِالتُّرَابِ خَاصَّةً

او ویلی دی امام شافعی نه دی روا تیمم مګر خاص په خاوره نه په بل شی.

مسئله: محکم چه مرداره سی که وچه سوه وی تیمم نه دی پره روا او لمونځ پره روا دی. ردالمحتار

## وَالنِّيَّةُ فَرْضٌ فِي التَّيَمُّمِ وَمُسْتَحَبَّةٌ فِي الْوُضُوْءِ

او نیت فرض دی په تیمم کی. او نیت مستحب دی په اوداسه کی.

په دې کی امام زفر مخالف دی هغه وائی چه په تیمم کی نیت نه دی فرض. او تیمم دخولی نیت داسی دی. نیت لرم د تیمم د پاره د لمانځه یا د تلاوت.

ډیر فقهاء وائی چه نیت په اوداسه کی سنت دی. او مستحب تر سنت کم دی په درجه کی. وَاللهُ اَعْلَمُ وَعِلْمُهُ اَتْقَنُ.

## وَيَنْقُضُ التَّيَمُّمَ كُلُّ شَيْءٍ يَنْقُضُ الْوُضُوْءَ

او ماتوی تیمم هر هغه شی چه اودس ماتوی. (لکه بولی، باد، غائط، ویني وتل وغیره چه په باب کی د نواقض الوضوء په تفصیل سره ذکر سول.

## وَيَنْقُضُهُ اَيْضًا رُؤْيَةُ الْمَاءِ اِذَا قَدَرَ عَلَى اِسْتِعْمَالِهِ

او همدارنګه ماتوی تیمم لیدل د اوبو چه قادر وی پر استعمال د هغه اوبو.

یعنی کی اوبه په شا کی ولیدلې او در اکښلو شی نه وو هم تیمم ورته روا دی.

پوښتنه: چه ماتول د تیمم هغه وخت دی چه تیمم ئی په سبب د اوبو د نیسی

کړي وي - او که تیمم ئې په سبب د ناجوړئ یا بل سبب کړئ وو هغه تیمم په لیدلو د اوبو نه ماتیږي - بلکه هغه وخت ماتیږي چه عذر نه وي -

## وَلَا يَجُوْزُ التَّيَمُّمُ اِلَّا بِصَعِيْدٍ طَاهِرٍ

او نه دی روا تیمم مګر په ځمکه پاکه باندی -

دلیل دا چه په قرآن شریف کې راغلی دی ر صَعِيْدًا طَيِّبًا ر او د طیب معنی پاکه او امام شافعیؒ وائي چه د صعید معنی شنه کونکي د وبنو نو پر بنره یا ترخه ځمکه تیمم نه دی روا - هدایه ص۵۳

## وَيُسْتَحَبُّ لِمَنْ لَمْ يَجِدِ الْمَاءَ وَهُوَ يَرْجُوْا اَنْ يَجِدَهٗ

او مستحب دی هغه سړي ته چه اوبه ئې نه لري او دی امید لري چه پیدا به کړم او به

## فِيْ اٰخِرِ الْوَقْتِ اَنْ يُّؤَخِّرَ الصَّلٰوةَ اِلٰى اٰخِرِ الْوَقْتِ

په اخیر کې د وخت - دا چه وروستی ځنډ وي لمونځ تر آخره پورې د وخت -

### ښهانه فائده -

رجاء لته په معنی د یقین یا غالب ګمان ده - او که چیری ئې شک وو نو دی لمونځ تر اول د وخت مستحب نه ځنډ وي -

مسئله ا داحنفو ول هلته مستحب دی چه په مابین کې د سړي او د هغه ځائي چه د اوبو امید ئې وي یو میل یا بالا مسافت وي او که مسافت کم وي بیا خو تیمم روا نه دئ - کوکب دری ص۱۱

مسئله! داحنفو ول تر اخیره د وخت د جواز د لمانځه دی لکه څنګه ئې چه وائی لکن صحیح دا ده چه د احنفو ول تر اخیره د وخت مستحب دی - کوکب دری

### د بعضي علماؤ څخه شکایت

هغه دا چه دوئ بیله کوم عذره لمونځونه تر اخیره د وخت مستحب ځنډ وي بلکه وخت مکروه ته ئې رسوي - یا د مقتدیانو په مراعت - یا د خپلو شخصي ضرورت یا تولو کبله مثلاً د مازدیګر لمونځ هغه وخت کوي چه د ماښام آذان ته نیم ساعت پاته وي دا یقیناً وخت مکروه دی - او د سحار لمونځ هغه وخت کوي چه تر لمر ختو پورې نیم ساعت یا کم پاته وي - دا یقیناً اخیر د مستحب دی - ولې د سحار لمونځ باید داسې وخت خلاص شي چه که چیرې ئې یو سړي په اخیره ناسته کې او د سهات سي او خبری وکړي لمونځ ئې فاسد شي

نږدې او دس تازه کړي په قرائت مسنون د سهار لمونځ تر طلوع د لمر مخکې ادا کولای سي - او دمازدیګر
او دماپښین لمونځ داسي وخت کوي چه دامام شافعيؒ او دامام محمدؒ او دامام ابویوسفؒ
په نزد دمازدیګر وخت داخل وي یعنې دوچندي کې او داخو بېنه خبره نده چه لمونځ
په اختلاف کې داماما نو دمذهب سره واقع کړي - بلکه باید دماپښین لمونځ تر یکچندي
مخکې اداسي چه په اتفاق صحیح سي -

او د ماخستن لمونځ ثلث اللیل چه مستحب وخت دی - هغه چېرې بلکه د ماخستن
اذان قبل الوقت یعنې د شفق تر لوېدو مخکې کوي - او د ماخستن لمونځ په اول کې د وخت
ادا کوي - ولې چه د مقتدیانو د بي. بي. سي (BBC) د راډیو خبرو ته تلوار وي - حاصل
دا چه لمونځونه د مقتدیانو په رضا سره ادا کولی - د داسي ملا یا لونځه چه پوښتنه
وکړي چه ته ولې لمونځونه په داسي وختونو کې کوې؟ نو دی جواب داسي وائي چه زه
د ډېر والي د جماعت مراعت کوم - مګر دا جواب غلط دی ولې چه د ډېر والي د جماعت
په سبب لمونځ باید وقت مکروه ته ونه رسول سي - یا تر وقت مستحب د مخه
یا وروسته اداء نه سي -

# فَاِنْ وَجَدَ الْمَاءَ تَوَضَّأَ وَصَلّٰى وَاِلَّا تَيَمَّمَ

نو بیس لحظه وادولمانځه تر اخره پورې د وخت - که ئې پیدا کړي او به او د س به تازه کړي
او که ئې او به نه کړې پیدا تیمم به وکړي -

# وَيُصَلِّيْ بِتَيَمُّمِهٖ مَاشَاءَ مِنَ النَّوَافِلِ وَالْفَرَائِضِ

او ادا کولی دی په تیمم سره د ده هغه چه د ده خوښه وي د نفلي لمونځونه او فرضي لمونځونه -

مسئله! په یوه تیمم روا دی هر څو لمونځونه که فرض وي که نفل وي که په یوه وخت
کې وي که په ډېرو وختونو کې وي تر هغو چه بې او دسه سوی نه وي یا ئې او به نه وي پیدا کړې
دا مذهب دامام اعظمؒ دی - او امام شافعيؒ وائي چه هر فرضي لمانځه ته به علیحده تیمم
کوي په هغه وخت کې سنت او نفل په کولای سي -

فائده! که ئې تیمم وکړي د نفلو د پاره په هغه تیمم فرض لمونځ هم کولای
سي - او یا ئې تر وخت د مخه تیمم وکړي لمونځ په روا دی - امام شافعيؒ په دواړو
صورتونو کې مخالف دی -

## وَيَجُوْزُ التَّيَمُّمُ لِلصَّحِيْحِ الْمُقِيْمِ اِذَا حَضَرَتْ

او روادی تیمم د پاره دجوړ سړي چه مقیم هم وي چه حاضره سي

## جَنَازَةٌ وَالْوَلِيُّ غَيْرُهُ فَخَافَ اِنْ اشْتَغَلَ بِالطَّهَارَةِ

جنازه او متصرف دجنازې بل څوک وي - پس دی ویریدی که زه مشغول سم په اودا او که متصرف دجنازې ذی وو بیا تیمم نه دی روا بلکه جنازه دی وځنډوی -

## اَنْ تَفُوْتَهُ صَلٰوةُ الْجَنَازَةِ فَلَهُ اَنْ يَتَيَمَّمَ وَيُصَلِّيَ

چه نه ماځه به فوت سی دجنازې لمونځ پس روا ده وده ته چه تیمم وکړي او دجنازې لمونځ وکړي په حدیث مبارک کی راغلی دی که تاته جنازه حاضره سوه اوته بې اوده وې تیمم وکړه -

## وَكَذَالِكَ مَنْ حَضَرَ الْعِيْدَ فَخَافَ اِنْ اشْتَغَلَ بِالطَّهَارَةِ اَنْ تَفُوْتَهُ

او دغه رنګه روا دی تیمم وهغه چاته چه داختر لمانځه ته حاضر سی او ویریږي که زه اودس کوم داختر لمونځ راځنه تیر یږي -

مسئله! په هغه وخت کی تیمم روادی چه ټول لمونځ ځنی تیریږي - او که بعضی لمونځ پیدا کیدای سو بیا تیمم نه دی روا -

قاعده! هرلمونځ چه عوض نه لري وهغه ته تیمم روادی چه پرېیاته کیدو ځنی بیریږي که اودس کوي - لکه دجنازې او داختر لمونځ - او هرلمونځ چه عوض لري وهغه ته تیمم نه دی روا که څه هم فوتیږي - لکه دجمعې لمونځ چه عوض یې دماپښین دی کوکب دي -

## وَاِنْ خَافَ مَنْ شَهِدَ الْجُمُعَةَ اِنْ اشْتَغَلَ

او که چیری بیریږي هغه سړي چه دجمعې دلمانځه وخت پرراغلی که چیری زه مشغول سم په

## بِالطَّهَارَةِ اَنْ تَفُوْتَهُ الْجُمُعَةُ تَوَضَّأَ فَاِنْ

په اوداسه دجمعې لمونځ راځنه پاتیږي هغه به اودس تازه کوي - نو که دجمعې

## أَدْرَكَ الْجُمُعَةَ صَلَّاهَا وَإِلَّا صَلَّى الظُّهْرَ أَرْبَعًا

لمانځه ته ورسيږي خو د جمعې لمونځ به وکړي او که جمعه ترې سوه نو د ماپښين لمونځ به څلور رکعته وکړي

حاصل دا چه د جمعې د لمانځه د پاره تيمم نه دی روا که څه هم د جمعې لمونځ پاتيږي

مسئله! د سجدهٔ تلاوت د پاره تيمم نه دی روا. ولې چه هغه قضا نه لري بيا دې بل وخت وکړي. او د غسې رنګه د قرآن شريف د مسه کولو د پاره تيمم نه دی روا. ولې چه ضرورت ورته نشته

## وَكَذَٰلِكَ إِنْ ضَاقَ الْوَقْتُ فَخَشِيَ إِنْ تَوَضَّأَ فَاتَهُ الْوَقْ

او د غسې رنګه که وخت تنګ وو او وېرېده چه که اودس تازه کوم لمونځ قضا کيږي (يعني

## لَمْ يَتَيَمَّمْ وَلَٰكِنَّهُ يَتَوَضَّأُ وَصَلَّى فَائِتَةً

وخت وتړي) هغه دې تيمم نه وهي بلکه اودس دې تازه کړي او لمونځ دې قضائي وکړي.

## وَالْمُسَافِرُ إِذَا نَسِيَ الْمَاءَ فِي رَحْلِهِ فَتَيَمَّمَ وَصَلَّى

او مسافر که چيرې خپلې هيرې سوې اوبه په بار کې پس تيمم ئې وکړ او لمونځ ئې وکړ

## ثُمَّ ذَكَرَ الْمَاءَ فِي الْوَقْتِ لَمْ يُعِدْ صَلَاتَهُ عِنْدَ

او بيا ورته بيا د سوې اوبه په وخت کې (يعني وخت پاتې وو) نو لمونځ دې نه را ګرځوي

## أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ يُعِيدُ

په نزد د امام اعظمؒ او امام محمدؒ او امام ابو يوسفؒ وائي چه لمونځ دې را وګرځوي

پوهنه! چه قيد د مسافر اتفاقي دی. د مقيم هم دغه حکم دی. قاضيخان.

فائده! دا مسئله درې قسمه ده! اول اوبه ده په خپله په بار کې ايښې وې. لکن په وخت د اودا سه کې ئې طلب ونه کړې او تيمم ئې وکړي نو لمونځ ئې نه دی روا په اتفاق. ولې چه ده سستي وکړه چه طلب ئې ونه کړې.

دوهم! مزدور اوبه ايښې وې او ده ته نه وه په خبر په دې صورت کې تيمم روا دی او چه لمونځ ئې صحيح سو نو ورسته چه اوبه ئې وليدې لمونځ را ګرځيده نسته پر ده په اتفاق.

د تیمم ! او به خوده اینبي وي لکن بیلي هیري وي دا هغه صورت دي چه په متن کي ذکر سو - کذا في الاختیار ...

# وَلَيْسَ عَلَى الْمُتَيَمِّمِ إِذَا لَمْ يَغْلِبْ عَلَى ظَنِّهِ أَنَّ

اونسته پر تیمم کوونکی باندی چه غالبه نه وی پر گمان د ده چه نژدی

# بِقُرْبِهِ الْمَاءُ أَنْ يَطْلُبَ الْمَاءَ

وده ته اوبه سته - دا چه طلب د او بو وکړی۔

بلکه تیمم دی وکړی او لمونځ دی اداء کړی - که څه هم بیا په وخت کی اوبه پیدا کړی د لمانځه ! اګر څه هم پر سته۔

فائده ! دا حکم په صحرا کی دی۔ ولې چه غالبه په صحرا کی اوبه نسته۔ او په آبادو ځایو کی طلب د او بو پر واجب دی۔

# وَإِنْ غَلَبَ عَلَى ظَنِّهِ إِنْ هُنَاكَ مَاءٌ لَمْ يَجُزْ لَهُ

او که غالبه وه پر گمان د ده چه دلته او به سته (یعنی په یوه علامه سره لکه شني د ونې) نو وانه دی

# أَنْ يَتَيَمَّمَ حَتَّى يَطْلُبَهُ وَإِنْ كَانَ مَعَ رَفِيقِهِ مَاءٌ

ده ته چه تیمم وهي تر هغو چه طلب د اوبو دی وکړی - او که چیری وی سره د ملګری د ده اوبه

# طَلَبَهُ مِنْهُ قَبْلَ أَنْ يَتَيَمَّمَ فَإِنْ مَنَعَهُ مِنْهُ يَتَيَمَّمَ

طلب دی څنی وکړی د مخه تر تیمم کولو نو که هغه ملګری منع ورته وکړه بیا دی تیمم وکړی

# وَ صَلَّى ؛

او لمونځ دی اداء کړی ؛

دلیل ئې دا دی چه دا سړی واجد د او بو دی نظر و دلیل ته چه د ده غالبه ظن دی۔ عه دلیل ئې دا دی چه غالب دا ده چه د او دا سره اوبه څوک نه منع کوی نو هر وخت چه هغه منع وکړه نو دی عاجز ه سو نو تیمم ورته روا دی۔

# بَابُ الْمَسْحِ عَلَى الْخُفَّيْنِ

(باب دی په بیان کی د مسحې پر موزو باندی)

پوهه سه چه مسح په لغت کی تیرول د لاس دی پر شی باندی او په شرع شریفه کی تیرول دی د لانده لاس په خاصه موزه چه بیان به راسی په خاص وخت کی چه ذکر به سی په متن کی د کتاب ان شاء الله تعالیٰ۔

**مسئله!** مصنف و ویل علی الخفین اشاره ده وی دی حکم ته چه مسح پر یوه موزه روا نده۔ مگر هغه چاته روا ده چه یوه پښه ئی ترځلکه لوېږه پری وی۔ قاضیخان۔

## اَلْمَسْحُ عَلَى الْخُفَّيْنِ جَائِزٌ بِالسُّنَّةِ

مسح پر موزو باندی روا ده په سنت نبوی سره۔

**فائده!** حدیث په اصطلاح کی قول ته د نبی علیه السلام وائی۔ او سنت عام دی قول د نبی علیه السلام او فعل ته د ده او تقریر ته د ده وائی۔ نو چه مصنف سنت و وایه اشاره ئی وکره چه مسح د موزو په قول او په فعل او په تقریر د نبی علیه السلام ثابته ده۔

**آگاهی!** مسح د موزو روافض او خوارج نه منی بلکه پر لخته پښه مسح روا بولی۔ نوره ټوله امت پر متفق دی۔

## ضروری پوهنه

امام الحسن البصری وائی چه ما او یا کسه د صحابه ؓ څخه لیدلی دی چه ټولو مسح د موزو جائز بلله او عمل ئی پر کاوه۔ او امام اعظم ؒ وائی چه ما جواز د مسح نه دی ویلی ترڅو چه ما ته د ورځی د شپی ڼایه شان حدیثونه ور سیدله۔ او همرد ی مبارک وائی چه زه بیره د کفر لرم پر هغه چا چه مسح د موزو نه منی۔ ولی چه اثار په دی باب کی لکه متواتر دی۔ او امام ابویوسف وائی چه په حدیثو د مسح د موزو نسخ د قرآن شریف روا ده ولی چه دغه حدیثونه مشهور دی۔ او امام احمدبن حنبل ؒ وائی چه زما په زړه کی د روا والی د مسح د موزو هیڅ شک نشته ولی چه ما ته په دی باره کی د څلویښتو اصحابو ؓ احادیث رسیدلی دی۔

## اختلاف دفقهاؤ

بعضی علماء وائی چه د سړي چه موزې په پښو وی نو مسح ئې افضله ده تردې چه موزې کاږی او پښې پرې مینځي. ولې چه پرخوارجو او روافضو بندېږي او مخالفت راځي دا قول دابن حجر په شرح کې د بخاری. او امام خواهرزاده وائي چه پښې پرې وینځل افضل دي او د هدایه څخه هم دغسې معلومیږي. او د قدوری په دې قول کې چه جائز ئې وویل او مستحب ئې نه وویل اشاره ده دغه مذهب ته ده.

## مِنْ كُلِّ حَدَثٍ مُوجِبٍ لِلْوُضُوْءِ

د هری هغه بی اودسی څخه چه اودس ماتوی.

فائده! که پر سړي غسل واجب وی مسح نه ده ورته روا.

## إِذَا لَبِسَ الْخُفَّيْنِ عَلَى الطَّهَارَةِ ثُمَّ أَحْدَثَ

کې په پښو کړې موزې پر طهارة او پاکی باندی او بیا بې اودسه سو.

فائده! په بعضو نسخو کې د قدوری او په نورو ډیرو کتابو کې هم راغلي دي چه علی طهارةٍ کاملةٍ، لکن دا شرط دکمال طهارت په وخت کې داغوستو د موزو نه غواړي. حتی که یو سړي تر اوداسه مخکې پښې پرې مینځي او موزې ئې په پښو کړې بیائې وروسته نور اودس وکړي. مسح ورته روا ده. البته په وخت د بې اودسیا کې بې طهارة کامل او پوره وي. کوکب دری ص۱۳

## فَإِنْ كَانَ مُقِيمًا مَسَحَ يَوْمًا وَلَيْلَةً

که چیری پر کوره وو یعنی مسافر نه وو نو دی مسح کوی یوه ورځ او یوه شپه.

لکن دا شمارونه د وخته څخه دبې اودسیا حسابیږی نه د وخته څخه د موزو اغستلو. کذا فی رد المحتار بل فی جمیع کتب الفقه.

## وَإِنْ كَانَ مُسَافِرًا مَسَحَ ثَلٰثَةَ أَيَّامٍ وَلَيَالِيَهَا

او که سړي مسافر وو مسح دی کوی درې ورځې او درې شپې.

## وَابْتِدَائُهَا عَقِيْبَ الْحَدَثِ

اوشروع د مدې د مسحې د وخت څخه دې او دسیا حساب بیږي۔ هم دا غه مضمون صراحةً په حدیث کې راغلی دی

## وَالْمَسْحُ عَلَى الْخُفَّيْنِ عَلٰى ظَاهِرِهِمَا خُطُوْطًا بِالْأَصَابِعِ

او مسح د موزو پر ظاهره برخه کیږي خطونه په ګوتو سره۔

مسئله! صورت د مسحې دا دی چه کینږدي د ښي ګوتي د راسته لاس د راستي پښې د موزې پر مخ د سره څخه۔ او د چپه لاس د ښي ګوتي پر چپه موزه او ګوتي دي لږ خلاصې ونسي۔ او بیا دی کش کړي د واړه لاسونه تر پوندې پورې تر بجلکولو۔ دا طریقه سنت ده۔

## يَبْتَدِئُ مِنَ الْأَصَابِعِ إِلَى السَّاقِ وَفَرْضُ ذَالِكَ

اوشروع د مسحې دې کوي د پښو د ګوتو د خوا تر پنډۍ پورې۔ او فرض د مسحې

## مِقْدَارُ ثَلٰثِ أَصَابِعَ مِنْ أَصَابِعِ الْيَدِ

اندازه د دریو ګوتو دی۔ د ګوتو څخه د لاس۔

فائده! مصنف وائی مقدار۔ اشاره وده ته کوي چه فرض د مسح خاص ګوتي تیرول نه دي۔ بلکه په ورغوي کړي هغه مقدار مسح کړي۔ یا موزه په اوبو لمده کړي یا دغه مقدار د باران په اوبو لنده سي هم د مسح فرض اداء کیږي۔

مسئله! د خلو بنکاریدل پر موزو فرض نه دی۔ کوکب دری ص۱۳

## وَلَا يَجُوْزُ الْمَسْحُ عَلَى الْخُفَّيْنِ فِيْ أَحَدِهِمَا خَرْقٌ كَثِيْرٌ

او نه د روا مسح پر هغو موزو چه په یوه کی د دوی دوو څیری والی وی ډیر

## يَتَبَيَّنُ مِنْهُ قَدْرُ ثَلٰثِ أَصَابِعَ مِنْ أَصَابِعِ الرِّجْلِ وَإِنْ كَانَ

چه تری معلومیږی او ظاهریږی تر هغه څیری ځای اندازه د دریو ګوتو د ګوتو څخه د پښی او که چیری

## أَقَلَّ مِنْ ذَالِكَ جَازَ

کم وی تر هغه بیا مسح پر روا ده۔

لکن اعتبار د ورکوچنی ګوتې د پېښو دی۔ دلیل ئې دا دی چې موږ ته په غالب کې د لږ خیرې والی څخه نه خلاصیږو۔ نو دپاره د دفع د حرج او تکلیف تر درو ګوتو کم عفوه دی۔ درمختار۔ بحر۔

## وَلَا يَجُوزُ الْمَسْحُ لِمَنْ وَجَبَ عَلَيْهِ الْغُسْلُ

او نه دی روا مسح کول هغه چا ته چې پر هغه غسل واجب وی

په حدیث شریف کې چې روایت ئې ترمذی او نسائی کړی دی۔ راغلی دی۔ صفوان ابن عسال وائی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم موږ ته امر کولو چې موږ مسافر یو۔ چې نه به کاږو موزې درې ورځې او درې شپې۔ یعنی مسح به پرې کوو۔ مګر نه جنابت څخه یعنی په جنابت کې مسح نه کوو۔

## وَيَنْقُضُ الْمَسْحَ مَا يَنْقُضُ الْوُضُوءَ وَيَنْقُضُهُ

او ماتوی مسح هغه شی چې اودس ماتوی۔ او دغه رنګه ماتوی مسح ختل د

## أَيْضًا نَزْعُ الْخُفِّ وَمُضِيُّ الْمُدَّةِ فَإِذَا مَضَتْ

موزې (که په قصد وی او که بې قصده وی) او بل تېریدل د مدې د مسحې (که مسافر وی که مقیم) پس څه وخت

## الْمُدَّةُ نَزَعَ خُفَّيْهِ وَغَسَلَ رِجْلَيْهِ وَصَلَّى

چې تېره سی مده د مسحې ودې کاږی موزې او پرې دې مینځي پښې او لمونځ دې وکړي۔

## وَلَيْسَ عَلَيْهِ إِعَادَةُ بَقِيَّةِ الْوُضُوءِ

او نشته پر ده باندې راګرځول د نور اودسه۔

یعنې کې اودس دسلو دی۔ دلیل دا دی چې موزې ئې وکښې هغه د غړې او د سیا ئې و پېښو ته راغله۔

## وَمَنْ ابْتَدَأَ الْمَسْحَ وَهُوَ مُقِيمٌ فَسَافَرَ قَبْلَ تَمَامِ

او که چا شروع کړه مسح د موزو او دی مقیم وو۔ پس مسافر سو دغه تر پوره کېدو

## يَوْمٍ وَّ لَيْلَةٍ مَسَحَ ثَلٰثَةَ اَيَّامٍ وَّ لَيَالِيْهَا

د يوه شپې ورځې مسح دې وکړي تر تمامېدو د درې ورځو او درې و شپو پورې.

يعنې کوم يو د سفر څخه مسافر وو. او امام شافعي وائي چه دغه سړی مسح د مسافر نه شي کولای بلکه د مقيم موده دې ختم کړي.

## وَمَنِ ابْتَدَءَ الْمَسْحَ وَ هُوَ مُسَافِرٌ ثُمَّ اَقَامَ

او که چا شروع کړه مسح او دی مسافر وو او بيا مقيم سو. (يعنې وطن ته ورسيدی يا ئې نيت د اقامت د پنځلسو ورځو وکړی.)

## فَاِنْ كَانَ مَسَحَ يَوْمًا وَّ لَيْلَةً اَوْ اَكْثَرَ لَزِمَهٗ نَزْعُ خُفَّيْهِ

نو که مسح کړي وه يو شپه ورځ يا زيات تر دې نو لازم دی پر ده کښل د موزو او که

## وَاِنْ كَانَ اَقَلَّ مِنْهُ تَمَّمَ مَسْحَ يَوْمٍ وَّ لَيْلَةٍ

چيرې کم تر شپه ورځ وو نو مسح دې پوره کړي. يعنې بيا دې موزې وکاږي او پښې دې پرې مينځي.

## وَمَنْ لَبِسَ الْجُرْمُوْقَ فَوْقَ الْخُفِّ مَسَحَ عَلَيْهِ

او که چا په پښو کړي جرموق سربيره پر موزه نو مسح دې کوي پر جرموق باندې.

يو ډول جرموق هغه لوی بوټ دی چه د موزې د حفاظت د پاره ئې پر موزه سربيره اغوندي.

مسئله! مسح پر جرموق په دوه شرطه روا ده. يو دا چه جرموق به د وڼ قدر او په داسې شان وي که يوازې وي هم به مسح پرې روا ليدي. نو که چيرې جرموق ډېره څيرې وه مسح نه ده پرې روا. دوهم دا چه د مسح پر موزه نه وي کړې. هغه داسې چه څه وخت چه ئې موزې په پښو کړې نو د هغه ترا د س ماتيدو ئې جرموق په پښو کړي او که چيرې ... پښو کړه اودس ئې مات کړي بيائې مسح پر موزه وکړه بيائې جرموق په پښو کړي نو مسح پر جرموق نه ده روا بلکه

## وَلَا يَجُوْزُ الْمَسْحُ عَلَى الْجَوْرَبَيْنِ اِلَّا اَنْ يَّكُوْنَا مُجَلَّدَيْنِ اَوْ مُنَعَّلَيْنِ

او نه ده روا مسح پر جرابو مګر هغه وخت چه شا و خوا څرمن پر ګنډلې وي او يا ئې صرف پر تلې باندې څرمن ګنډلې وي.

پوهنه: چه دا مذهب د امام اعظمؒ دی۔ د لیل ئې دا دی چه په عادت کې په ... الی جرابو کې څوک تګ نه کوی نو لکه څوک چه پر پښو پیچلی وی۔ خلاف د مجلد ینو او منعلینو چه په هغو کې تګ کیدای سی۔

## وَقَالَا يَجُوزُ إِذَا كَانَا ثَخِينَيْنِ لَا يَنْشِفَانِ

او یاران وائی چه مسح پر جرابو روا ده چه کلکی او سختی وی۔ او د د باندی څخه ښه نه ترمعلومېږي

پوهنه: چه اندازه د ثخانت دا ده چه پر پنډی باندی بیله تړلو په تنا و ولاړی وی۔

مسئله: پر پلاستیکی جرابو کړ څه هم پر پنډی ښځیله تکیه کیږی مسح نه ده پرې روا ولی چه په د غو جرابو کې کښکان وړ کړی دی نو هغه تکه په تنا و تړلی وی۔

مسئله: په ذخیره کې راوړی دی چه امام اعظمؒ د مخه تر مرګ او وکه ورځی یا درې ورځی و قول ته د یاران رجوع وکړه۔ وعلیه الفتوی۔ کوکب دری ص۱۴

## وَلَا يَجُوزُ الْمَسْحُ عَلَى الْعِمَامَةِ وَالْقَلَنْسُوَةِ وَالْبُرْقُعِ وَالْقُفَّازَيْنِ

او نه ده روا مسح پر پټکو ته او پر خولی او پر بغره او پر دستکو باندی۔

ولی چه د دی شیانو په کښلو کې حرج نسته او مسح د پاره د دفع د حرج روا کیږی۔

## وَيَجُوزُ عَلَى الْجَبَائِرِ وَإِنْ شَدَّهَا عَلَى غَيْرِ وُضُوءٍ

او روا ده مسح پر سکند و باندی (یعنی مات یا خوږ ځای چه ئې تړلی وی) کڅه هم سکنډئې په بې اوداسه تړلي وي

مسئله: مسح پر تړلی ځای هلته روا ده چه خلاصول ئې ضرر رسی او یا مسح پر تیب تاوان لري، نو بنا ء علیه کې پلستر پر یو ځای اچولی وي چه لیری کول ئې تاوان نه کاوي مسح ... ده پرې روا کڅه هم مالی تاوان د ئ۔

## فَإِنْ سَقَطَتْ مِنْ غَيْرِ بُرْءٍ لَمْ يَبْطُلِ الْمَسْحُ وَإِنْ

پس کړ چیری سکنده ولویده بی له جوړ والی د ځای بیرته دی و تړی مسح ئې نه باطلیږی۔ او که هغه

## سَقَطَتْ عَنْ بُرْءٍ بَطَلَ ÷

ځای جوړ و و مسح باطله سوه۔ هغه ځای دی پر یمنځي او د نورو او دس تازه کول نه غواړی ÷

# بابُ الحَیضِ

## باب دی په بیان کی داحکامو د حیض

فائده! اگرچه په دې باب کی احکام د نفاس هم بیانیږی لکن چونکه حیض ډیر واقع کیږی نو ځکه عنوان د باب حیض وګرځاوه۔

## ښځانه فائده

زموږ د پښتنو ښځې د احکامو څخه د حیض او نفاس او استحاضې ډیری ناخبری دی۔ ولې چه دینی تعلیمات سپاره، قرآن شریف او شروط الصلوة دی۔ په دې کی احکام مذکوره ودوی ته نه بیانیږی۔ او اکثره ښځې په کوچنی والی کی وائی او په هغه عمر کی د حیض وغیره سره هیڅ علاقه نه لری۔ او بیائی چه لویانی سی نو اول خو محرم سړو ونکي نه لری او که ولری بیا په زړه کړه نی شرمیږی۔ هم سړو ونکی تفصیلی بیان د شرمه نه سی ورته کولای۔ او په ښځه د شرمه څخه تفصیلی پوښتنه کولای سی۔ لهذا د دی باب وعالم النساء ته ډېر اهمیت سته

نن زمان ډیری ښځی په مکتبو او اسکولو کی تعلیم یافته او خطونه زده دی۔ نو دوی په آسانی سره کولای سی چه د دې پښتو ترجمی څخه د قدوری لوی فائده او خبرتیا تر لاسه کړی۔ او چونکه ښځه د ښځې په زړه کړه د دغو احکامو نه شرمیږی۔ لهذا کولای سی بی تعلیمه ښځې د تعلیم یافته ښځو څخه خپل ځانونه په دغو احکامو او ... تفصیل خبر کړی۔

پوه سه واوره! چه حیض وینی دی چه راوزی د رحم یعنی ... عیال د جوړید و د ځای څخه د ښځې چه د مرض په وجه نه وی۔ که د ناجوړی د سببه وی هغه استحاض بولی او ښځه هم کوچنی نه وی که کمچنی وی هغه د زخم یا دانې وینه ده۔ رنګونه ئی دا دی۔ سرې۔ تورې زیړی۔ شنې۔ سپین ی۔

فائده! د ښځې بلوغ پر نه کال شروع کیږی۔ او ... علی دقاق وائی پر دوولس کاله او بعضی وائی پر شپږ کاله او بعضی وائی او وه کاله او بعضی وائی پر اته کاله باندی شروع کیږی۔ لکن عینی او برجندی او نور ډیر علماء وائی چه صحیح اول مذهب دئ۔

**اَقَلُّ الْحَيْضِ ثَلٰثَةُ اَيَّامٍ وَّ لَيَالِيْهَا وَمَا نَقَصَ مِنْ ذٰلِكَ**

کمه موده د حیض درې ورځې او شپې دي. او تردې چه کمې وي پس هغه حیض نه دی

**فَلَيْسَ بِحَيْضٍ بَلْ هُوَ اِسْتِحَاضَةٌ**

بلکه مرض او ناجوړی ده. په صحیح حدیث کې چه روایت ئې صحاح سته کړی هم دغه موده تاکل شوې ده.

**وَاَكْثَرُهُ عَشَرَةُ اَيَّامٍ وَمَا زَادَ عَلٰى ذٰلِكَ فَهُوَ اِسْتِحَاضَةٌ**

او ډیره موده د حیض لس ورځې دي. او چه تر دې زیات شي هغه ناجوړی ده.

**وَمَا تَرَاهُ الْمَرْأَةُ فِىْ اَيَّامِ الْحَيْضِ مِنَ الْحُمْرَةِ وَالصُّفْرَةِ**

او هغه چه وې وینی ښځه په ورځو کی د حیض سرې یا ژړې

**وَالْكُدْرَةِ فَهُوَ حَيْضٌ حَتّٰى تَرَى الْبَيَاضَ خَالِصَةً**

یا سپیرې وینی هغه ټول حیض دی. تر هغو چه وینی ښځه سپینې او به خالصې.

او همدغه مضمون په حدیث کی د بی بی عائشه رض چه روایت ئې بخاری، مسلم، ترمذی کړی دی راغلی دی.

**وَالْحَيْضُ يُسْقِطُ عَنِ الْحَائِضِ الصَّلٰوةَ وَيُحَرِّمُ**

او حیض ساقطوی د حائضې څخه لمونځ (یعنی قضائی هم پرې نشته) او حراموی پرې دې

**عَلَيْهَا الصَّوْمَ وَتَقْضِى الصَّوْمَ وَلَا تَقْضِى الصَّلٰوةَ**

باندی روژه او قضا به راوړی د روژو. او قضا نشته پرې دی باندی د لمونځو.

د دې وجه علاوه پر دې چه په حدیثو کی راغلی دی دا ده چه د لمونځو په راګرځولو کی تکلیف دی. ولی چه لمونځونه په ورځو کی د حیض ډیر راځی. او د روژو په قضا کی حرج نشته ولی چه په یوه میاشت کی یو څو ورځې دی.

**مسئله!** که د ښځې روژه وه او په مابین کی د ورځې بلکه که څه هم ماز یګر وی حیض ورغلی روژه ئې ماته شوه. نیول ئې تر ما ښامه حرام دی. او د دغې ورځې به قضا راوړی.

مسئله: که ښځه د حیض څخه په مابین کې د ورځې پاکه شوه هغه ورځ دې ترمابنامه امساک وکړي او هم دې بیا د دغې ورځې قضا [illegible] راوړي۔

## وَلَا تَدْخُلُ الْمَسْجِدَ وَلَا تَطُوفُ بِالْبَيْتِ

او نه دې ورځي حائضه ښځه مسجد ته او نه دې طواف کوي پر کعبه شریفه باندې او جنب هم داخل حکم دی۔ په حدیث شریف کې راغلي دي چه آنحضرت صلی الله علیه و [illegible] فرمایلي: [illegible] حلال نه بولم مسجد و حائضې او جنب ته۔

## وَلَا يَأْتِيهَا زَوْجُهَا

او نه دې ورځي و حائضې ته میړه د دې یعني جماع دې نه ورسره کوي۔ قرآن مجید: وَلَا تَقْرَبُوهُنَّ حَتَّىٰ يَطْهُرْنَ، یعني تاسې مه نږدې کیږئ و حائضو ښځو ته تر هغو چه پاکیږي د حیض څخه۔

## وَلَا يَجُوزُ لِحَائِضٍ وَلَا لِجُنُبٍ قِرَاءَةُ الْقُرْآنِ

او نه دی روا حائضې ته او نه جنب ته قرائت د قرآن پاک کې څه هم په یادوالي۔

مسئله: وجنب او حائضې ته دکلمې شریفې ویل۔ سُبحان الله ویل۔ سلام اچول۔ سلام [illegible] مطلب دا چه ماسوا د قول نه د قرآن نور د ټولو اذکارو اجازه شته او روا دي۔

د غفلت څخه بعض عوام بلکه بعض طالبان هم چه جنب شي پر سړي پسې سلام اچولو ته او [illegible] کښته کوي۔ نه چا ته سلام اچوي او نه جواب ورکوي۔

## وَلَا يَجُوزُ لِلْمُحْدِثِ وَالْجُنُبِ وَالْحَائِضِ

او نه دی روا او د سه سړي ته او جنب ته او حائضې ښځې ته

## مَسُّ الْمُصْحَفِ إِلَّا أَنْ يَأْخُذَهُ بِغِلَافِهِ

مس کول د قرآن شریف مګر هغه وخت کې و نیسي [illegible] پوښ سره

مسئله: د پوښ څخه هغه پوښ مراد دی چه د قرآن شریف څخه جلا وي۔ که پوښ کنډلی وي یا سرېښ وي هغه پوښ سره مس کول نا روا دي۔ هدایه [illegible]

مسئله! ودغو کسانو ته نیول د قرآن شریف په لستوڼي یا په قمیص مکروه دي. هدایه ص۶۲

مسئله! ونابالغو کوچنیانو ته قرآن شریف سره د بې اودسیا د ورکړې روا دي. ولې چه هر وخت په دوی اودس تازه کول حرج دی او د قرآن شریف وینا هم د دوی څخه پاتېږي. نو ضرورت دی. هدایه ص۶۴.

مسئله! د شرعي کتابونو فقه حدیث تفسیر مثلاً مسه کول په بې اودسیا مکروه دي.

مسئله! سره د وجود د اوبو د پاره لمسې د قرآن شریف تیمم نه دی روا.

### فَإِذَا انْقَطَعَ دَمُ الْحَيْضِ لِأَقَلَّ مِنْ عَشَرَةِ أَيَّامٍ لَمْ يَجُزْ

او که ودرېدل وینه د حائضه ښځې کم تر لس ورځې. نو نه دی روا مېړه ته

### وَطْؤُهَا حَتّٰى تَغْتَسِلَ أَوْ يَمْضِيَ عَلَيْهَا وَقْتُ صَلٰوةٍ كَامِلَةٍ

ولې د دې تر څو چه غسل کوي. او یا تېرې شي پر دې باندې یو کامل وخت د لمانځه.

ولې چه وینه د حیض کله هم کله ودرېږي او بیرته جاري شي. نو باید د قطع خوائي یا په غسل یا د کامل وخت د لمانځه په تېرېدو سره ټینګ شي.

مسئله! د ښځې سره جماع په حال کې د حیض ګناه کبیره او علاج ئې توبه او پښېماني ده او یو څه خیرات دې هم وکړي.

مسئله! د ماینې سره د شا په خوا کې کار کول ډېر سخته ګناه ده.

### وَإِنِ انْقَطَعَ دَمُهَا لِعَشَرَةِ أَيَّامٍ جَازَ وَطْؤُهَا قَبْلَ الْغُسْلِ

او که چېرې قطع شوې وینې د حائضې پر لس ورځې روا دي جماع ور سره کول د مخه تر غسل. ولې چه تر لس ورځې بالا حیض نشته. لکن مستحب دا ده چه غسل ته انتظار وکړي.

### وَالطُّهْرُ الْمُتَخَلِّلُ بَيْنَ الدَّمَيْنِ فِي مُدَّةِ الْحَيْضِ فَهُوَ كَالدَّمِ الْجَارِي

او پاکي د وینو چه راسي په مابین کې د دوو وینو په وخت کې د حیض پس هغه لکه جاري وینه؛ تول حیض ګڼل کیږي،

پوهه سه! چه د طهر متخلل په باره کې ډېر قولونه او اختلاف سته چه د فتاواو په کتابو کې په تفصیل سره ذکر کړه سوي دي چه د تولو ذکر کول د دې مختصر کتاب سره مناسب نه دي په تولو کې آسان قول مذهب د امام ابو یوسف دی چه په کوکب دري ص۱۵ کې مذکور دی

او هغه دا دی! چه منځکړی طهر که پنځلس ورځې وو هغه خو فاصل ګڼل کیږی. یعنی د غه او ورو وسته وینه سره کړیږی. او که تر پنځلس کم وو نو که تر درې ورځې هم کم وو هغه خو په اتفاق فاصل نه دی. بلکه ټول لکه پرله پسی وینه ګڼل کیږی. او که درې ورځې وو یا بالا وو هغه د امام اعظم په نزد فاصل دی. او د امام ابو یوسف په نزد فاصل نه دی حتی که څه هم لس ورځې وی. او په کتاب کی وائی چه امام اعظم هم رجوع و قول ته د ابو یوسف کړی دی. او ډیر علماء هم په دغه مذهب فتوی ورکوی

## وَاَقَلُّ الطُّهْرِ خَمْسَةَ عَشَرَ يَوْمًا وَلَا غَايَةَ لِاَكْثَرِهٖ

او کمه موده د طهر پنځلس ورځې ده او پائی نسته اکثری مودې لره د طهر.

ولی چه طبائع د ښځو مختلف دی. بلکه بعضی ښځې پس له عیال نه بیزید لو په میاشتو میاشتو پاکی وی. مسئله! ښځه به هم لمونځ کوی او هم به روژې نسی تر هغو پوری چه وینی ښکاره کیږی. حتی که څه هم کال یا دوه کاله یا بالا هم پریتږسی. هدایه ص۶۵

## وَدَمُ الْاِسْتِحَاضَةِ هُوَ مَا تَرَاهُ الْمَرْأَةُ اَقَلَّ مِنْ

او وینی د استحاضة (یعنی وینی د مرض) هغه وینی دی چه وی وینی ښځه کم

## ثَلٰثَةِ اَيَّامٍ اَوْ اَكْثَرَ مِنْ عَشَرَةِ اَيَّامٍ

تر درې ورځې او یا بالا تر لس ورځې.

مسئله! که حامله ښځه وینی ولیدلې درې ورځې یا لس ورځې هغه هم استحاضة دی. او که یوې ښځې عادت د حیض د ره لودی مثلاً شپږ ورځې. او په یوه بله میاشت کی تر شپږ ورځې بالا سوې نو نه دی لمونځ کوی او نه دی روژه نیسی تر لسو ورځو پوری. که پر لس ورځې وینه قطع سوه نو ټول لس ورځې حیض دی او که تر لس ورځې بالا سوې. نو تر اوو ورځو څخه وروسته ټول استحاضة دی نو دا ښځه به تر اوو ورځو وروسته لمونځونه او روژې قضاء راوړی. او د غه رنګه که نفاس د ښځې تر څلویښت ورځو تیر سو هغه مرض دی.

## فَحُكْمُهٗ حُكْمُ الرُّعَافِ لَا يَمْنَعُ الصَّلٰوةَ وَلَا الصَّوْمَ وَلَا الْوَطْیَ

پس حکم د استحاضة د وینو حکم د پزی د وینو دی. نه منع کوی دغه وینی د استحاضة لمونځ او نه روژه او نه وطی د میړه.

په حدیث مبارک کې چه روایت د بخاري او ابن ماجة وغیرهما کړی دی راغلي دي چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د فاطمة بنت قیس رض ته وفرمایل چه اودس تازه کوه یعنې هر لمانځه ته او لمونځ کوه که څه هم وینې در په بوریا څڅیږي - حاصل دا چه د مستحاضة حکم د معذور دی -

**وَاِذَا زَادَ الدَّمُ عَلَى الْعَشَرَةِ وَلِلْمَرْأَةِ عَادَةٌ مَعْرُوفَةٌ رُدَّتْ**

او که زیاتي شوې وینې د دې په یوه میاشت کې تر لسو ورځو او وي ښځې له عادة معلومه او ورځې یاتي ورځې مثلا

**اِلٰى اَيَّامِ عَادَتِهَا وَمَا زَادَ عَلٰى ذٰلِكَ فَهُوَ اِسْتِحَاضَةٌ**

راددي کړل شي ورځو ته د عادت د دې او هغه چه زیات شي په عادت نو هغه مرض دی -

یعنې د هغې ښځې د عادت ورځې نو حیض دی او هغه بالابوده ورځې نو استحاضه دی -

دا مسئله فقهې دغه هم په تفصیل ذکر کړه -

**وَاِنِ ابْتَدَأَتْ مَعَ الْبُلُوْغِ اِسْتِحَاضَةً فَحَيْضُهَا عَشَرَةُ**

او که شروع شو سره د بلوغه د ښځې مرض (یعنې وینې همیشه شوې) نو حیض د دې ښځې لس

**اَيَّامٍ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ اَوَّلَ مَا رَاَتِ الدَّمَ وَالْبَاقِي اِسْتِحَاضَةٌ**

ورځې دی د هرې میاشتې څخه اول هغه چه وي ویني وینه - او نورې شل ورځې مرض دی -

او که دا ښځه لنګه شي نفاس نو څلویښت ورځې دی - او دا مذهب دا امام اعظم او د امام محمد رح دی - او امام ابو یوسف وائي چه حیض د دغې ښځې په حق کې د لمانځه او روژې د پاره ورځې دی چه دا اقل موده د حیض ده - او دا هم احتیاط دی - او د عدې د طلاق په باره کې لس ورځې دی او دا هم د احتیاط دلاره ده - کذا في الجوهرة والظهيرية -

**وَالْمُسْتَحَاضَةُ وَمَنْ بِهِ سَلَسُ الْبَوْلِ وَالرُّعَافُ الدَّائِمُ**

ومستحاضه ښځه او هغه څوک چه په ده مرض د بولو څڅېدو وي او یا ئې همیشه د پزې وینه جارې وي

**وَالْجُرْحُ الَّذِيْ لَا يَرْقَاءُ يَتَوَضَّئُوْنَ لِوَقْتِ كُلِّ**

یا پرهر وي هغه چه نه درېږي او دس دې کوي دوي د پاره د وخت د هر

صَلٰوةٍ وَيُصَلُّوْنَ بِذٰلِكَ الْوُضُوْءِ فِي الْوَقْتِ

لمانځه او لمونځ دي کوي په هغه اودس په دغه وخت کې هرڅه چه خوښ ئې

مَاشَآؤُا مِنَ الْفَرَائِضِ وَالنَّوَافِلِ

وي د دوئ د فرض لمونځو څخه او يا د نفل لمونځو څخه که څه هم عذر ئې جاري وي۔

او دا هم زمونږ مذهب دئ او امام شافعيؒ وائي چه د هر لمانځه د پاره به جلا اودس کوي۔ يعنې دوه فرضي لمونځونه به يو اودس نه سي کولای۔

مسئله: او دغو معذورو کسانو کالي که په وخت کې د لمانځه مردار سي پرواه نلري۔ لکن بل وخت ته نکه نوي اودس چه تازه کوي هغه مردار کالي به هم پرې منځي۔

فَإِذَا خَرَجَ الْوَقْتُ بَطَلَ وُضُوْءُهُمْ وَكَانَ

پس څه وخت چه تېر سو وخت نو باطل سوه اودسونه د دوئ۔ او سته

عَلَيْهِمْ اِسْتِئْنَافُ الْوُضُوْءِ لِوَقْتِ صَلٰوةٍ اُخْرٰى وَ

پر دوئ باندي د سره تازه کول د اودس د پاره د وخت د بل لمانځه۔ او

النِّفَاسُ هُوَ الدَّمُ الْخَارِجُ عَقِيْبَ الْوِلَادَةِ وَالدَّمُ

نفاس هغه وينې دي چه راووزي وروسته تر ځنګ والد۔ او وينې

الَّذِيْ تَرَاهُ الْحَامِلُ وَمَا تَرَاهُ الْمَرْأَةُ فِيْ حَالِ وِلَادَتِهَا

هغه وينې چه وي وينې اميد وارو ښځو او هغه وينې چه وي وينې ښځه په حال کې د ځنګيدو

قَبْلَ خُرُوْجِ الْوَلَدِ فَهُوَ اِسْتِحَاضَةٌ

مخکي تر راوتلو د کوچني دا دواړي وينې استحاضه دئ د لمونځ به کوي او روژه به هم نيسي۔

مسئله: که د ښځي د بچه تر راوتو د کوچني وينه جاري سوه او وخت د لمانځه ورغی لمونځ پر لازم دئ که اودس کولای سي او دس دي وکړي او که اودس نه سي کولای

تیمم دی وکړي اولمونځ دې ادا کړي یا په ولاړه یا په ناستې یا په اشاره سره وکړي څرنګه چې قدرت ئې وي. اوکه تر اخیره وخت نه سو پیدا اولمونځ ئې نه وکړي دهغه لمانځه قضا به راوړي.

**وَأَقَلُّ النِّفَاسِ لَاحَدَّ لَهُ وَأَكْثَرُهُ أَرْبَعُونَ يَوْمًا**

اوکمه موده دنفاس اندازه نه لري او ډیره موده ئې څلویښت ورځې ده.

## ضروري تنبیه

زموږ اکثره ښځې خاهخا څلویښت ورځې نه لمونځ کوي اونه روژه نیسي که څه هم وینه قطع سوې وي او دغسې نه ده ولې چه د نفاس کمه موده معلومه نه ده نو هر وخت چه دښځې وینې پرېږدي سمدستي به غسل کوي اولمونځ به کوي او روژه به نیسي.

افسوس چه موږ په اسلامي ملک کې ژوند تېروو بیا هم موږ د دین د احکامو څخه بې نصیبه پاتې یو او بېدې شرمېږو چه د عالم څخه د مسئلې پوښتنه وکړو.

**وَمَا زَادَ عَلَىٰ ذَٰلِكَ فَهُوَ اِسْتِحَاضَةٌ وَإِذَا**

او هغه وینې چه بالاسي تر څلویښت ورځې نو هغه استحاضه دي. او که چیرې تیرې شوې

**تَجَاوَزَ الدَّمُ عَلَى الْأَرْبَعِينَ وَقَدْ كَانَتْ هٰذِهِ**

وینې د ښځې تر څلویښت ورځې او د غه ښځه د مخه تر دې هم

**الْمَرْأَةُ وَلَدَتْ قَبْلَ ذَٰلِكَ وَلَهَا عَادَةٌ فِي**

زېږنګه سوې وه اودې لره عادت وو په نفاس کې یعنې یا شل ورځې یا دېرش ورځې مثلا

**النِّفَاسِ رُدَّتْ إِلَىٰ أَيَّامِ نِفَاسِهَا وَعَادَتِهَا**

نو دا ښځه دې راوګرځي وهغو ورځو ته د نفاس او عادت د دې

یعنې او س هم د دې نفاس هغه قدر ورځې دي. او د هغه را پسته هر څو ورځې چه تیرې سوي وي د هغو ورځو د لمونځو قضاء دې راوړي او د غه رنګه که روژې خوړلي وي.

**وَإِنْ لَمْ تَكُنْ لَهَا عَادَةٌ فَنِفَاسُهَا أَرْبَعُونَ يَوْمًا**

او که دې لره عادت نه وو نو نفاس ئې څلویښت ورځې دي.

پوهاسه! چه عادت په یوه واره لګیدو سره نه معلومیږي بلکه په درې وارو لګیدو معلومیږي. (بحر)

**وَمَنْ وَلَدَتْ وَلَدَيْنِ فِيْ بَطْنٍ وَاحِدٍ فَنِفَاسُهَا مَا خَرَجَ**

او که چیرې و زیږول ښځې دوه عیاله په یوه ګېډه کې نو نفاس د دې هغه وینه ده چه وروسته

**مِنَ الدَّمِ عَقِيْبَ الْوَلَدِ الْاَوَّلِ عِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ**

تر اول عیال را پیدا شي. او دا په مذهب کې د امام اعظم صاحب او د

**وَاَبِيْ يُوْسُفَ وَقَالَ مُحَمَّدٌ وَزُفَرُ مِنَ الْوَلَدِ الثَّانِيْ**

ابي یوسف دی. او امام محمد او امام زفر وائي چه نفاس نو تر دویم عیال وروسته شروع کیږي

**وَالْعِدَّةُ تَنْقَضِيْ بِالْوَلَدِ الْاَخِيْرِ فِيْ قَوْلِهِمْ جَمِيْعًا**

او عده تیریږي په اخیري اولاد سره په قول سره د ټولو امامانو.

مسئله! بطن واحد دا بولي چه په مابین کې د دوو عیالو تر شپږ میاشتې کمه موده وي. نو حاصل د دې اختلاف دا دی چه د امام اعظم او امام ابي یوسف په نزد چه تر اول هلک پس وینه جاري سوه بیخي نفاس سوه. نو نه به لمونځ کوي او نه به روژه نیسي که هر څو وروسته د دوهم بچی پیدا شي. او امام محمد او امام زفر وائي چه د دغې ښځې د دوهم بچي څخه نفاس شروع دی. نو د مابین په وخت کې که څه هم وینه بهیږي. بیا به هم اودس او لمونځ کوي

## عجب مسئله.

امام ابي یوسف د امام اعظم څخه پوښتنه وکړه که چیرې د دغې ښځې د اول اولاد او د دوهم اولاد په مابین کې څلویښت ورځې تیرې سوې نو تر دوهم بچي وروسته دا ښځه نفاس نه لري؟ امام اعظم په جواب کې ورته وویل چه دوی ورځې فصل نه سي راتلای. امام ابي یوسف ورته وویل که چیرې راغلې فرضاً امام اعظم ورته وویل هو پس له دوهم عیاله دې لره نفاس سته. کذا في الجوهرة وكذا في الظهيرة وكذا في الكوكب.

اللهم اغفر لكاتبه ولمؤلفه ولناشره ولجميع المؤمنين آمين

# بَابُ الْاَنْجَاسِ

باب ثابت دی په بیان کښ د احکامو د نجاساتو

**فائده!** نجاست دوه قسمه دی یو نجاست حکمی دی لکه بې اوده سیا یا جنابت او بل نجاست حقیقی دی لکه بولې شراب گندگی وغیره. تر اوسه قدوری بیان د نجاست حکمی کاوه او اوس بیان د نجاست حقیقی کوی.

**پوښتنه!** چه نجاست حکمی قوی دی تر نجاست حقیق حکه مصنف حکمی دمخه کړی. دلیل ئې دا دی! چه د نجاست حکمی لږ او ډیر مانع د لمانځه دی په اتفاق. او په حقیقی کښ لږ عفوه سته لکه بیان چه به په باب کښ راسی. او بل دا چه نجاست حکمی په هیڅ عذر نه معافیږی. یا په اوبو یا په خاوره یعنی په تیمم زائلیده غواړی. او حقیق په عذر سره زائل ولو نه غواړی. لکه د مستحاضة وینې یاد سلسل البول بولې او نور.

**فائده!** چه نجاست حقیقی دوه قسمه دی. یو مرئی یعنی چه په سترګو معلومیږی بل غیر مرئی دی. مرئی هغه دی چه ذات د نجاست پس له وچیدو معلومیږی. لکه گندگی او خوشانی وغیره. او غیر مرئی هغه دی چه پس له وچیدو ئې ذات نه معلومیږی که څه هم رنګ ئې معلومیږی. لکه بولې شراب وغیره.

## تَطْهِيْرُ النَّجَاسَةِ وَاجِبٌ مِنْ بَدَنِ الْمُصَلِّيْ

پاکول د نجاست واجب دی د بدن څخه د لمونځ کوونکی

## وَثَوْبِهٖ وَالْمَكَانُ الَّذِيْ يُصَلِّيْ فِيْهِ

او د جامې څخه د ده او د هغه ځای څخه چه دی لمونځ پکښې اداء کوی په هغه ځای کښ

**سوال!** نجاست خو هر گز نه پاکیږی نو مصنف څنګه وائی. تطهیر النجاسة"

**جواب!** تطهیر د لته په معنی د ازاله دی یعنی لیری کول د نجاست واجب دی او هغه جواب چه کوکب دری یا نور کتابونو ئې وائی چه د لته مضاف محذوف دی. یعنی تطهیر محل النجاسة. بنه جواب نه دی ولې چه د اعبارت بې معنی کرځی چه تطهیر

د محل نجاست واجب دئ د بدن د مصلي نه. چه بدن د مصلي عين محل د نجاست دی. بنه فکر وکړه. او حق په خلکو پټ نه. بلکه خلک په حق و پټ نه.

**وَيَجُوزُ تَطْهِيرُ النَّجَاسَةِ بِالْمَاءِ وَبِكُلِّ مَائِعٍ**

او روادی تطهير د نجاست په اوبو سره او په هر بهيدونکی شی سره چه پاک وی

**طَاهِرٍ يُمْكِنُ إِزَالَتُهَا بِهِ كَالْخَلِّ وَمَاءِ الْوَرْدِ**

چه ممکن وی زائلول د نجاست په هغه سره لکه سرکه او اوبه د ګل ګلاب وغيره يعنی دد وی عرق.

د يُمْكِن، تو رې فائده دا ده چه په ر وغنيا تو او عسلو نجس نه زائلېږی. لکه چه ظاهره

ده. او په شيدو کی اختلاف دی. په نهايه کی وائی چه نه دی په ر وا.

**وَإِذَا أَصَابَتِ الْخُفَّ نَجَاسَةٌ لَهَا جِرْمٌ فَجَفَّتْ**

او که چيری ور سيږی موزی بوټ چپلی ته نجاست چه هغه له صورت وی لکه ګندګی او هغه نجاست وچ سو

**فَدَلَكَهُ بِالْأَرْضِ جَازَتِ الصَّلٰوةُ فِيهِ**

نو ئی و مُښله هغه موزه وغيره په مځکه پوری (يعنی هغه مردار ئی زائل سوه) رو وادی لمونځ په هغه موزه وغيره کی

مطلب دا چه موزه پاک سوه. ولا چه موزه وغيره حکم د مځکی لری. او په حديث شريف

کی راغلی دی چه پاکيده د مځکی وچ والی دی. بخاری. مسلم.

**وَالْمَنِيُّ نَجِسٌ يَجِبُ غَسْلُ رَطْبِهِ فَإِذَا جَفَّ**

او منی مردار دی واجب دئ پريولل د لندي منی او څه وخت چه وچ سو په جامه باندی

**عَلَى الثَّوْبِ أَجْزَءَ فِيهِ الْفَرْكُ**

نو کافی ده کوښ وهل (يعنی چه د جامی څخه وکوښ وهل سی جامه پاک سوه)

**تشريح**

منی د نښتی که څه هم وچه سی په کوښ وهلو نه پاکيږی ولی چه هغه نرئ دی لکه بولی او منی

د ښځی او د نښتی امام شافعیؒ پاکه بولی که وچه وی که لنده. د امام اعظمؒ دليل دا دی چه

رسول کریم صلی الله علیه وسلم وبي بي عائشې ته وویل چه مني مچه کړه لنده وه او که وچه وه کوروه ئې - ابن ماجه - بیهقي -

سوال! پر نن چه اودس اوهم نو اول انتشار د ذکر راځي او د هغه سره مذي راوزي ورسره وسته بیا مني او مذي په فرک نه پاکیږي -

جواب! مذي لږ او مغلوبه وي نو د مني تابع دي -

مسئله! مني په فرک (کرولو) هلته پاکیږي چه د ذکر سر ئې پاک وي (په اوبو ئې پریولی وي) نهایه شرح

مسئله! مني چه وګوروله سي او هغه جامه پاکه سي او بیا هغه ځای په اوبو لوند سي بیرته مردار یږي او که نه؟ د امام اعظم څخه دوه روایته دي - نو احتیاط دا دئ چه مني په هرصورت کي پرمنځي

## وَالنَّجَاسَةُ إِذَا أَصَابَتِ الْمِرْآةَ أَوِ السَّيْفَ اِكْتُفِيَ بِمَسْحِهِمَا

او نجاست چه ورسیږي هنداري ته یا توري ته یا بل بنوي شي ته اکتفا کیږي په مسه کولو د هغه په ځکه پوري ولې چه نجاست د ننه نه ورننوزي - او د باندې نجاست په مسه زائل سو -

## وَإِذَا أَصَابَتِ الْأَرْضَ نَجَاسَةٌ فَجَفَّتْ بِا

او چه ورسیږي ځمکي ته نجاست او بیا وچه سي په لمر سره

## لشَّمْسِ وَذَهَبَ أَثَرُهَا جَازَتِ الصَّلٰوةُ

او اثر ئې ولاړ سي (یعني لکه بوئ جرم رنګ) روا دئ لمونځ

## عَلٰى مَكَانِهَا وَلَا يَجُوْزُ التَّيَمُّمُ مِنْهَا

پر هغه ځای د نجاست او نه دئ روا تیمم پر هغه ځای باندې -

فرق دا دئ چه د تیمم د پاره ځمکه په قرآن ثابته ده - لقوله تعالی "فَتَيَمَّمُوْا صَعِيْدًا طَيِّبًا" او د ځمکي پاکوالئ په وچوالي په حدیث سره ثابت سوی دی - لقوله علیه الصلوٰة والسلام "زکوة الارض یبسها"

## ښهانه فائده

په متن کي دا راغلی "بالشمس" دا قید اتفاقي دی ولې چه که ځمکه په هوا وچه سي یا پر اور او اثر د نجاست ولاړ سي هم د لمانځه د پاره پاکه ده

**وَمَنْ اَصَابَهٗ مِنَ النَّجَاسَةِ الْمُغَلَّظَةِ كَالدَّمِ**

او که چاته ورسیږی (بدن ته یا وجامې ته) نجاست سخت (یعنی ډیره مرداره) لکه وینه

**وَالْبَوْلِ وَالْغَائِطِ وَالْخَمْرِ مِقْدَارُ الدِّرْهَمِ**

او بولې او ګندګی او شراب ـ په اندازه د یوه درهم

**وَمَادُوْنَهٗ جَازَتِ الصَّلٰوةُ مَعَهٗ وَاِنْ زَادَ لَمْ يَجُزْ**

یا کم تر درهم لمونځ ورسره روا دی او کم ترد درهم بالاوی لمونځ نه دی ورسره روا ـ

مسئله! دا حکم هلته دی که سړی دا نجاست نه وی لیدلی او لمونځ ورسره وکړی ـ نو د لمانځه ـ اګر چیرته سته او کی د غه تر لمانځه ولیدی بیا لمونځ ورسره مکس وکا دی ـ رد محتار پوهه سه! چه مقدار د درهم په نری نجس کی لکه بولې قدر د یوه ورغوی دی ـ او په صورت لری لکه ګندګی مقدار د یوه مثقال دی ـ کوکب دری ص۱۲

**وَاِنْ اَصَابَتْهٗ نَجَاسَةٌ مُخَفَّفَةٌ كَبَوْلِ مَا يُؤْكَلُ لَحْمُهٗ**

او که ورسیدی ورده ته نجاست مخفف لکه بولی د هغه شی چه غوښی ئې خوړل کیږی

**جَازَتِ الصَّلٰوةُ مَعَهَا مَالَمْ تَبْلُغْ رُبُعَ الثَّوْبِ**

یعنی لکه پسه غوی وغیره روا دی لمونځ ورسره تر هغو چه څلرمې ته د جامې نه وی رسیدلی ـ

پوهه سه! چه د ربع توب نه څلورمه شی مراد دی ـ بعضی فقهاء وائی چه په عرف کی یوه جامه بلا کیږی د هغې څلورم مراد دی ـ مثلاً قمیص که لوئ وی که کوچنی یوه جامه ده ـ نو د هغه قمیص ربع مراد ده ـ د غه رنګه پړتوګ یوه جامه ده ـ پټو یوه جامه ده ـ کوټ یوه جامه ده ـ او بعضی فقهاء وائی چه څلرمه د هغه جامې مراد ده چه لمونځ یکښې روا وی لکه معمولی لنګ ـ او دا روایت د امام اعظم رحمه الله هم سوئ دی ـ هدایه ص۴۲ د اهل مذهب په مضمونات کی وائی صحیح دی ـ او کرماني وائی څلرمه د هغه ځای اعتبار لری چه نجاست ورته رسیدلی وی ـ مثلاً هر لستوڼی او هره تاکه ـ دیرتاکه یا د قمیص یا د کوټ ـ او په دی مذهب کی احتیاط دی ـ او هم پر دغه مذهب

فتوی د اکثرو مشایخو ده - شرح وقایه ص۲۵ -
او په بعضی روایتونو کی د امام ابو یوسفؒ لویشت په لویشت کی او په بعضی کی ټول پرکټه کی راغلی دی
فائده ۸ / د فقهی شریفی په اختلافی مسئلو کی چه هر څو احتیاط ته نژدې وی -
باید فتوی ورکړه سی په شرط د دې چه د ظاهر المذهب او روایت څخه خلاف نه وی -

وَتَطْهِيرُ النَّجَاسَةِ الَّتِي يَجِبُ غَسْلُهَا عَلَى وَجْهَيْنِ فَمَا

او پاکول د هر داسې شی چه واجب وی په مینځل ئی پس دوه قسمه دی - پس هغه نجاست چه جسم لری

كَانَ لَهُ عَيْنٌ مَرْئِيَّةٌ فَطَهَارَتُهَا زَوَالُ عَيْنِهَا

معلومید ونکی (لکه گندگی وغیره) نو پاکوالی ئی د ادی چه ورک سی ذات د هغه نجاست یعنی هیڅ اثر ئی پر کالو نه سی پاتې

إِلَّا أَنْ يَبْقَى مِنْ أَثَرِهَا مَا يَشُقُّ إِزَالَتُهَا

لکه رنګ بوئی) مگر پرته له دې که د نجاست داسې اثر پاتې سی چه گران وی زائلول د هغه -
فائده / مشقت دا بولی چه ازاله ئی وصابون یا وتودو اوبو ته ضرورت لری -

وَمَا لَيْسَ لَهُ عَيْنٌ مَرْئِيَّةٌ فَطَهَارَتُهَا أَنْ يُغْسَلَ حَتَّى

پس هغه نجاست چه نه لری جسم لید ونکی (پس تر وچیدو) پس پاکی د هغه نجاست دا ده چه تر هغو

يَغْلِبَ عَلَى ظَنِّ الْغَاسِلِ إِنَّهُ قَدْ طَهُرَ

دې مینځی چه د غاسل غالب گمان کیږی چه اوس نو پاک سو -

د امام اعظمؒ لوی قانون دی چه د اعنی احکام ورائی ته د مبتلا بها پرېږدی - لکه چه
قبله د سړی څخه ورک سی -
مسئله / درې وارې پریولل چه په ډیرو کتابو کی راغلی دی بناء پر دې دی
چه غالب ظن په درې وارې پیدا کیږی - او بله فائده ئی دا ده چه د وسواسی سړی
وسوسه دفع سی -
مسئله / په هر وار د جامې نښتیځل شرط دی په ظاهر روایت کی او په دریم
وار دې بنه ټینګ ونښتیځی -

فائده! په فتح القدير کې وائي چه قوة د نښتيځو نکي معتبر دی۔ او بعضي فقها وائي چه قوة د کالي والا معتبر دی۔ لکن دا روايت معمول نه دی حکه زموږ د نرو کالي که څه هم مردار وي سخې ئې مينځي او دا معلومه ده چه د نر قوة چه ځوان وي تر ښځو بالا دی۔ نو څوک که د اختلاف ځان باسي چه کالي ئې مردار سو هغه مردار ځائ دی نر ښځه مينځ

## وَالْاِسْتِنْجَاءُ سُنَّةٌ يُجْزِئُ فِيْهِ الْحَجَرُ وَالْمَدَرُ وَمَاقَامَ مَقَامَهُمَا

او استنجاء وهل سنت دی۔ کافي ده په استنجاء کې د بره چه ډيره ښوئه نه وي۔ او لوټه او هغه شي چه په ځائ کې د دې دوو د ريږي۔ لکه ريګ او خاوره۔

سوال! استنجائ ولي په سنتو کې داو د اسه نه راوړه؟

جواب! استنجاء ازاله د نجاست حقيقي ده او سنت دا او د اسه تو له دا ازالي د نجاست حکمي دی۔ لکه مضمضه او استنشاق۔ وجه د سنت والي دا ده چه رسول الله صلى الله عليه وسلم هميشه تو ب پر کړې دی۔ هدايه ص ۴۵ / ۱۲۔

## وَيَمْسَحُهُ حَتّٰى يُنَقِّيَهُ وَلَيْسَ فِيْهِ عَدَدٌ مَّسْنُوْنٌ

او مسح کوي دی د استنجاء ځائ تر هغو چه پاکيږي او نشته په استنجاء کې شمار سنت کړ سوی

او امام شافعيؒ وائي دري د برې ضروري دی۔ موږ وايو چه مقصود پاکوالی د هغه ځائ دی۔ نو که په يوه لوټه سره پاک سی نو څه پر والړې؟ كذا في الهداية۔

او په خلاصة الفتاوى کې وائي " لَوْ اِسْتَنْجٰى بِحَجَرٍ وَاحِدٍ وَحَصَلَ الْاِنْقَاءُ يَكُوْنُ مُقِيْمًا لِلسُّنَّةِ " يعني کې استنجاء وکړه په يوه د بره او پيدا سوه پاکي هغه سړی سنت پر ځائ کړه۔

فائده! بعضي کتابونه د استنجاء د پاره خاص خاص کيفيت بيانوی لکن په خلاصه کې وائي چه کيفيت شرط نه دی۔ بلکه مقصود پاکول د هغه ځائ دی۔

## وَغَسْلُهُ بِالْمَاءِ اَفْضَلُ

او پريولل د استنجاء د ځائ په او بو سره بهتر دی۔

ولې چه دا آية چه نازل سو " فِيْهِ رِجَالٌ يُّحِبُّوْنَ اَنْ يَّتَطَهَّرُوْا " يعني په قبا

کې خلک دي چې د دوی بنه ځان پاکول خوښ دي. رسول الله صلی الله علیه وسلم قبا ته وره غلي او وې ویل چې خدای پاک ستاسي په پاکۍ کې صفت کړی دی. نو ستاسي پاکي څه ده؟ دوی ورته وویل چې موږ د ډبرو وروسته استنجاء وروسته په اوبو هم استنجاء کوو. آنحضرت صلی الله علیه وسلم ورته وویل چې همدغه کار دی. رواه البخاري. مسلم وغیرهما.

**فائده!** اختلاف د فقهاؤ په دې کې دی چې استنجاء د اوبو څنګه ده. بعضي وائي چې مستحب ده. او بعضي وائي چې سنت ده. زموږ په زمانه کې هم دغه قول صحیح او پر دې فتوی ده. کوکب دری ص۱۹

د بعضي مشائخو څخه چا پوښتنه وکړه چې څرنګه به استنجاء د اوبو سنت وي زموږ په زمانه کې او سره د دې چې عوره دا صحابو ږ یوازې په ډبرو استنجاء وهل؟ هغه شیخ داسي ورته وویل. إِنَّهُمْ كَانُوا يَبْعُرُونَ بَعْرًا وَأَنْتُمْ تَثْلِطُونَ ثَلْطًا. معنی دا چې صحابه رض کبنیېناستل په پچو یعني چکۍ لکه پچې داسي وو او تاسي چکرکوي نرې. یعني تر لس رخیزي.

## ضروري مسئله

په لویو ښارو کې د دنیا په نن زمانه کې د بری لوټې وغیره داود س ماتې په ځای کې بیخي نه پیدا کیږي نو به سړی څه کوي؟

**جواب!** استنجاء دی په اوبو کوي هیڅ حرج نسته ولې چې ضرورت په دین کې مدفوع دی. او که په بیکاره ټوکړه استنجاء وچه کې هم روا ده. بعضي خلک علاحده په دې باره لوئ حرج کوي حتی لوټې په جیب کې ګرځوي.

## وَإِنْ تَجَاوَزَتِ النَّجَاسَةُ مَخْرَجَهَا

او که چیری تیر سوي وو نجاست او کند کې تر ځای د راوتو (یعني د دبري ترخولې)

## لَمْ يَجُزْ فِيهِ إِلَّا الْمَاءُ أَوِ الْمَائِعُ

بیا نه دی روا مګر اوبه یا بل نرې شی لکه اوبه

یعني په یوازې لوټه نې چاره نه کیږي بلکه د لوټو سره دی په اوبو هم استنجاء وکړي.

**مسئله!** که تیر سوي نجاست تر قدر د درهم بالا وو بیا په اوبو استنجاء وهل

واجب دی په اتفاق۔ او که تر قدره د درهم کم وو په نزد د امام اعظمؒ او د امام ابو یوسفؒ په نزد او امام محمدؒ وائی چه د برخه کفایت نه کوی که څه هم تر قدره درهم کم وی

## وَلَا يَسْتَنْجِ بِعَظْمٍ وَلَا بِرَوْثٍ وَلَا بِطَعَامٍ وَلَا بِيَمِينِهٖ

او استنجاء دی نه وهی په هډوکی او نه په خوشائی او نه په ډوډی او نه په ښی لاس۔

په حدیث شریف کی راغلی دی که چا استنجاء وکړه په هډوکی پس بیزاره ده دی د هغه څخه ذمت د محمد صلی الله علیه وسلم۔ کوکب دری ص۱۹۔ او په بل حدیث کی راغلی دی چه آنحضرت صلی الله علیه وسلم فرمائی چه هډوکی تو سته د پیریانانو دی۔ او خوشائی د دوی د چارپایانو توښه ده۔ بخاری۔ ابوداؤد۔ او په دې باب کی حدیثونه نور هم شته۔

او ډوډی خو شرف لری په استنجاء وهلو کی ئی اهانت او سپکاوی دی۔ حتی چه د عوامو دا عقیده ده چه په ډوډی استنجاء وهل کفر دی که څه هم د غسی نه ده۔ او ښی لاس خو د پاره د خوړک دی۔ او په حدیث شریف کی هم نهی د دې څخه راغلی دی۔ بخاری۔

**مسئله!** که چپه لاس خوږ وو نو بیا په ښی لاس استنجاء روا ده۔

**مسئله!** په کاغذ چه ساده هم وی استنجاء ناروا ده۔ ولی چه د حضرو د قرآن کریم او حدیثو د لیکلو ځای دی۔

**مسئله!** د کفارو په ملکو کی یو شی بیخی نازک په شکل د کاغذ جوړیږی چه په بازار وکی خرڅیږی او د هوټلو په او د س ځائی کی موجود وی د استنجاء د پاره۔ چونکه هغه کاغذ نه دی او نه شی پری لیکل کیږی او نه هم د بل کار محترم شی دی نو په هغه استنجاء روا ده۔ لکه په بی فائده ټکره۔ درویش

مسئله که فرضا یو سړی یا په هډوکی او یا په خوشائی استنجاء و وهله کفایت خو کوی ولی چه مقصود حاصل سو لکن په سبب د مخالفت د حدیث نبوی په ګناه کار سی هدایه ص۵۔ او د ډوډی سبب د منع د استنجاء موږ قبلاً اهانت بیان کړی او صاحب هدایه ئی سبب ضائع کول د مال او اسراف بیان کړی دی۔

پوهنه! چه حدیث د نهی د استنجاء بالیمین شیخ و سره صحاح کتابو روایت کړی دی۔

# كِتَابُ الصَّلٰوةِ

كتاب دئ په بيان كې د لمانځه

تر اوسه پورې مصنف لوئ شرط د لمانځه چه طهارت دئ په ټولو اقسامو كې بيان كړې او س مقصود اعظم ته نوبت ورسيدئ چه لمونځ دئ او طهارت ئې د دغه كړې ولې چه شرط د مخه وي۔

**فائده!** چونكه وخت سبب د لمانځه دئ لكه په اصولو كې د فقهي شريف ئې بيان راغلئ دئ او سبب تر مسبب د مخه وي نو له دې جهته مصنف د لمونځه وختو بيان د مخه راوړې

**پوهه شه!** چه لمونځ په شپه د معراج كې فرض سوئ دئ په اتفاق د رواياتو۔ او په حديث شريف كې چه ټولو كتابو د حديثو ئې روايت كړې دئ داسې راغلي دي چه لمونځونه اول پنځوس فرض كړه سوه۔ بيا موسىٰ عليه السّلام و آنحضرت صلى الله عليه وسلم ته وويل چه پنځوس لمونځونه ډير دي۔ او ستا امت ئې په ښاغلو ورځ كې طاقت د كولو نه لري د خداىٔ جل جلاله ځخه د تخفيف خواست وكړه۔ عليه الصلوٰة والسلام دغسې وكړه خداىٔ پاك پنځه لمونځونه ور كم كړه۔ بيا چه موسىٰ عليه السلام ته راغئ موسىٰ عليه السلام ور ته وويل چه پنځه څلويښت هم ډير دي۔ بيا عليه السلام د تخفيف سوال وكړئ پنځه نور خداىٔ پاك ور كم كړه چه څلويښت پاته سي۔ او داغه شان بيا پنځه كم سوه حتى چه په اخير كې خداىٔ پاك د پنځو لمونځو امر وعليه السلام ته وركړې۔ او داىٔ ورته وويل۔ لَا يُبَدَّلُ الْقَوْلُ لَدَيَّ ، چه نور زما قول نه بدليږي۔ آنحضرت صلى الله عليه وسلم چه موسىٰ عليه السلام ته راغئ هغه ورته وه ته وويل چه پنځه لمونځونه هم ډير دي د تخفيف سوال بيا وكړه۔ عليه الصلوٰة والسلام وه ته وويل بسته د خداىٔ څخه شرميږم۔ هم په دغه حديث كې راغلي دي چه څه وخت چه آنحضرت صلى الله عليه وسلم سوال بس كړې۔ د خداىٔ پاك د خوا ندا وكړه سوه په دې عبارت۔ قَدْ اَمْضَيْتُ فَرِيْضَتِيْ وَخَفَّفْتُ عَنْ عِبَادِيْ ، يعني ما پوره كړه خپل فرض او هم مې تخفيف وكړئ پر بندګانو۔ له دې سببه چه د امت د عليه السلام نيكي كم د رجيوه په لس ده۔ نو پنځه لس پنځوس كيږي

او په عین حال کښې ظاهره خبره ده چه تر پنځو سو لمونځو پنځه لمونځونه سپک دي. دا قصه ما کوتاه کړه ټوله قصه په حدیث کښې د معراج په هر کتاب کښې د حدیثو موجوده ده.

**فائده!** قدوري اول د سهار د لمانځه د وخت څه بیان شروع کړې له څو سببه. اول په دې چه د سهار د لمانځه په اول وخت او په اخیر کښې اختلاف نشته. او د نورو لمونځو په وختو کښې اختلاف شته. او بل دا چه د سهار لمونځ اول لمونځ دی چه پس د خوبه د شپې (چه لکه مرګ داسې دی) ادا کېږي. او تر ټولو قوي سبب دا دی چه نقلي سبب دی هغه دا چه په حدیث شریف کښې په روایت د بخاري او مسلم او نورو کتابو کښې دی داسې راغلي دي چه څه وخت چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د معراج څخه راغلی او پنځه لمونځونه پر فرض شوه نو د وختو د ښودلو د پاره سهار جبرئیل علیه السلام پسې راغلی. او لمونځ رسول الله صلی الله په امامت د جبرئیل د سهار لمونځ وکړې او بیا ئې د انورو لمونځونه په ترتیب شوه. لکن په اوله ورځ او شپه ئې ټوله لمونځونه په اول اول وخت کښې اداء کړه او په دوهم شپا ورځ ئې ټوله لمونځونه په اخیر اخیر وخت کښې وکړه.

**سوال!** دا پنځه لمونځونه خو پر آنحضرت صلی الله علیه وسلم فرض وه او پر جبرئیل خو فرض نه وه نو څو اقتداء د فرض والا چه علیه السلام دی په نفل والا پسې چه جبرئیل دی لازم شوه او دا اقتداء په فقه کښې وائی چه نه ده روا.

**جواب!** جبرئیل علیه السلام په امر د خدای پاک راغلی وه نو دا دوه شپاه ورځ لمونځونه پر جبرئیل هم فرض سول.

---

## اَوَّلُ وَقْتِ الْفَجْرِ إِذَا طَلَعَ الْفَجْرُ الثَّانِيْ

اول وخت د سهار د لمانځه هغه وخت دی چه راوخیژي دوهمی سپیدې

---

## وَهُوَ الْبَيَاضُ الْمُعْتَرِضُ فِي الْأُفُقِ

چه ضد نو هغه سپین والی دی چه پاشلی په کناره کښې د آسمان وي.

---

**پوهنه!** چه سپیدې دوه قسمه دي. یو صبح کاذب چه بل نوم ئې فجر مستطیل دی دا هغه سپین والی دی چه لوړ په آسمان کښې لکه سپینسی معلوم سي او کناره د آسمان لا تاریکه وي. او دوهم صبح صادق دی چه بل نوم ئې فجر مستطیر دی چه هغه

داسمان په کناره وکې پاشلې معلوم سي ۔ نو هم دغه اول وخت د سهار د لمانځه دی ۔ او روڼه هم د دغه وخته څخه شروع کیږی ۔

## وَاٰخِرُ وَقْتِهَا مَالَمْ تَطْلُعِ الشَّمْسُ

او اخیر وخت د سهار د لمانځه تر هغه وخته پورې دی چه لمر نه وی راختلی ۔
ولی چه جبرئیل د وهمه پلا داسې وخت اداء کړی چه نهایت سپین والی وو ۔

## وَاَوَّلُ وَقْتِ الظُّهْرِ اِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ وَاٰخِرُ

او اول وخت د ماپښین هغه وخت دی چه لمر زوال وکړی او آخر وخت د

## وَقْتِهَا عِنْدَ اَبِیْ حَنِیْفَةَ اِذَا صَارَ ظِلُّ کُلِّ

ماپښین په نزد د امام اعظم هغه وخت دی چه سایه د هر شی دوه مثله تر د هغه شی وګرځی

## شَیْءٍ مِثْلَیْهِ سِوٰی فَیْءِ الزَّوَالِ

(یعنی قریب دوه چندی ته) او دا ماسوی د سائی څخه د وخت د زوال ۔
یعنی چه لمر پر سر رالاړ وی ۔ که چیری هغه شی لره په دغه وخت کی د استواء سایه وه ۔

## وَقَالَ اَبُوْیُوْسُفَ وَمُحَمَّدٌ اِذَا صَارَ ظِلُّ کُلِّ شَیْءٍ مِثْلَهٗ

او ویلی دی امام ابویوسف او امام محمد چه اخیر وخت د ماپښین هغه دی چه سایه د هر شی یو مثل ته ورسیږی

پوهنه ۱ چه د سایه اصلی چه فیء الزوال ورته وائی پیژندل ډیر ګران دی ۔ چه په ریاضی پوری تعلق لری او دا نره هندسه ته ضرورت ستاو د کال په څلورو فصلو کی لنډه او اوږده راځی ۔ او د اقلیمونو سره په پیژند وسره هم اړه لری ۔ او د دی کتاب اکثره نرده کوونکی چونکه مبتدیان دی لهذا ما ډیر تحقیق نه وکړی ۔

مسئله ۱ چونکه په نزد د یارانو پر یکچندی د ماپښین وخت ختم کیږی او د مازدیګر وخت لی وروسته داخلیږی ۔ او د امام اعظم په نزد د ماپښین وخت نه دی وتلی او مازدیګر نه دی داخل سوی ۔ لهذا احتیاط دا دی چه تر یکچندی د مخه د ماپښین لمونځ سرې وکړی او د مازدیګر لمونځ پس له دوچندی نه سرې اداء کړی

تاچه دوارو لمنځونو په اتفاق صحیح سی۔

افسوس چه بعضی امامان د ماپښین لمونځ په داسی وخت کی اداء کوی چه په اتفاق في وخت تیروی۔ او د مازدیگر لمونځ په وخت مکروه کی کوی۔ خصوصًا د متعل امامان نو د عامیانو باره هم د دوئ په ذمه دی۔ بیت سه

چو بینم دین احمد در غریبی دلم سوزان زچشمم خون جاری

وَأَوَّلُ وَقْتِ الْعَصْرِ إِذَا خَرَجَ وَقْتُ الظُّهْرِ عَلَى

او اول وخت د مازدیگر هغه وخت دی چه ووځی وخت د ماپښین د هرچا پرخپل مذهب او آخر وخت د

الْقَوْلَيْنِ وَآخِرُ وَقْتِهَا مَا لَمْ تَغْرُبِ الشَّمْسُ

هغه دی چه لمر نه وی لویدلی او حسن بن زیاد وائی چه لمر زیړ سو د مازدیگر وقت خارج سو او نه مونږ په مذهب کی دا وخت مکروه دی۔

وَأَوَّلُ وَقْتِ الْمَغْرِبِ إِذَا غَرَبَتِ الشَّمْسُ وَآخِرُ

او اول وخت د ماښام هغه وخت دی چه لمر ولویږی ۔ او آخر وخت ئی تر هغو پوری

وَقْتِهَا مَا لَمْ يَغِبِ الشَّفَقُ وَهُوَ الْبَيَاضُ الَّذِي

دی چه شفق نه وی لویدلی ۔ او شفق هغه سپین والی دی د مغرب په خوا کی چه معلومیږی په کناره

يُرَى فِي الْأُفُقِ بَعْدَ الْحُمْرَةِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رح

کی د اسمان پس له سرخی څخه په نزد د امام اعظم رح خدای دی پر ده رحم وکړی

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ رَحِمَهُمَا اللهُ هُوَ الْحُمْرَةُ

او وائی ابو یوسف او محمد رحمهما الله تم چه شفق هغه سرخی ده۔

پوه سه! چه د امام اعظم رح د مذهب روایت دئ د ابوبکر صدیق، بی بی عائشة رض معاذ بن جبل رض، عبدالله بن الزبیر رض، ابو هریره رض، او عبد الله بن رضی الله تعالی عنهم او دغه مذهب هم مختار د محمد بن یحیی المبرد وثعلب وعمر بن عبدالعزیز و المزنی وداود رحمهم الله تع ۔ او مذهب د یارانو روایت دی د علی رض وعبد الله بن عمر رض

وشداد بن اوسؓ وعبادة بن صامت رضی الله عنهم۔ او همدغه مذهب مختار دی د خلیل بن احمد والاصمعی والجوهری وبه أخذ الشافعی رحمهم الله تعالیٰ۔

فائده! د امام اعظمؒ نه روایت دی چه د ده مبارک وقول ته د یاران رجوع وکړه۔ وعلیه الفتویٰ۔ کذا ذکره بعض المتأخرین۔ وصرح به فی شرح مجمع البحرین وهکذا فی رد المختار وشروح المجمع۔ کوکب دری شرح قدوری۔

## وَاَوَّلُ وَقْتِ الْعِشَاءِ اِذَا غَابَ الشَّفَقُ عَلَی الْقَوْلَیْنِ

اول وخت د ماخستن هغه دی چه شفق پټ سی په دواړو قولو (یا بیاض په یوه مذهب یا حمرة په بل مذهب)

## وَاٰخِرُ وَقْتِهَا مَالَمْ یَطْلُعِ الْفَجْرُ الثَّانِیْ

او اخیر وخت د ماخستن تر هغو دی چه فجر الثانی یعنی صبح صادق نه وی راختلی۔

ولی چه په حدیث شریف کی راغلی دی چه اخیر د ماخستن تر هغو دی چه سپیدی نه وی راختلی۔ کذا فی الهدایه ص۸۲۔

## وَاَوَّلُ وَقْتِ الْوِتْرِ بَعْدَ الْعِشَاءِ وَاٰخِرُ وَقْتِهٖ

او اول وخت د وترو وروسته د ماخستن تر لمانځه دی او اخیر وخت د وترو

## مَالَمْ یَطْلُعِ الْفَجْرُ الثَّانِیْ

تر هغو دی چه سفیدی نه وی راختلی (یعنی نه وی راپیدا شوی) کذا فی الهدایه

یوکاسه! چه وتر په نزد د امام اعظمؒ واجب دی او په نزد د یارانو سنت دی۔ عینی۔

## وَیُسْتَحَبُّ الْاِسْفَارُ بِالْفَجْرِ

او بهتر کار دی په رڼاکی د سحار لمونځ کول۔ او ثواب دی۔

په دلیل د دې قول د علیه الصلوٰة والسلام تاسی په رڼاکی کوی د سحار لمونځ ولی چه دا لوی نکی د ثواب دی۔ په دې باره کی فقیه ابوجعفر طحاویؒ د حضرت علیؓ څخه روایت کړی دی۔ او دیلمیؒ هم د انس بن مالکؓ څخه روایت کړی دی۔ او دغه رنګه طبرانیؒ او بزارؒ د ابی هریرةؓ څخه روایت کړی او نور۔ کوکب دری ص۲۲

## وَالْإِبْرَادُ بِالظُّهْرِ فِي الصَّيْفِ وَتَقْدِيْمُهَا فِي

او ډېر ښه مستحب دي په ځونېکي کې د ماپښين لمونځ کول په ډوبی - او وختي کول د غه لمونځ په

## الشِّتَاءِ وَتَاخِيْرُ الْعَصْرِ مَالَمْ تَتَغَيَّرِ الشَّمْسُ

ژمي کې - او ډېر ښه مستحب دی ځنډول د مازدیګر د لمانځه چه لمر نا تغیر سوی نه وي ( یعنی ژړ ...

## وَتَعْجِيْلُ الْمَغْرِبِ وَتَاخِيْرُ الْعِشَاءِ إِلٰى مَاقَبْلَ ثُلُثِ اللَّيْلِ

او ډېر ښه مستحب دی وختي کول د ماښام لمونځ. او مستحب دی ځنډول د ماخستن د لمانځه تر مخه د دريمې د شپې

په دې هره مسئله کې ډېر حديثونه په صحاح الستة کې راغلي دي - چه په تفصيل

بيانول ئې پر مبتدي تکليف دی. او دا کتاب هم د مبتديانو دی او مبتديان ئې ولې

خصوصًا تر کتاب البيوع پوري.

## وَيُسْتَحَبُّ فِي الْوِتْرِ لِمَنْ يَأْلَفُ صَلٰوةَ اللَّيْلِ

او مستحب دی په وتر وکي هغه چا لره چه الفت او عادت لري د شپې د لمانځه سره ( يعنی د تهجد لمونځ )

## اَنْ يُؤَخِّرَ الْوِتْرَ إِلٰى آخِرِ اللَّيْلِ

چه ځنډوي دی وتر تر اخيره د شپې پوري

يعنی تر تهجد وروسته دی وتر ادا کوي ؛

## وَإِنْ لَمْ يَثِقْ بِالْإِنْتِبَاهِ اَوْتَرَ قَبْلَ النَّوْمِ ؛

او که باور نه وو په بيداريدو د شپې نو دی وتر کوي د مخه تر خوب - چه نه بايد قضا نه سي -

ولې په حديث شريف کې راغلي دي چه که څوک بېرېږي چه په اخير کې د شپې به بيدار

نه سو نو ورته دی په اول کې د شپې وکړي او که د چا طمع وه چه بيدار به سم په اخير

کې د شپې نو وتر دې د شپې يعنی پس له تهجده وکړي - ګويا عبارت د قدوري

تقريبًا ترجمه د حديث نبوي دی.

# بَابُ الْاَذَانِ

## باب دی په بیان کے د اذان

پوښتنه! چه ابتداء د اذان په مدینه منوره کی سوې ده. بخاری. مسلم. ابوداؤد وغیرها
کی چه اذان مشروعیت داسی وسو. چه څه وخت چه رسول اکرم صلی الله علیه وسلم مدینې
منورې ته هجرت وکړی او مسجد نبوی تعمیر سو او مسلمانانو د جماعت لمونځونه شروع
کړه. لکن مشکل داو وچه د لمونځو د وختو د پاره کوم علامه نه وه. په عادتی اواټکلی
توګه به مسلمانان لمانځه ته راتله. د دې سببه بعضی وخت پر مسلمانانو به ناوخته سو.
جماعت به تیر سوئ وو. او بعضی وخت به مسلمانان وختی راغله چه دیر بې د لمانځه وخته انتظار
کاوه. نو دا شکایت و آنحضرت صلی الله علیه وسلم ته وړاندی سو. نو آنحضرت صلی الله علیه وسلم
حسب للعمول دا موضوع مشوره ته وړاندی کړه. بعضی اصحابو دا خبره وکړه چه د لمانځه پر وخت
ناقوس یعنی زنګ وهل کیږی. په دې کی دا اشکال پیدا سوچه دا کار د نصارا او د عباد
عبادت دی. او بعضی کسانو دا رایه ورکړه چه د پاره د لمانځه دی بنګس یا توره چه په عربی بو
ولی زغول کیږی. په دې رایه کی دا اعتراض پیدا سو چه دا خو د یهودیانو د دین علامه ده
وچا وویل چه د لمانځه پر وخت به لویه لمبه داوه کوو. چونکه دا د آتش پرستانو د دین نښا
ده دا رایه هم ناخوښه سوه.

حضرت عمر رض وویل، اَلَاتَبْعَثُوْنَ رَجُلاً یُّنَادِی بِالصَّلٰوۃ، یعنی تاسی نه مقرر
وسړی چه د لمانځه د پاره نعره کوی. آنحضرت صلی الله علیه وسلم دا رایه خوښه کړه.
دیو نفر یې مقرر کړی چه د لمانځه د پاره داسی نعره کوی، اَلصَّلٰوۃُ قَائِمَۃٌ، یعنی لمونځ کیدونکی
ی. چونکه دا یوه نعره به چا اوریده او چا به نه وه اوریده. لهذا څو ورځی وروسته بیا هغه
ومړی شکایت تکرار سو. نو بیا خبره مشوری ته ولویده. او هغه پخوانی شیان بیا تکرار
ول او مجلس بې فیصلې پای ته ورسیدی.

چه ما بنام سو یو صحابی چه نوم یې عبدالله بن زید وو خوب یې ولیدی چه دیوه سړ
لاس کی ناقوس وو. نو صحابی ورته وویل چه دا ناقوس نه خرڅوې؟ هغه ورته وویل چه څه
کوې. صحابی ورته وویل چه موږ د لمانځه وخت پر معلوموو. هغه سړی وره ته وویل چه

زه به تردې بنه شی درته وښیم. نو هغه سړي پس پوره لوړ ځای ودریدی او پوره آذان وکړ ی. نو صحابی صحابه د اخوب ورسول الله صلی الله علیه وسلم ته بیان کړ. آپ صلی الله علیه وسلم ورته وویل. اِنَّهَا لَرُؤْيَا حَقٌّ اِن شاء الله. یعنی دا حق خوب دی ان شاء الله تعالیٰ. نو عبد الله رض ته امر وکړ چه د بلال رض آواز تر تا لوړ دی نو ته هغه سړي خوب کلمې وایه هغه به اذان وکړي. حضرت عمر رض کوره وو چه دا کلمات د اذان ئی واوریدل چابک مسجد ته راغلی. او ورسول الله صلی الله علیه وسلم ئی ووئیل چه قسم په خدای دی چه ما هم دغسی خوب لیدلی وو. او د شرم نه ئی نه وئیلای.

الغرض ! څو کسو صحابه کرامو رض په دغه شپه دا غه خوب لیدلی وو. دا بیان تول په بخاری شریف ابوداؤد. مشکوة شریف کی په متفرقو ځایو کی موجود دی.

پوهاسه ! چه د اذان ذکر په قرآن کریم کی هم راغلی دی. آیة. اِذَا نُوْدِیَ لِلصَّلٰوةِ الآیة دا وو د اذان مفصل صحیح بیان.

# اَلْاَذَانُ سُنَّةٌ مُؤَكَّدَةٌ لِلصَّلَوَاتِ الْخَمْسِ وَالْجُمُعَةِ دُوْنَ غَيْرِهَا

اذان سنت موکد دی دپاره د پنځو لمونځو او د جمعې د لمانځه دپاره نه د نورو دپاره یعنی لکه د اختر

# وَلَا تَرْجِيْعَ فِيْهِ

لمونځ د جنازې لمونځ) او ترجیع نشته په اذان کی. (د امام شافعی رح په نزد ترجیع په اذان کی سنت ده او ترجیع دا ده چه دا دوه کلمې د شهادتین اول واره دوه واره کراره ووائی او دوه واره ئی په زوره را ووائی

# وَيَزِيْدُ فِيْ اَذَانِ الْفَجْرِ بَعْدَ الْفَلَاحِ اَلصَّلٰوةُ خَيْرٌ

او زیاتوی دی په اذان کی د سحار پس له حی علی الفلاح الصلوة خیر من النوم. یعنی لمونځ ډیر بهتر

# مِنَ النَّوْمِ مَرَّتَيْنِ وَالْاِقَامَةُ مِثْلُ الْاَذَانِ اِلَّا اَنَّهُ

دی تر خوب. دوه واره. او اقامت په ټولو کلمو کی په مثل د اذان دی مګر دا فرق ئی دی چه په اقامت کی

# يَزِيْدُ فِيْهَا بَعْدَ الْفَلَاحِ قَدْ قَامَتِ الصَّلٰوةُ مَرَّتَيْنِ

دی زیاتوی پس له حی علی الفلاح، قد قامت الصلوة، یعنی په تحقیق برپای سو لمونځ یعنی شروع سو. دوه واره

## وَيَتَرَسَّلُ فِي الْاَذَانِ وَيَحْدُرُ فِي الْاِقَامَةِ

او درانې او ځنډ دې کوي په اذان کې او تلوار دې کوي په اقامت کې.

## وَيَسْتَقْبِلُ بِهِمَا الْقِبْلَةَ فَاِذَا بَلَغَ اِلَى الصَّلٰوةِ

او مخ دې د دېرېزي په دواړو وکي و قبلې ته پس چه ورسيږي په اذان او اقامت کې وحي على الصلوة

## وَالْفَلَاحِ يُحَوِّلُ وَجْهَهُ يَمِيْنًا وَّشِمَالًا

وحي على الفلاح ته وګرځوي مخ خپل ښي راسته طرف (په حي على الصلوة کې) او چپه طرف (په حي على الفلاح کې)

فائده! ظاهر د متن اړول د مخ دي په اذان او اقامت دواړو کې لکن تحقيق دا دی چه په اقامت کې مخ اړول ضرورت نشته ولې چه خلک ټول حاضر دي. کوکب دري ص۲۳

مسئله! اذان په ناستې مکروه دی او په بې اودسيا هم مکروه دی.

مسئله! په مابين کې د اذان او اقامت بله نعره کول په هره شان چه وي لکه پښتانه وائي "راځئ په لمونځ دریږئ، يا لمونځ کوو که خدای کول" مکروه ده. مګر د سحار لمانځه د پاره چه وخت د خوب او غفلت دی د هدايه په ملک کې وائي چه دا نعره علماء د کوفې احداث کړې ده پس له زمانې د صحابو رضه لکن پوهاړي د سحار په لمانځه کې. لکن متاخرينو دا نعره ښه بللې ده په ټولو لمونځو کې د جهته د سستۍ د خلکو په ديني کارونو کې.

فقير وائي چه دا نعره په ممالکو اسلاميه کې رواج نه لري. لکه ټوله پاکستان ټوله عربستان عراق. ټوله کويت. ټوله د هند مسلمانان. مګر د افغانستان په بعضې ښارونو ځايو کې کيږي ترمذي روايت کړې دی چه حضرت علي کرم الله وجهه وليدې يو موذن چه د ماښام په لمانځه کې دا نعره وکړه. نو علي رضه خلکو ته وويل چه دا مبتدع د دې مسجد رضه وباسئ. دغه رنګه د ابن عمر رضه هم مثل د دغه روايت موجود دی.

## يُؤَذِّنُ لِلْفَائِتَةِ وَيُقِيْمُ فَاِنْ فَاتَتْهُ صَلَوَاتٌ اُذِّنَ

اذان دې کوي د پاره د قضائي لمانځه او اقامت دې هم کوي. او که ډير لمونځونه قضا شوي وه نو اذان دې کوي.

لِلْاُوْلٰى مِنْهَا وَاَقَامَ وَكَانَ مُخَيَّرًا فِى الثَّانِيَةِ اِنْ

دپاره د اولٰى د وى او اقامت دى هم وكړى . او دده اختيار دى په دوهم لمانځه كى

شَاءَ اَذَّنَ وَاَقَامَ وَاِنْ شَاءَ اِقْتَصَرَ عَلَى الْاِقَامَةِ وَيَنْبَ

اذان و اقامت دواړه كوى او كه خوښه وى يوازى اقامت دى وكړى . او بنائى چه اذ

اَنْ يُؤَذِّنَ وَيُقِيْمَ عَلٰى طَهَارَةٍ فَاِنْ اَذَّنَ عَلٰى غَيْرِ وُضُوْءٍ جَا

دى وكړى او اقامت دى وكړى په اودس سره . پس كه اذان وكړى په بى اودسه سياسره نو روا

يعنى فضيلت نى دلاسه وركړى خلك د جوار طرف دار دى .

وَيُكْرَهُ اَنْ يُقِيْمَ عَلٰى غَيْرِ وُضُوْءٍ اَوْ يُؤَذِّنَ وَهُوَ

او مكروه دى (تحريماً) چه اقامت كوى په بى اودسه سياسره . او يا اذان كوى په داسى حال كى چ

جُنُبٌ وَلَا يُؤَذِّنُ لِلصَّلٰوةِ قَبْلَ دُخُوْلِ وَقْتِهَا

جنب وى . او اذان دى نه كوى د لمانځه دپاره د مخه تر داخليدو د وخت د لمانځه

اِلَّا فِى الْفَجْرِ عِنْدَ اَبِىْ يُوْسُفَ رحمه الله

مګر په سحار كى په نزد د امام ابو يوسف رحمه الله تعالى .

دليل ئى دادى چه اذان د خبر يدو د خلكو دپاره دى په وخت د لمانځه . او قبل الوقت د مخه وخطا استل دى .

مسئله ! كه اذان قبل الوقت وكړى چه وخت داخل سو بيرته دى راوګرځوى او امام ابو يوسف او امام الشافعىؒ وائى چه د سحار اذان تر نيمى شپى وروسته روا دى او د امام اعظمؒ دليل دادى چه آنحضرت صلعم حضرت بلالؓ ته وويل چه اذان مه كوه تر هغو چه سپيده نه وى چاودلى . عرف شذى .

اللهم اغفر لكاتبه ولمؤلفه ولوالديهما آمين

# بَابُ شُرُوطِ الصَّلٰوةِ الَّتِىْ يَتَقَدَّمُهَا

باب دی په بیان کی د هغو شرطو د لمانځه چه تر لمانځه د مخه تیریږی

پوهاسه! چه هغه شی چه لموځ بیله هغه شی صحت نه لري که په لمانځه کی داخل وي هغه ته رکن وائي او که خارج وي هغه ته شرط وائي. داخل لکه رکوع سجده وغیره. خارج لکه اودس. پاکول د جامې وغیره.

يَجِبُ عَلَى الْمُصَلِّىْ اَنْ يُّقَدِّمَ الطَّهَارَةَ مِنَ
فرض دی پر لمونځ کذاره باندی چه د مخه تر لمانځه دی وکړی پاکوالی د بې اودسیا او

الْاَحْدَاثِ وَالْاَنْجَاسِ عَلٰى مَاقَدَّمْنَاهُ وَيَسْتُرُ عَوْرَتَهٗ
نجاسته. او د مردار یو څخه. لکه موږ چه د مخه بیان کړی. او پټ دی کړی عورت خپل

مسئله! عورت دوه قسمه دی یو غلیظه. یعنی سخت لکه دُبره. فرج او ذکر. او بل خفیفه دی. یعنی سپک لکه ورونه. کناتي که د ښځی وی او که د نر یا د ښځی نس او شا.

فائده! لږ والی د عورت چه لڅ وی مانع د لمانځه نه دی. او ډیر ئې مانع دی. د امام اعظم او امام محمد په نزد چه تر څلرمی د هغه اندام کم وی هغه لږ دی. او مانع د لمانځه نه دی. او امام ابو یوسف وائي چه تر نیمی کم وی هغه لږ دی او چه نیم یا تر هغه بالا وی هغه ډیر دی.

بنو و نځی! اندام هغه دی چه په اصطلاح کی جلا نوم لري.

وَالْعَوْرَةُ مِنَ الرَّجُلِ مَاتَحْتَ السُّرَّةِ اِلَى الرُّكْبَةِ وَالرُّكْبَةُ عَوْرَةٌ
وعورت د نر لاندی تر نامه تر زنګانه پوری دی. او زنګون عورت دی.

دُوْنَ السُّرَّةِ وَبَدَنُ الْمَرْأَةِ الْحُرَّةِ كُلُّهٗ عَوْرَةٌ اِلَّا وَجْهَهَا وَكَفَّيْهَا وَقَدَمَيْهَا
نه نو نه دی عورت او بدن د ښځی اصیلی ټول عورت دی. مګر بیله مخ د دې او ورغوی د دې او پښی د دې

ولې چه ضرورت دی۔ او نوړ ده دي نه دی عورة چه په صحیح حدیث کی راغلی دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمائل چه نکنو نه عورت دی۔

**مسئله!** د بنځې پښې هم عورت نه دی۔ کوکب دری۔ هدایه ص۸۸ لکن شارح للیة او قاضی خان وائی چه پښې ئې عورت دی۔ لکن په اعتبار د حرج فتوی پر قول د هدایه ده۔

**مسئله!** که د بنځې داسې نازک پوړنی پرسر وي چه د سر ویښتان ئې معلومیږي یا نری قمیص یا پرتاک وي چه بدن معلومیږي لمونځ ئې نه دی روا۔ رد محتار۔

**شکایت!** بعضی بنځې په لمانځه کی ډیره بیباکی کوی۔ یعنی نازک پوړنی ئې پرسر وي یائې بجلکی یا تر بجلکو لوړ پنډی ئې معلومیږي یا مړوند ونه معلومیږي لمونځ ئې نه دی روا۔

**وَمَا كَانَ عَوْرَةً مِّنَ الرَّجُلِ فَهُوَ عَوْرَةٌ مِّنَ الْأَمَةِ**

او هغه ځای چه عورة وي له نره څخه هغه عورت دی د مینځې څخه هم۔

**وَبَطْنُهَا وَظَهْرُهَا عَوْرَةٌ وَمَا سِوٰى ذٰلِكَ مِنْ بَدَنِهَا**

او نس د مینځې او شا د دې هم عورت دی او ماسوی د دې څخه د بدن څخه د مینځې

**لَيْسَ بِعَوْرَةٍ وَمَنْ لَمْ يَجِدْ مَا يُزِيْلُ بِهَا النَّجَاسَةَ**

نه دی عورت۔ او که چا نه کړی پیدا هغه شی چه مردار کړی په لیری کړي (لکه اوبه سرکه وغیره)

**صَلّٰى مَعَهَا وَلَمْ يُعِدِ الصَّلٰوةَ وَمَنْ لَمْ يَجِدْ ثَوْبًا**

لمونځ دی وکړي سره د هغه نجاست او بیا دی لمونځ نه راګرځوي او که چا نه درلوده دونه جامه چه عورت

**صَلّٰى عُرْيَانًا قَاعِدًا يُّوْمِيْ بِالرُّكُوْعِ وَالسُّجُوْدِ**

په پټ کړي لمونځ دی وکړي په لڅ عورت په ناسته او اشاره دی کوي په رکوع او سجدو سره (تا چه

**فَاِنْ صَلّٰى قَائِمًا اَجْزَاهُ وَالْاَوَّلُ اَفْضَلُ**

عورت غلیظه ئې حتی الامکان پټ وي) او که لمونځ وکړي په ولاړه هغه هم کفایت کوي (ولې عورت کی لڅ سو ولاړه خوئې پرځای سوه) او اول چه په اشاره لمونځ دی افضل دی۔ (ولې چه د عورت پټول

هم حق د لمانځه دی او هم حق د خلکو او قیام یوازې حق د لمانځه دی.

## وَيَنْوِي الصَّلوٰةَ الَّتِي يَدْخُلُ فِيهَا بِنِيَّةٍ لَا يَفْصِلُ

او نیت دې کوي د هغه لمانځه چه دې پکښې داخلیږي داسې نیت چه جلا والی دې نه

## بَيْنَهَا وَبَيْنَ التَّحْرِيمَةِ بِعَمَلٍ اٰخَرَ.

کوي په مابین د نیت او الله اکبر ویلو په یو بل عمل سره (لکه خوړک، لګول، ترل وغیره ذالک)

**پوهه سه!** چه نیت قصد ته د زړه وائي نو که د چا د زړه حضور نه وي او په خوله ئې نه وائي کافي ده. لکن اولی دا دی چه د زړه د نیت سره دې د خولې لفظي نیت هم ملګری کړي.

**مسئله!** که د چا زړه په سبب د بعضې عوارضو نه پر ځای کیږي. نو هغه ته لفظي نیت هم بس دی.

**فائده!** لفظي نیت یو اوږد دی او بل لنډ. اوږد نیت ئې دا دی. قصد مې دی د زړه په اخلاص لمونځ کوم څلور رکعته فرض د دې حاضر وخت د مازدیګر مخ مې دی پر بیت الله شریف. الله اکبر.

**تنبیه!** که امام وو نیت د امامت د مقتدیانو دې هم کوي. او که مقتدي وو نیت د اقتداء په امام پسې دې هم کوي.

او لنډ نیت دا دی. لمونځ کوم فرض د دې حاضر وخت د ماپښین.

قَالَ علیه الصلوٰة والسلام "اِنَّمَا الْاَعْمَالُ بِالنِّيَّاتِ" بخاری. مسلم. یعنی ثواب د عملو په نیت پورې اړه لري.

## وَيَسْتَقْبِلُ الْقِبْلَةَ إِلَّا أَنْ يَكُونَ خَائِفًا فَيُصَلِّي

او مخ پر قبله دې دریږي. مګر هغه وخت که بیریدی د دښمن یا د درنده څخه. که هغه وو

## إِلَىٰ أَيِّ جِهَةٍ قَدَرَ فَإِنِ اشْتَبَهَتْ عَلَيْهِ الْقِبْلَةُ

بیا دې لمونځ اداء کړي وهر طرفته چه قدرت ئې وي (چه د دښمن یا د درنده بیره پکښې نه وي) او که چیرې پوشیده سوه پر لمونځ کوونکي باندې قبله (یعني درک نه وه معلومیدې چه قبله کومه خواته ده)

## وَلَيْسَ بِحَضْرَتِهٖ مَنْ يَّسْئَلُهٗ عَنْهَا اِجْتَهَدَ وَصَلّٰى

او نه وي په حضور کي ده هغه څوک چه دي پوښتنه ځني وکړي د قبلې (لکه سړی چه په صحرا کي لمونځ کوي) نو دی دي بنه فکر وکړي (يعنې د قبلې په خوا کي. نو هره خواته چه ده غالب گمان سو هغه طرفته دي) لمونځ وکړي۔

## فَاِنْ عَلِمَ اَنَّهٗ اَخْطَاَهَا بَعْدَ مَا صَلّٰى فَلَا اِعَادَةَ عَلَيْهِ

پس که پوه سو چه ده خطا وتر په قبله کي پس له دې چه لمونځ ئې وکړي۔ نو پر ده باندي راگرځيده د لمانځه نسته۔

ولې چه تکليف پر اندازه د قدرت دئ۔ او ده قدرت هم دا فکر وهل وه۔

## وَاِنْ عَلِمَ ذٰلِكَ وَهُوَ فِي الصَّلٰوةِ اِسْتَدَارَ

او که چيري يقين سو پر خطا باندي او دی په لمانځه کي وو۔ ودي گرځي وطرفته

## اِلَى الْقِبْلَةِ وَبَنٰى عَلَيْهَا

د قبلې په هغه لمانځه کي او نور لمونځ دي پر بنا کړي (يعنې هغه پاته لمونځ دي پوره کړي)

مسئله! که د سړي گمان و يوه طرفته غالب نه وو بلکه ټوله طرفونه ورته برابر وه۔ نو څوک وائي چه لمونځ دي وځنډوي تر هغو چه د قبلې درک يا په يقين يا په غالب گمان ور معلوم سي۔ او څوک وائي چه وڅلوره سره طرفونه دي لمونځ وکړي۔ وَاللّٰهُ اعلم بالصواب۔

---

مسئله! که يو چا چه قبله ځني ورکه وه بيله اجتهاد او فکر ئې لمونځ يوه خواته وگذاره نو دی هغه لمونځ بيرته راوگرځوي يعنې فکر او اجتهاد دي وکړي او بيا دي لمونځ وکړي۔ مگر که چيري پس له فراغه د لمانځه پوه سو چه ما قبله ته لمونځ وکړي نو بيا اعاده پر ده نسته ولې چه اشتباه رفع سوه۔ فتح القدير۔

# باب صفة الصلوة

باب دی په بيان کښې د حال د لمانځه.

يعنې تفصيلي بيان د لمانځه او داخل شيان د لمانځه. ددې باب نه دا کړه ډېر مُسمرته دی ځکه چې عين مقصود دی.

## فَرَائِضُ الصَّلٰوةِ سِتَّةٌ

هغه اعمال چې په لمانځه کې فرض دي شپږ دي.

فائده! فرض د لمانځه هغه شی دی چې په پرېښودلو ئې لمونځ فاسديږي. کې په قصد پرېښي دی او که په سهوه سره. او واجب هغه عمل د لمانځه دی کې په سهوه پرېښي دی سجدة سهوه پرلازمه ده. او کې په قصد پرېښي دی لمونځ ئې ناقص سو. اګر څه ئې واجب دی. او سنت په لمانځه کې هغه عمل دی کې په قصد پرېښي دی ګناه ده په سجدة سهوه ئې چاره نه کيږي. بلکه د لمانځه اګر څه ئې سنت دی. او مستحب يا مندوب هغه عمل دی چې کول ئې ثواب دی. او په پاته کيدو کې شی نشته.

## اَلتَّحْرِيْمَةُ وَالْقِيَامُ وَالْقِرَاءَةُ وَالرُّكُوْعُ وَالسُّجُوْدُ

اول الله اکبر ويل دی. قال الله تعالیٰ "وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ" او بل ولاړه ده سره د قدرت. لقوله تعالیٰ "وَقُوْمُوْا لِلّٰهِ قَانِتِيْنَ" او بل قراءة دی پر قدر درو اياتو. لقوله تعالیٰ "فَاقْرَءُوْا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ" او بل رکوع او سجده ده. لقوله تعالیٰ "وَارْكَعُوْا وَاسْجُدُوْا"

پوره مسئله! چې رکوع کښې يدو ته وائي دولاړه ي ټيټ او سجده تندی او پوزه پر ځمکه ايښوول دی.

## وَالْقَعْدَةُ الْاَخِيْرَةُ مِقْدَارُ التَّشَهُّدِ

او اخيره ناسته ده په اندازه د التحيات. يعنې نفس ناسته فرض ده که التحيات و وائي او که نه.

په صحيح حديث کې راغلی دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم عبد الله بن مسعودؓ ته لاس ونيوی او بيائې التحيات ور وښوول او ورته وې ويل "اِذَا قُلْتَ هٰذَا اَوْ فَعَلْتَ هٰذَا"

فقد تمت صلوتك. یعنی که ته دغه التحیات و وائی او یا دغه فعل وکړې نو ستا لمونځ پوره
سو. نو معلومه سوه چه بیله پوره ددغو دوو لمونځ نه دی پوره.

## والخروج عن الصلوٰۃ بفعل المصلی فرض عند ابی حنیفۃ

او وتل د لمانځه څخه په یو فعل د لمونځ کوونکی سره فرض دی په نزد د امام اعظم رح

## وعندهما لیس بفرض وما زاد علی ذالک فهو سنۃ

او په نزد د یارانو فرض نه دی. او هغه عمل چه زیات دغو ذکر سوو بالاوی هغه عمل سنت دی.

سوال! مصنف ماسوا دهغه شپږو عملو څخه نور ټول سنت و بلل. او سره ددې چه
دین واجب یکښی ستته. (۱) قراءۃ الفاتحۃ. ویل د الحمد لله. (۲) ضم السورۃ.
د الحمد لله سره یو بل سورۃ دقرآن شریف جوتول (۳) مراعات الترتیب. یعنی د ترتیب
ساتنه. (۴) القعدۃ الاولی. اول ناسته. (۵) وقراءۃ التشهد فی الاخیرۃ. او ویل
د التحیات په اخیره ناسته کی. (۶) والقنوت فی الوتر. او دعاء قنوت په وتر وکی.
(۷) وتکبیرات العیدین. او تکبیرونه داختر و په لمانځه کی (۸) والجهر فیما یجهر به
او په شوره ویل د قراءۃ امام لره په جهری لمونځوکی. (۹) والمخافۃ فیما یخافت فیه. او
کراره ویل د قراءۃ امام او یو انزی سری ته په خفیه لمونځوکی.

جواب! هدایه او جوهره او کوکب دری وائی چه مصنف چه دا ټول سنت و بللو لی
چه ثبوت ئی د ټولو په سنت یعنی په حدیث نبوی سوی دی. پر دې پټ سوال سته فکر وکړه.

## واذا دخل الرجل فی صلوتہ کبر ورفع یدیہ مع التکبیر

او څه وخت چه اراده وکړی یو سړی چه داخل سی په لمانځه کی نو الله اکبر دی ووائی او لاسونه دی پورته کړی سره د تکبیره.

فائده! که څه هم په کتاب کی نزد کر سوی دی خو د نبی په نفس تکبیر کی دغه حکم دی.

مسئله! دلاس پورته کول سره د تکبیره رایه د فقیه ابو جعفر طحاوی ده. لکن صحیح
داده چه لاسونه دی دغه تر تکبیر پوره ته کوی.

مسئله! بعضی خلک د نیت کولو سره لاس غوږ و ته وړوړی او بیا د لفظی نیت د
کولو په وخت کی لاسونه په غوږ و پوری ینولی وی. خو دا کار دسنت څخه خلاف دی. بلکه
لفظی نیت دی دغه تر لاس پورته کیده وکړی او بیا دی لاسونه پورته کړی او تکبیر دی ووائی. کوکب ۲۵

## حَتّٰی یُحَاذِیَ بِاِبْهَامَیْهِ شَحْمَتَیْ اُذُنَیْهِ

ترهغو چه برابر دی کړی د بتوکو نو سرونه د نرمیو سره د غوږو۔

فائده! حدیث شریف د دې قسمه راغلی دی۔ په روایت د بخاری۔ مسلم۔ ترمذی وغیره یو حدیث داسی راغلی دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم لاسونه تر اوږو پورې پورته کول۔ او بل حدیث په دې دول دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم لاسونه تر نرمیو د غوږو پورته کول۔ او بل حدیث داسی دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم به لاسونه تر سره پورې پورته کول۔ نو د دې درو حدیثو جمع فقهاؤ او علماؤ د حدیثو داسی کړې ده۔ چه په وخت کی د تکبیر دی د لاسو ورغوی د اوږو سره او بتې کوټې د غوږو د نرمۍ سره او د نورو ګوتو سرونه د سر سره برابری کړی۔

مسئله! په لاس پورته کیدو کی شرط برابر والی دی۔ ګوتی مسه کول د غوږو سره شرط نه دی۔

پوښتنه! د لمانځه شروع په فرضو کیږی او که په سنتو؟

جواب! په دواړو کیږی ولی چه اول تکبیر فرض دی او لاس پورته کول سنت دی او دا دواړه یو ځای دی۔ هدغه سوال امتحاناً امام اعظم رح پر امام محمد کړی وو۔

## فَاِنْ قَالَ بَدَلًا مِّنَ التَّكْبِيرِ اَللّٰهُ اَجَلُّ اَوْ اَللّٰهُ اَعْظَمُ

او که وویل پر ځای د الله اکبر۔ الله اجل او یا الله اعظم

## اَوِ الرَّحْمٰنُ اَكْبَرُ اَجْزَاهُ عِنْدَ اَبِیْ حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ

او یا الرحمٰن اکبر روا دی په نزد د امام اعظم رح او د غه رنګه په نزد د امام محمد رح

## وَقَالَ اَبُوْيُوْسُفَ لَا يَجُوْزُ اِلَّا اَنْ يَّقُوْلَ اَللّٰهُ

او امام ابویوسف رح وائی چه نه دی روا په اول تکبیر کی مګر دا چه ووائی الله

## اَكْبَرُ اَوْ اَللّٰهُ الْاَكْبَرُ اَوْ اَللّٰهُ الْكَبِيْرُ

اکبر او الله الاکبر او الله الکبیر

لقوله علیه السلام، تحریمها التکبیر، یعنی احرام ترل د لمانځه تکبیر دی۔ نو معلومه

سورۍ چه د تکبیر حروف غواړي.

او د امام صاحب دلیل دا دی، وَذَكَرَ اسْمَ رَبِّهِ فَصَلَّىٰ، او ذکر کړي نوم د خدای او بیا لمونځ وکړي

نو د دې آیت څخه دا معلومیږي چه نفس ذکر د نامه د خدای پاک ضرور دی.

**سوال!** نو باید په اللّٰه رحیمٌ او اللّٰه غفورٌ وغیره هم ما سره هم شروع روا وي.

**جواب!** ما سوی د اَللّٰه او د اَلرَّحْمٰن څخه د هغه نورو اسماؤ اطلاق پر بل چا هم کیدای

سي نو له دې سببه مشترک الفاظ دي شروع د لمانځه نه ده په روا. ولې په لمانځه کې ذکر

مخصوص په خدای پاک پوري غواړي.

## وَيَعْتَمِدُ بِيَدِهِ الْيُمْنٰى عَلَى الْيُسْرٰى وَيَضَعُهُمَا تَحْتَ السُّرَّةِ

او بیا دې تکیه وکړي (کښېږدي دې بند دی) راسته لاس پر چپه لاس او بیا دې دواړه کښېږدي تر نو لاندې.

**کیفیت!** د راسته لاس ورغوي دې د چپه لاس پر شا کښېږدي. او بته کوته او

کوچنۍ کوته دې پر چپه لاس را او ړوي. او نوري درې کوتې دې پر چپه باڼو کښېږدي

او دا هم زموږ مذهب دی. او امام مالک وائي چه لاسونه دې د ځانه سره ایله کړي.

او امام شافعيؒ وائي چه لاسونه دې پر ځگر ونیسي. زموږ دلیل دا حدیث مبارک دی

چه رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلم وائي، اِنَّ مِنَ السُّنَّةِ وضع اليمين عَلَى الشِّمَال تَحْتَ

السرة، په تحقیق سره د سنت څخه دی ایښودل د راسته لاس پر چپه باندې لاندې تر نامه.

**د عوامو غلطیانی!** بعضې عوام چه اللّٰه اکبر و وائي بیا نو لاسونه د ځانه سره ایله کړي

وروسته ئې پر نامه ونیسي. او دا سې نه ده. بلکه اللّٰه اکبر دې و وائي او دستي دې لاسونه

پر نامه ونیسي او سبحانك اللّٰهم دې شروع کړي.

**مسخره!** بعضې خلک پر طالب باندې سوال وکړي چه کوم دې هغه لمونځ چه

لاس پر نامه پکښې نه نیول کیږي؟ طالب جان حیران سي کوښه کوښه فکرو هي. باید چه

ورته و وائي چه تول لمونځونه د عنبي دي چه لاس پر نامه نه ایښودل کیږي. بلکه تر نامه

لاندې ایښودل کیږي. حاصل دا چه هر هغه ولاړه چه په هغې کې ذکر مسنون وي په

هغه کې دې لاسونه تر نامه لاندې نیسي لکه سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ په وخت کې د دعاء

قنوت په وخت کې. او چه ذکر مسنون نه وي په هغه کې لاسونه ایله نیول کیږي. لکه ما بین

د سجدې او رکوع او ما بین د تکبیر و د اختر و. کوکب دري ص۱۲۶.

**ثُمَّ يَقُوْلُ سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ وَتَبَارَكَ**

بیا دی ووائی۔ پاکی دہ د تولو عیبو څخه تالره ای خدایه او ستا د حمد سره او لوړ دی ستا

**اسْمُكَ وَتَعَالٰى جَدُّكَ وَلَا اِلٰهَ غَيْرُكَ۔ وَيَسْتَعِيْذُ**

نوم او بلند ولوړ دی ستا قدرت او نشته حقدار د عبادت بې تا۔ او پناه دی وغواړی

**بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ۔ وَيَقْرَأُ**

په پاک خدای سره د شیطان څخه چه راندہ او ترہ تلی دی د خدای دلویہ رحمتہ څخه (یعنی اعوذ باللہ دی تر

**بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ۔ وَيُسِرُّ بِهِمَا**

پایه ووائی) او بسم اللہ الرحمن الرحیم دی ووائی۔ چه ترجمه ئی په سرکی د کتاب تیرہ سوه۔ او کرار دی وائی اعوذ باللہ او بسم اللہ۔ که امام وی او که مقتدی۔ په حدیث شریف کی د غسی راغلی دی۔ کوکب۔

مسئله ! د امام اعظم څخه روایت دی چه بسم اللہ دی په اول کی د هر رکعت نه وائی لکه اعوذ باللہ چه نه وائی بلکه صرف په اول رکعت کی دې وائی۔ او بل روایت د امام اعظم څخه دا دئ چه بسم اللہ دی په هر رکعت کی وائی د احتیاط د لارې ولی چه امام شافعیؒ بسم اللہ جزء د الحمد للہ بولی۔ هدایه ص۹۷ وعلیه الفتوی۔

**ثُمَّ يَقْرَأُ الْفَاتِحَةَ الْكِتَابِ وَسُوْرَةً مَّعَهَا اَوْ**

او وروسته دی ووائی الحمد للہ شریفه او یو سورة سره د الحمد للہ او یا درې ایاته

**ثَلٰثَ اٰيَاتٍ قِصَارٍ اَوْ اٰيَةً طَوِيْلَةً مِّنْ اَيِّ سُوْرَةٍ شَاءَ**

لنډی او یا یو ایة اوږد د هرې سورت څخه چه د ده خوښه وی۔

مسئله ! ویل د الحمد للہ او ضم د سورت د واړه واجب دی۔ هدایه ص۹۷ او امام شافعیؒ الحمد للہ فرض بولی۔ او امام مالکؒ د واړه فرض بولی۔ زموږ دلیل دا دئ چه قرآن مبارک نفس قرائت فرض کړلی دئ۔ قال اللہ تعالیٰ فَاقْرَءُوْا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْاٰنِ، تاسی وایاست هغه شی چه تاسی ته آسان وی د قرآن څخه۔

او الحمد لله او ضم د سورة په احادیثو مبارکو سره ثابت دی نو نفس قرائت فرض دی او الحمد لله او ضم د سورة واجب دی، فرقًا بین ما ثبت بالقرآن وما ثبت بالحدیث یعنی د پاره د فرق په ما بین کی د هغه شی چه په قرآن ثابت وی او د هغه چه په حدیث ثابت وی

وَإِذَا قَالَ الْإِمَامُ وَلَا الضَّالِّيْنَ قَالَ آمِيْنَ وَيَقُوْلُهَا الْمُؤْتَمُّ وَيُخْفُوْنَهَا

او بیا چه و وائی امام ولا الضالین امام به و وائی آمین او و وائی دی دا کلمه مقتدی او دواړه دی پټ وائی

په حدیث کی د ابن مسعود رض راغلی دی چه څلور شیان دی امام کراره وائی. یو د هغو څخه آمین دی. کوکب دری ص ۲۲

مسئله! په جهری لمانځه کی دی مقتدی آمین وائی. ولی چه حنفیه لمانځه کی مقتدی ته د رکن معلومیږی او امام یا منفرد سره دی په ټوله لمانځه کی امین په اخیر کی د الحمد لله وائی.

ثُمَّ يُكَبِّرُ وَيَرْكَعُ وَيَعْتَمِدُ بِيَدَيْهِ عَلَى رُكْبَتَيْهِ وَيُفَرِّجُ

بیا دی الله اکبر و وائی او بیا دی رکوع وکړی او تکیه دی کړی د واړه لاسونه پر دواړو زنګنو او خلاص

بَيْنَ أَصَابِعِهِ وَيَبْسُطُ ظَهْرَهُ وَلَا يَرْفَعُ رَأْسَهُ وَلَا يُنَكِّسُهُ

دی کړی ما بین د ګوتو. او وی غوړوی ملا او پورته دی نه نسی سر تر ملا او نه دی سر کښته کوی تر ملا.

احادیث! كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُكَبِّرُ عِنْدَ كُلِّ خَفْضٍ وَرَفْعٍ

یعنی نبی علیه السلام الله اکبر و ایه په وخت کی د هر کښته کیدو او پورته کیدو کی.

او انس رض وائی هغه وخت چه رکوع کوی لاسونه په زنګنو اینږدی او ګوتی خلاصی لری.

حدیث! چه رسول الله صلی الله علیه وسلم به رکوع کوله نو ملا به یی وغوړوله. بخاری. هدایه کوکب

وَيَقُوْلُ فِيْ رُكُوْعِهِ سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيْمِ ثَلَاثًا

او و وائی دی په رکوع کی پاکی ده خدای لره چه لوی دی. دری واره.

وَذٰلِكَ أَدْنَاهُ ثُمَّ يَرْفَعُ رَأْسَهُ وَيَقُوْلُ

او دا کمه مرتبه د تسبیح ده. او بیا دی راپورته کړی سر خپل د رکوع څخه. او وی دی وائی امام

## سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ وَيَقُوْلُ الْمُؤْتَمُّ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ

اوری خدای حمد د هغه چاچه حمد د خدای ووائی. او ودی وائی مقتدی یا خدایه تالره دی حمد.

مسئله! "ربنالك الحمد" "وربنالك الحمد" "اللّٰهم ربنالك الحمد" د ټولو روایتونه راغلی دی. افضل فی اخیر دی. فقیر.

مسئله! دا ټول تکبیرونه دانتقالاتو تکبیرونه بولی نو په وخت دانتقال دیوې رکن وبل رکن ته دی وائی او دا رکن دې سید و په وخت کې ختموی. او د غه رنګه به سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ په ولاړې پوره کوی او د ولاړې څخه به تکبیر شروع کوی.

## فَاِذَا اسْتَوٰى قَائِمًا كَبَّرَ وَسَجَدَ وَاعْتَمَدَ بِيَدَيْهِ عَلَى الْاَرْضِ

کله چه برابر سی په ولاړه کی الله اکبر دی ووائی او سجده دی وکړی او تکیه دی کی دواړه لاسونه پر مځکه باندې

## وَوَضَعَ وَجْهَهٗ بَيْنَ كَفَّيْهِ حِذَاءَ اُذُنَيْهِ وَسَجَدَ عَلٰى اَنْفِهٖ وَجَبْهَتِهٖ

او کیښیږدی دی مخ خپل په مابین کی ددو ورغوو په برابری دغوږو او سجده دی وکړی پر پزه و تندی

فائده! ولاړه د رکوع څخه سم دم او دغه رنګه سم ناسته په مابین کی دو سجدو او آرام کول په رکوع او په سجده کی فرض نه دی بلکه سنت مؤکد دی په نزد د امام اعظمؒ او امام محمدؒ. او امام ابی یوسفؒ وائی چه دا ټول فرض دی. او همدغه مذهب د حضرت محمد بن ادریس الشافعیؒ دی. دوی دلیل دا دی چه په بخاری. مسلم ترمذی و غیره کی راغلی دی چه یو نفر راغلی و مسجد ته ننوتی ته چه آنحضرت صلی الله علیه وسلم هلته تشریف درلودی. او دغه نفر لمونځ سپک وکړی یعنی رکوع او سجده قومه او جلسه بین السجدتین فی سم نه وکړه. نو رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته و ویل "صَلِّ فَاِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ" لمونځ بیا وکړه چه تا لمونځ نه دی کړی. حتی چه درې واره فی لمونځ په راوګرځاوه. او ځلورم وار فی په تفصیل ور وښودی.

او د امام اعظمؒ دلیل آخر د دغه حدیث دی چه آنحضرت صلی الله علیه وسلم وهغه سړی ته و ویل "وَمَا نَقَصْتَ مِنْ هٰذَا شَيْئًا فَقَدْ نَقَصْتَ مِنْ صَلٰوتِكَ" یعنی که ته نقصان وکړی د دغه څخه یوشی پس تا لمونځ کم کړی. نو معلومه سوه چه اصل لمونځ باقی دی سره د نقصانه. او سنت پریښودل لمونځ ناقصوی.

نه په سجده کی آرام کوي او نه په رکوع کی او نه د رکوع څخه سم درېږي او نه په مابین کی د سجدو کښېني نو دوی لمونځونه پر یوه مذهب صحیح دی او پر بل مذهب فاسد دی.

مسئله! په سجده کی دی کوټه سره تولوی او وقبله ته دې مخامخ کوي.

غلطي! ډېر عوام بلکه بعضی اماما ن په وخت کی د سجدی لاسونه د زنګنو سره این دی یا ئی څوېږاندی. حاصل دا چه څه په مابین کی د دوه غوږو نه این دی. د اخلاف د سنت څخه دی. په حدیث مبارک کی راغلی دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د سجدی په حال کی مخ مبارک په مابین د دوه غوږو کی ایښوو ئ. او عقل هم د غه وائی ولی چه په اول کی د رکعت یعنی د تحریمې په وخت کی څه په مابین کی د دوه غوږو ېنول کیدی. نو په اخیر کی د رکعت یعنی د سجدې په وخت کی هم باید څه په مابین کی د دوه غوږو وي. نهایه شرح هدایه

فائده! بعضی خلک د سجدې په وخت کی کلکی پر ځمکه این دی او تندی او پزه د وا ړه ئ د ځمکی څخه پورته وی د الموئخ په اتفاق فاسد دئ. په حدیث شریف کی چه روایت ئی عبدالجبار د خپل پلار وائل څخه کوی دا سی راغلی دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم پزه مبارکه پر ځمکه اېښوول سره د تندی. او په حدیث شریف کی د ابی حمیدؓ راغلی دی په باب کی د سجدې د آنحضرت صلی الله علیه وسلم ، ثُمَّ سجدَ فامکنَ انفهُ وجبهتهُ من الارض ، کوکب دری ص۲۵

فَإِنْ اِقْتَصَرَ عَلٰی أَحَدِهِمَا جَازَ عِنْدَ أَبِی حَنِیْفَةَ

او که بس والی وکړی پر یوه د پزی یا تندی روا دئ لمونځ ئی په نزد د امام اعظمؒ

وَقَالَا لَا یَجُوْزُ الْاِقْتِصَارُ عَلَی الْاَنْفِ اِلَّا مِنْ عُذْرٍ

او ویل دوانو چه روا دئ کو تاهی پر پزه مګر نه د عذره مثلا تندی ئی ټپی وی یا دانه پر باندی وی

فَإِنْ سَجَدَ عَلٰی کَوْرِ عِمَامَتِهٖ أَوْ عَلٰی فَاضِلِ ثَوْبِهٖ جَازَ

او که سجده وکړه پر ول د لنګوټې یا پر پالتو ځائ د جامې (لکه پر طرف د قمیص یا پر شمله) لمونځ ئی روا دئ

مسئله! پر ول هلته سجده روا ده چه ول پر تندی وی او که ول پر کلکی وو بیا ئی سجده نه ده روا. کما مر. دلیل د جواز هغه دئ چه رسول الله صلی الله علیه وسلم سجده کول

پر ولاړ د نکوتی - هدایه ص۸۱ رواه في الحلية - فتح -

او په بل حدیث کې راغلي دي چه آنحضرت صلعم لمونځ کاوه په یوه جامه کې - او ځنې ساتي ده خپې جامې په نیا توب د ګرمۍ څخه د ځمکې او د یخ څخه - هدایه ص۸۱ کوکب دري ص۲۷ کذا قال الشرنبلاني

## وَيُبْدِىْ ضَبْعَيْهِ

او ښکاره کوي دې بازو ګان خپل "لقوله علیه السلام وَابْدُ ضَبْعَيْكَ"

مسئله! بعضې خلک وايي چه لاسونه ئې په ځان پورې جوت نيولي وي دا خلاف سنت دي

## وَيُجَافِىْ بَطْنَهٗ عَنْ فَخِذَيْهِ وَيُوَجِّهُ اَصَابِعَ

او کو بنه کوي دې ښه خپل د ورنو څخه - او مخامخ کوي دې ګوتې د دواړو پښو و طرف

## رِجْلَيْهِ نَحْوَ الْقِبْلَةِ وَيَقُوْلُ فِىْ سُجُوْدِهٖ سُبْحَانَ رَبِّىَ

ته د قبلې او ولې چه علیه السلام دغسې کړي او وائي دې په سجده خپله کې سبحان ربي الاعلی

## الْاَعْلٰى ثَلَاثًا وَذٰلِكَ اَدْنَاهُ

دري واره او دا ئي کمه مرتبه ده یعنې کمه مرتبه د کمال ده - ولې چه کمه مرتبه یو واړه دي - کوکب ص۲۷

## ثُمَّ يَرْفَعُ رَأْسَهٗ وَيُكَبِّرُ فَاِذَا اطْمَاَنَّ جَالِسًا كَبَّرَ وَسَجَدَ

او بیا دې سر د سجدې څخه راپورته کړي او الله اکبر دې و وائي - او چه بنه آرام سي په ناسته کې بیا دې الله اکبر و وائي او دوهمه سجده دې وکړي -

## فَاِذَا اطْمَاَنَّ سَاجِدًا كَبَّرَ وَاسْتَوٰى قَائِمًا عَلٰى صُدُوْرِ قَدَمَيْهِ

او بیا چه آرام سي په سجده کې الله اکبر دې و وائي او ولاړ دې سي پر څنګو د پښو -

ولې چه روایت د ابو هریرة رضـ راغلي دي چه علیه السلام ولاړ یدئ پر صدور د قدمینو - هدایه

مسئله! امام شافعیؒ وائي چه یو واړ دې کښیني او بیا دې ولاړ یږي - و دې ته دې جلسة الاستراحة وائي - ولې په صحیح حدیث کې په روایت د بخاري دا سې راغلي دي چه آنحضرت صلی الله علیه وسلم به کښینستی او بیا به ولاړ یدئ -

نهوړ جواب دا دی چه دا هغه وخت وو چه د آنحضرت صلی الله علیه و سلم بدن دروند او ضعیف سو۔ کذا فی رد المحتار و فتح القدیر۔

## وَلَا يَقْعُدُ وَلَا يَعْتَمِدُ بِيَدَيْهِ عَلَى الْأَرْضِ

او نه دی کښینی او نه دی تکیه کوی لاسونه خپل پر مځکه باندی۔

مسئله! دا تول په هغه وخت کی چه عذر او ضعف نه وی۔

## وَيَفْعَلُ فِي الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ مِثْلَ مَا فَعَلَ فِي

او کوی دی په دوهم رکعت مثل د هغه چه ده کړی وه په اول

## الرَّكْعَةِ الْأُولَى إِلَّا أَنَّهُ لَا يَسْتَفْتِحُ وَلَا يَتَعَوَّذُ

رکعت کی مګر دا چه دی به سبحانک اللهم نه وائی او اعوذ بالله به نه وائی

## وَلَا يَرْفَعُ يَدَيْهِ إِلَّا فِي التَّكْبِيرَةِ الْأُولَى

او لاسونه به غوږو ته نه پورته کوی مګر په اول تکبیر کی۔

مسئله! شافعیان مالکیان او حنبلیان د هر تکبیر سره لاس غوږو ته وړی تکه په اول تکبیر کی۔

سوال! په حدیث صحیح کی راغلی دی چه علیه السلام لاسونه پورته کول د هر تکبیر سره۔

جواب! دا په اول کی د اسلام وه او بیا منسوخ سوه۔ کذا نقل عن ابن الزبیر رض۔ هدایه ص۱۱۰ کوکب ص۲۷

## فَإِذَا رَفَعَ الرَّأْسَ مِنَ السَّجْدَةِ الثَّانِيَةِ فِي الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ

او چه راپورته کړی سر د دوهمی سجدې څخه د دوهم رکعت

## اِفْتَرَشَ رِجْلَهُ الْيُسْرَى فَجَلَسَ عَلَيْهَا وَنَصَبَ الْيُمْنَى نَصْبًا

نو پلن دی باسی چپه پښه او پر کښینی دی پر دې پښه او جګه دی ودروی راسته پښه په دروالو سره

## وَوَجَّهَ أَصَابِعَهُ نَحْوَ الْقِبْلَةِ

او مخامخ دی کړی ګوتې د پښو طرفته د قبلې۔

دغسی روایت کړی دی بی بی عائشې د آنحضرت صلی الله علیه وسلم دلمانځه. هدایه - کوکب.

وَوَضَعَ يَدَيْهِ عَلٰى فَخِذَيْهِ وَيَبْسُطُ أَصَابِعَهُ

او ایږدی دې دواړه لاسونه پر ورنونو باندی او ودی غوړوی ګوتی خپلی او بیا دی نو

ثُمَّ يَتَشَهَّدُ وَالتَّشَهُّدُ أَنْ يَقُوْلَ التَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ وَالصَّلَوَاتُ

التحیات ووائی او تشهد دا دی چه ودی وائی عبادات دخولې خدای پاک لره دی او عبادات دبدن

وَالطَّيِّبَاتُ اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ اَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ

لکه لمونځ روژه خدای لره دی - او عبادات دمال لکه زکوة خیرات - سلام دی وی پرتا ای نبی او رحمت او برکتونه

وَبَرَكَاتُهُ اَلسَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلٰى عِبَادِ اللّٰهِ الصَّالِحِيْنَ

دخدای دی وی - او سلامتیا دخدای دی وی پر موږ باندی او سلامتیا دی وی پر بندګانو د خدای چه صالح

اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ

وی - زه شاهدی وایم په دې سره چه نشته حقدار د عبادت بې له الله - او زه شاهدیم

په دې سره چه محمد بنده دخدای ج دی او رسول دخدای دی.

فائده! دا تشهد په روایت دعبدالله بن مسعود رض ثابت دی او دغه تشهد ویل د ابوحنیفه رح مذهب دی - او عبدالله بن عباس رض په بل رقم تشهد روایت کړی دی - او دغه رنګ ابو موسی اشعری رض په نورو الفاظو روایت کړی دی.

مسئله! هریوه تشهد روا دی په اتفاق صرف خلاف په اولویت کی دی.

مسئله! وهابیان وائی که چا یا رسول الله وویل هغه مشرک دی - ولی چه ندا غائب ته ده او ستاد اعقیده ده چه رسول الله صلی الله علیه وسلم دا نغره اوری او دا عقیده کفر دی - نو زه ودوی ته وایم چه تاسی په هر لمانځه کی التحیات نه وایاست؟ او په هغه کی السَّلَامُ عَلَيْكَ نه وا ست؟ دا خو خطاب وغائب ته دی - او بیا نه وایاست ایها النبی په عربی ژبه دا نغره ده - نو خو تاسی هم خطاب ونغره وغائب ته کوئ - نو دا نغره که شرک وائی نو په لمانځه کی د شرک الفاظ ځرنګه استعمالیږی؟

سوال! کہ دوی وائی چہ دا خو پہ حدیثو کی راغلی دی۔

جواب! پہ حدیثو کی کہ دا الفاظ د شرک وائی ولی راتلہ۔

سوال! یا رسول اللہ خونہ دی راغلی۔

جواب! چہ و غائب تہ نغرہ ورواسی نو بیا د ایها النبی او یا رسول اللہ څہ فرق دی
د واړہ نداء او نغرہ و غائب تہ د دوی پر عقیدہ۔

## وَلَا يَزِيدُ عَلٰى هٰذَا فِي الْقَعْدَةِ الْأُوْلٰى

او نہ یا توب دی نہ کوی تر دعی التحیات پہ اولہ ناستہ کی (یعنی اللّٰھم صلِّ یا اللّٰھم ربّنا ... نہ وائی)

مسئلہ! دا پہ فرضی لمانځہ یا پہ سنتو کی دی۔ او پہ څلورو رکعتیز نفلی لمانځہ کی دی اللّٰھم صلِّ تر پایہ وائی۔ او پہ اللّٰھم ربنا کی اختیار لری۔

مسئلہ! کہ تر دعی التحیات نی پہ فرضی لمانځہ کی صرف دومرہ قدر بالاکړ چہ اللّٰھم صلی علیٰ محمّد، سجدہ سھوہ پرلازمہ دہ۔

## وَيَقْرَأُ فِي الرَّكْعَتَيْنِ الْأُخْرَيَيْنِ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ خَاصَّةً

او وائی دی پہ دوو اخیرو رکعتو کی الحمد للہ شریفہ خاص (یعنی سورت دی نہ ورسرہ وائی)

پوہ سہ! چہ الحمد للہ شریف ویل پہ دوو اخیرو رکعتو کی افضل کار دی کہ پہ قدر د الحمد للہ شریف پتہ خولہ ودریږی لمونځ نی روا دی۔ کوکب دری ص۲۸۔

مسئلہ! کہ څوک پہ اخیرو رکعتو کی د الحمد للہ شریفی سرہ سورت هم ووائی سجدہ سھوہ نہ پرلازمیږی۔ ردالمحتار

## فَإِذَا جَلَسَ فِي أٰخِرِ الصَّلٰوةِ يَجْلِسُ كَمَا جَلَسَ فِي الْأُوْلٰى

پس چہ کښیني پہ اخیر کی د لمانځہ کښیني دی لکہ پہ اول کی د لمانځہ (یعنی د میانځ پہ ناستہ کی)

## وَتَشَهَّدَ وَصَلّٰى عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

نو التحیات دی ووائی او درود دی ووائی پر نبی صلی اللہ علیہ وسلم (اللھم صل علی محمد تر پایہ)

## وَدَعَا بِمَا يُشْبِهُ أَلْفَاظَ الْقُرْاٰنِ وَالْأَدْعِيَةِ الْمَأْثُوْرَةِ

او بیا دی دعا وکړی پہ داسی الفاظو چہ ورتہ وی الفاظو تہ د قرآن او پہ هغہ دعا نو سرہ چہ

د آنحضرت صلی الله علیه وسلم او د اصحابو نه نقل سوي دي.

## وَلَا يَدْعُوْ بِمَا يُشْبِهُ كَلَامَ النَّاسِ

او دعا دي نه کوي په هغو الفاظو چه مشابه وي د خبرو سره د خلکو

مسئله! خصوص اللهم ربنا فرض یا واجب نه ده بلکه مستحب ده ولي چه جامع دعا ده.

مسئله! التحیات ویل زموږ په مذهب کي په دي ناسته کي واجب ده او ناسته فرض ده. او درود ویل سنت دي او امام شافعيؒ ئې فرض بولي.

مسئله! درود ویل په نبي علیه السلام د باندي تر لمانځه په عمر کي فرض دي په سبب د امر قرآني. او هر وخت چه نوم د رسول الله صلی الله علیه وسلم ذکر سي امام کرخيؒ او شمس الائمة سرخسيؒ ئې مستحب بولي. او فقیه ابو جعفر طحاويؒ ئې هر ځلا واجب بولي. وعلیه الفتوی. در مختار.

مسئله! د قرآن سره ورته الفاظ دا معنی ده چه په قرآن شریف کي راغلي وي لکه اللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِوَالِدَيَّ وَارْحَمْهُمَا. او ادعیه ماثوره خو ډیر دي او مشهور ه دي.

مسئله! هغه شی چه طلب ئې د بندګانو څخه نه سي کیدای هغه دعا په لمانځه کي روا ده. لکه اللهم ارزقني رزقاً حلالاً واسعاً. او یا اللهم اشفني شفاءً کاملاً. یا اللهم احفظني واهلي وعیالي من جمیع الآفات. او چه طلب ئې د بندګانو څخه کیدای سي هغه دعا روا نه ده. لکه اللهم زوجني فلانة اللهم اعطني الف روبیه.

مسئله! دعا په خارج کي د لمانځه هر قسم روا ده چه د حرام شي دعا نه وي. لکن ادب د دعا دا دي چه په سر او پای کي درود وائي.

سوال! خدای پاک وعده کړې ده ادْعُوْنِيْ اَسْتَجِبْ لَكُمْ. تاسي ما ته خواست کوئ زه ئې قبلوم. او سره د دي چه موږ ډیري دعاوي د دنیائي شیانو کوو د قبلیدو څه اثر نه معلومیږي.

جواب! قبلول د دعا څو قسمه ده یا خو عین مسئول ورکړي. یا په عوض کي د مسئول د ده څخه یو آفت دفع کړي چه سائل ته نه وي معلوم. یائې آخرت ته ذخیره کړي. او بعضي علماء وائي چه دعا ځینې شرطونه لري. لکه چه دعا په حضور د زړه وي. او نفقه په حلاله وي. حاصل دا چه دعا کول بې فائده نه دي. ځکه په صحیح حدیث کي راغلي دي. اَلدُّعَاءُ مُخُّ الْعِبَادَةِ. دعا د عبادت مغز دی.

## ثُمَّ يُسَلِّمُ عَنْ يَمِيْنِهٖ فَيَقُوْلُ اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَ

او بیا دی سلام وگرځوی پر ښی اړخ او داسی دی و وائی السّلام علیکم ورحمة

## رَحْمَةُ اللّٰهِ وَيُسَلِّمُ عَنْ يَسَارِهٖ مِثْلُ ذٰلِكَ

الله - او دغه رنګه دی سلام وګرځوی پر چپه اړخ با ندی۔

مسئله! که سړی یوازی لمونځ کاوه۔ نو په دواړه سلامه کی دی د ملکو چه د ده سره دی نیت دی کوی او که امام وو په دواړه سلامه کی دی د ملکو او د مقتدیا نو نیت کوی۔ او که مقتدی وو د ملکو او د امام او د حاضرینو د جماعت نیت دی کوی۔

شکایت! نه د ملاصاحب او نه د مقتدیانو ودغه نیت ته فکر سته۔ ولی چه نه مونږ لمونځو په غفلت وی حضور نسته۔ ولاړه پر لمانځه یو فکر مو په دکان کی وی یا په زکوة کی۔ یا په تجارت وغیره کی وی۔ وَ مِنَ اللّٰهِ الْعِصْمَة۔

## وَيَجْهَرُ بِالْقِرَاءَةِ فِي الْفَجْرِ وَفِي الرَّكْعَتَيْنِ الْاُوْلَيَيْنِ مِنَ الْمَغْرِبِ

او په زوره دی وائی قرائت د صحار په لمانځه کی او په اولو دوه رکعتو کی د ماښام د لمانځه۔

## وَالْعِشَاءِ اِنْ كَانَ اِمَامًا وَيُخْفِي الْقِرَاءَةَ فِيْمَا بَعْدَ الْاُوْلَيَيْنِ

او د ماخستن په دوو اولو رکعتو کی که امام وو (یعنی پر امام په دغو لمونځو کی جهر واجب دی) او کراره دی و وائی قرائت په وروستنی کی د دوو اولو رکعتو وجوبا۔

## وَاِنْ كَانَ مُنْفَرِدًا فَهُوَ مُخَيَّرٌ اِنْ شَاءَ جَهَرَ

او که چیری منفرد وو یعنی تنهائی لمونځ کاوه) نو دی اختیار لری کی خو بنه وی په جهر دی و وائی

## وَاَسْمَعَ نَفْسَهٗ وَاِنْ شَاءَ خَافَتَ

دو ننه قدر چه په خان نی واوری او کی خو بنه وی کرار دی و وائی۔

مسئله! دا حکم په فرضو لمونځو کی دی۔ او په نفلو کی د ورځی د نفلو وائی او په شپه کی اختیار لری۔ کوکب دری۔ ص ۲۸

## وَيُخْفِي الْإِمَامُ الْقِرَاءَةَ فِي الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ

او کراره دي وائي امام قرائت په ماپښین او په مازیګر کې یعنې سره او پټ وائي واجب دي۔

مسئله! په خفیه قرائت کې تصحیح د حروفو لازمه ده۔ بعضې عوام وي چې خوله ئې پټه نیولې وي۔ وائي زړه قرائت په زړه کې وایم دا مونږ نه دي صحیح تول کتابونه د فقهې دا حکم کوي۔

## وَالْوِتْرُ ثَلٰثُ رَكَعَاتٍ لَا يَفْصِلُ بَيْنَهُنَّ بِسَلَامٍ عِنْدَنَا

او وتر درې رکعته دي او جلا والی دې نه کوي په مابین کې په سلام ګرځولو په نزد د مونږ۔

مسئله! امام شافعیؒ وتر یو رکعت، درې رکعته، پنځه رکعته، او وه رکعته تول روا بولي۔ مونږ دلیل دا دی چې د عبدالله بن عباس رضي الله عنه روایت دی چې علیه السلام دوتر په اول رکعت کې "سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلٰى" سورة وایه۔ او په دوهم رکعت کې ئې "قُلْ يٰٓاَيُّهَا الْكٰفِرُوْنَ" سورة وایه۔ او په دریم رکعت کې ئې "قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ" وایه۔ دا درې رکعته سوه

مسئله! وتر د امام اعظمؒ په نزد واجب دی او د یارانو په نزد سنت دی۔ او کړیا ته سی قضائی په اتفاق ستره۔ فتح القدیر۔

## وَيَقْنُتُ فِي الثَّالِثَةِ قَبْلَ الرُّكُوْعِ فِي جَمِيْعِ السَّنَةِ

او دعاءِ قنوت دې وائي په دریم رکعت کې مخکې تر رکوع په ټول کال کې۔

## وَيَقْرَءُ فِي كُلِّ رَكْعَةٍ مِّنَ الْوِتْرِ فَاتِحَةَ الْكِتَابِ وَسُوْرَةً مَّعَهَا

او وائي دې په هر رکعت د وتر والحمد لله او یو سورة سره د هغې (هر سورة چې وی کړا وېږ دوی کلنه)

## فَاِذَا اَرَادَ اَنْ يَّقْنُتَ كَبَّرَ وَرَفَعَ يَدَيْهِ ثُمَّ

پس چې اراده وکړي د دعاءِ قنوت الله اکبر دې ووائي او لاسونه دې پورته کړي (تر غوږونو)

## قَنَتَ وَلَا يَقْنُتُ فِي صَلٰوةٍ غَيْرِهَا

بیا دې دعاءِ قنوت ووائي۔ او دعاءِ قنوت دې نه وائي په نورو لمونځو کې ماسوا د وترو۔

مسئله! امام شافعیؒ وائی دعاء قنوت دې د سحار په لمانځه کې وائی. زمونږ دلیل دا دی چه ابن مسعودؓ وائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم دعاء قنوت نه دی ویلی په سحار کې مګر یو وار.

مسئله! دا ډیره مهمه مسئله ده او خلک ځنې غافل دی. که په عمومي مسلمانانو یا په یوه مملکت یو عام مصیبت لګه وباء یا غلبه د کفارو په مملکت د مسلمانانو راسی نو ملایانو ته دې په هر لمانځه کې ځوی په اخیره رکعت کې د غه ترز کوع دعاوی وکړی په دفع کې د هغه مصیبت او قنوت نازله دې وائی. په بخاری شریف کې راغلی دی چه علیه السلام یوه میاشت قنوت نازله ویلې دی.

# وَلَيْسَ فِي شَيْءٍ مِنَ الصَّلَوَاتِ قِرَاءَةُ سُورَةٍ بِعَيْنِهَا بِحَيْثُ لَا يَجُوزُ غَيْرُهَا

او نسته په شی کې د لمونځو ویل د سورة معینه په دا سی ډول چه لمونځ بیله هغه سورة نه دی په بل سورة روا.

مسئله! په نزد د امام شافعیؒ بیله ویلو د الحمد لله شریف لمونځ نه دی روا یعنی ویل د الحمد لله فرض دی. ولې چه په صحیح حدیث کې راغلی دی «لَا صَلٰوةَ اِلَّا بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ» یعنی هیڅ لمونځ نسته مګر د الحمد لله په ویلو سره.

زمونږ جواب دا سی وړ کوو چه په قرآن شریف کې دا سی راغلی دی «فَاقْرَءُوْا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْاٰنِ» وایاست تاسی هغه شی چه تاسی ته آسانه وی د قرآن شریف څخه. نو چونکه د آیة مرتبه لوړه ده تر حدیث نو نفس قرائت فرض دی. یعنی بیله ویلو د قرآن شریف لمونځ نه دی روا. او الحمد لله واجبه ده یعنی که په قصد پریږدی لمونځ ئې ناقص سو بیا یې بیرته ئې را او ګرځوی. او که په سهوه سره پاتې سی سجده دې وکړی. په دې ډول تطبیق د آیة او د حدیث سره راځی. کذا فی نور الانوار. ورد المحتار وشروح کتب الفقه کلها. ایوبي.

# وَيُكْرَهُ اَنْ يَّتَّخِذَ قِرَاءَةَ سُوْرَةٍ بِعَيْنِهَا لِلصَّلٰوةِ

او مکروه دی چه عادت ګرځوی ویل د یوه معین سورة د یوه لمانځه د لمونځو څخه

# لَا يَقْرَءُ فِيْهَا غَيْرَهَا

په دا سی توګه چه بل سورة نه په کې وائی دلیل دا دی چه باقی قرآن مبارک مهجور ګرځی. هدایه

مسئله! عوام الناس چه «قل هو الله احد» وائی بل سورة ئې نه وی یاد هغه معذور دی.

## وَاَدْنٰى مَا يُجْزِءُ مِنَ الْقِرَاءَةِ فِى الصَّلٰوةِ مَا يَتَنَاوَلُهٗ

او کم هغه مقدار چه کافی وی د قرائت نه په لمانځه کی هغه قدر دی چه قرآن ورته وئیل

## اِسْمُ الْقُرْاٰنِ عِنْدَ اَبِىْ حَنِيْفَةَ وَقَالَ اَبُوْيُوْسُفَ وَمُحَمَّدٌ

کیږی په نزد د امام اعظمؒ او وئیلی دی امام ابو یوسفؒ او امام محمدؒ چه

## لَا يَجُوْزُ اَقَلَّ مِنْ ثَلٰثِ اٰيَاتٍ قِصَارٍ اَوْ اٰيَةٍ طَوِيْلَةٍ

نه دی روا په لمانځه کی کم تر دری آیاته کوتاه او یا یو آیة اوږد (احتیاط هم په قول کی د یاړ نو دی)

## وَلَا يَقْرَءُ الْمُؤْتَمُّ خَلْفَ الْاِمَامِ

او نه دی وائی هیڅ قرائت مقتدی په امام پسی (یعنی په ټولو لمونځو کی)

پوه سه! چه په دې مسئله کی لوئی اختلاف دی۔ حضرت امام شافعیؒ وائی چه الحمدلله به حتماً وائی که خفیه لمونځ وی او که جهری۔ او د لیل ئی هغه د نبی حدیث دی چه «لَا صَلٰوةَ لِمَنْ لَا يَقْرَءُ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ»

او زموږ د لیل هغه حدیث دی چه «مَنْ كَانَ لَهٗ اِمَامٌ فَقِرَاءَةُ الْاِمَامِ لَهٗ قِرَاءَةٌ»

یعنی که چا لره امام وی نو د امام قرائت د ده قرائت دی۔ او د هدایه مصنفؒ پر دغه قول باندی د اتفاق او اجماع د صحابهؓ دعوه کړې ده۔ هدایه ص۱۰۱ کوکب ص۲۹

## وَمَنْ اَرَادَ الدُّخُوْلَ فِىْ صَلٰوةِ غَيْرِهٖ يَحْتَاجُ اِلٰى

او هغه څوک چه اراده د شاملید ولری په لمانځه کی د بل چا یعنی په امام پسی لمونځ کوی (هغه محتاج

## نِيَّتَيْنِ نِيَّةُ الصَّلٰوةِ وَنِيَّةُ الْمُتَابَعَةِ

دی د دوه نیته ته یو نیت د لمانځه او بل نیت د متابعت د امام (یعنی و دی وائی چه اقتداء می ده په دې حاضر امام پسی) ؛

کتبه محمد عبد الباری غفرله الباری ولوالدیه ولاهله ولعیاله ولاقربائه

# بَابُ الْجَمَاعَةِ

باب دی په بیان کـه دجماعت

## وَالْجَمَاعَةُ سُنَّةٌ مُؤَكَّدَةٌ

اولمونځ په جماعت کول تینګ سنت دی. یعنی واجبو ته نزدې دی.

حتی چه بعضی فقهاء وائی چه جماعت فرض دی. اوکمال الهمام ؒ ئې واجب بولی. په حدیث شریف کی چه روایت ئې مسلم کړی دی دعبدالله بن مسعود رضی الله عنه راغلی دی. چه دجماعت نه مخالفت نه کوی مګر منافق. یعنی عملی منافق. نه کافر منافق.

مسئله! دجماعت د ترک دپاره شرعی عذرونه سته (۱) چه ډیرئې بولی یاکندګی وشی نوجماعت دی پرېږدی اوځپل کار دی دهغه خلاص کړی ولی چه په ډیر درانه اوداسه لمونځ مکروه دی. (۲) بیره دډښمن یادرنده نه (۳) ډیر باران یا خټې (۴) سخت باد په شپه تاریکه کی (۵) داسی تاجوړی چه تر مسجده نه سی تلای.

(۲) چه دمسجد امام مبتدع وی. او بل چه مسجد لیری وی.

## وَأَوْلَى النَّاسِ بِالْإِمَامَةِ أَعْلَمُهُمْ بِالسُّنَّةِ

اوبنه دملایانو په امامت سره هغه ملا دی چه تر نورو بنه عالم اوخبر وی دشریعت په احکامو

مسئله! داحکم هغه وخت دی چه امام راتب دمسجد نه وی ولی چه امام المسجد که څه هم کم علمه وی تر بیګانه ملااولی دی په امامت سره.

## فَإِنْ تَسَاوَوْا فَأَقْرَؤُهُمْ فَإِنْ تَسَاوَوْا فَأَوْرَعُهُمْ

اوکه چیری په علم شریعت کی سره برابروی. بیاهغه اولی دی چه قاری وی اوکه په قرائت کی هم برابر وه بیا دی هغه ملا دمخه سی چه ډیر پرهیزګاره وی.

قال رسول الله صلی الله علیه وسلم مَنْ صَلّٰی خَلْفَ عَالِمٍ تَقِیٍّ فَکَاَنَّمَا صَلّٰی خَلْفَ نَبِیٍّ

ترجمه! کچا لمونځ وکړی په امام پرهیزګاره پسی ګویا لمونځ ئې وکړی په نبی پسی.

## فَإِنْ تَسَاوَوْا فَأَسَنُّهُمْ وَيُكْرَهُ تَقْدِيمُ الْعَبْدِ

که چیرې په ورع کې هم سره برابر وه نو بیا هغه یو چه په سن یعني عمر کې مشر وي. او
مکروه دی د مخکې کول د مریي. ولې چه هغه د بادار د خدمت له سبب ونه ده کړې ته د ملاغو ندقاغ

## وَالْأَعْرَابِيُّ وَالْفَاسِقُ

او د صحرا نشینه د مخکې کول مکروه دي ولې چه په هغوی کې جهل غالب وي. او دغه شان مکروه
دي د مخکې کول د فاسق یعني چه په بعضي ګناهو کبائرو اخته وي لکه زنا، لواطت، غیبت او نور. د عمی

فائده! په دې زمانه کې یعني په ۱۳۱۵ هـ کې غیر فاسق عالم به سړی چیرته
پیدا کوي. ولې چه اکثر ملایان په حسد، غیبت، بهتان چه دا ټول ګناه کبائر دي اخته دي. الا من عصمه الله

## وَالْأَعْمَى وَوَلَدُ الزِّنَا

او د ړانده د مخکې کول مکروه دي ولې چه هغه د نجاست څخه خپل جامې او صورت نه شي ساتلای. او
د زنا زوی یعني حرامي ولې چه د حرامي څخه د خلکو نفرت کیږي.

## فَإِنْ تَقَدَّمُوا جَازَ وَيَنْبَغِي لِلْإِمَامِ أَنْ لَا يُطَوِّلَ بِهِمُ الصَّلَوٰةَ

او که دغه خلک د مخه شي لمونځ پسې روا دی. او ښائي امام لره چه نه دي اوږد دوي په مقتدیانو سره لمونځ.
فائده! اوږد دول د ملاګانو ملتزم مکروه دی چه تر سنت قرائت بالا وي. په قدر مسنون کې د چا لحاظ نشته

## وَيُكْرَهُ لِلنِّسَاءِ أَنْ يُصَلِّيْنَ وَحْدَهُنَّ بِجَمَاعَةٍ فَإِنْ فَعَلْنَ

او مکروه دی ښځو لره دا چه لمونځ کوي یوازې دوی په جماعت سره او که دوی جماعت کاوه

## وَقَفَتِ الْإِمَامُ وَسَطَهُنَّ كَالْعُرَاةِ وَمَنْ صَلَّى مَعَ

نو دی ودریږي امامه ښځه په ما بین خپل کې د صف لکه لڅ خلک چه لمونځ په جماعت کوي. او که چا جماعت کاوه

## وَاحِدٍ أَقَامَهُ عَنْ يَمِينِهِ وَإِنْ كَانَا اثْنَيْنِ تَقَدَّمَ عَلَيْهِمَا

د یو سړي سره نو مقتدي دی په راسته بغل ودریږي. او که مقتدیان دوه کسه وه نو دی ملا د هغو وړاندې ودریږي او مقتدیان ترشا

## وَلَا يَجُوزُ لِلرِّجَالِ اَنْ يَقْتَدُوْا بِامْرَأَةٍ اَوْ صَبِيٍّ

او نه دی روا نارینه لره چه اقتداء کوی په ښځه پسی او یا په کوچنی پسی۔

د ښځې په باره کی رسول الله صلی الله علیه وسلم وائی اَخِّرُوْهُنَّ مِنْ حَيْثُ اَخَّرَهُنَّ اللّٰهُ۔ یعنی تاسی وروسته کوئ ښځې لکه چه خدائ پاک دوئ وروسته کړې دی۔ او د کوچنی لمونځ نفل دی نو اقتداء د مفترض په متنفل پسی نه ده روا۔ او د صف ترتیب دا دی۔

## وَيَصُفُّ الرِّجَالُ ثُمَّ الصِّبْيَانُ ثُمَّ الْخُنْثٰى ثُمَّ النِّسَاءُ

اول صف دی درېږی د لوئ خلکو۔ او بیا نابالغه کوچنیان۔ او بیا نر ښځیان۔ او بیا ښځې۔

## وَاِنْ قَامَتِ امْرَأَةٌ اِلٰى جَنْبِ رَجُلٍ وَهُمَا مُشْتَرِكَانِ

او که چیری ودریده یوه ښځه و بغل ته د نر په لمانځه کی او دوئ دواړه شریکان وه

## فِيْ صَلٰوةٍ وَاحِدَةٍ فَسَدَتْ صَلٰوتُهٗ اِنْ نَوَى الْاِمَامُ

په یوه لمانځه کی نو د نر لمونځ فاسد سو نه د ښځې۔ که چیری امام نیت کړی وی د امامت

## اِمَامَتَهَا وَاِنْ لَّمْ يَنْوِ اِمَامَتَهَا لَا يَضُرُّهٗ وَلَا تَجُوْزُ صَلٰوتُهَا

د ښځې او که ئی نیت د امامت د ښځې نه وی کړی نو ضرر نه رسوی نر ته او نه دی روا لمونځ د ښځې

## وَيُكْرَهُ لِلنِّسَاءِ حُضُوْرُ الْجَمَاعَةِ

او مکروه دی ښځو لره حضور و جماعت ته۔ (یعنی ځوانانی ښځې علت ئی بیره د فتنې د زنا ده)

مسئله! لمونځ چه فرض دی او جماعت چه سنت مؤکد دی بیا هم د ځوانانو ښځو ورته تلل مکروه دی۔ نو د بازار د چکر د پاره یا د سودا د پاره او د ځوانانو د وکان داری سره په دکان کی په لږ څه مجلس کول ئی څنګه روا دی؟

### د نن زمانې ښځې

د نن زمانې اکثره ښځې داسی دی چه میړه ئی دوکان ته ولاړ سی او ما ښام راځی۔ نو بی بی صاحبه د بازار په سیل روانه سی۔ بعضی ښځې میړه ته وائی چه ته د ښځو د جامو په سودا

ږو هېږي او دوکاندارانو تاته شیان ډېر کوي. نوماته ووېره راکړه څه به
په سودا پسې ولاړه سم. مېړه مې هم د خپلې سادګۍ او بې عقلۍ د سبب دا خبره ومنې
او ووېې وېره کړې. اوکې مېړه وېره ته وواې چه خوانه ښځه د بېګانه دوکاندارانو څخه ځېنګه
سودا کوي. نو دا وېره ته وایي څه کوې هرڅوک خوره وهوره لېي او وري او ناروا پېښې.
او دغه ښځه کله د ډاکټر په بهانه او کله د تعویذ په بهانه د کوره ووځي. او ښه
سنګار هم وکړي. حاصل دا دی چه د اسلام د نرو او ښځو ترمابین یو مشترک دین دی
شریعت پاک نرو لره خپل احکام او ښځو لره خپل احکام ټاکلي دي. که نر او که ښځه تر
احکامو د دین مبارک او د شریعت پاک سرغړونه وکړي نو په لویه ورځ د قیامت به
حساب ورسره وشي. بیا به نو پاک خدای په خپل رحم سره وبخښي او یا به په دوزخ کې
عذاب ورکړي.

## بشارت او زېری

د هر ګناه کار ته که نر وي او که ښځه د هرې ګناه د توبې لویه دروازه خلاصه ده تر مرګ پورې.

سوال! توبه تر نزکندن تر وخته پورې قبلیږي نو چه سړی ناجوړه شي بیا به
خدای پاک ته په اخلاص توبه وکاږي.

جواب! تاته څه معلومه ده چه ستا مرګ به په څنګه توکړي ایا د توبې وخت به پیدا کړي او که نه.

بل جواب! ستا چه نن ورځ عقل پرځای دی او په هرشي پوهیږې د شیطان ورغندې
دغاړې نه سې کېښلای نو د نزکندن په وخت کې چه ته د خپل ځان په تکلیف اخته یې او
عقل دې هم کار نه کوي څنګه به د شیطان تناوُ دغاړې وکاږې. یعنې توبه به وکاږې. بیت

توبه بکن امروز تو هرگز نگو فردا کنم — شاید نمیری صبحدم فردا نیابی در شمر

عُذر! غرض د فقیر صرف وخوندو او لونو ته نصیحت وو امید کوم چه دوی ناراض
نه سي. او هرڅه چه ما وویل د تجربې د لارې نه د غیب ګوې او بهتان د لارې او نه په ټولو
ښځو هم اعتراض نه لرم پاکې دیندارې ښځې سته چه تر نرو یې عقیده او دینداري
بالاوي. او دا هم زما یقین دی چه زموږ په نرو کې هم بېدینه کسان سته ما ته معلومه ده
چه د بعضو کوره وښځې لمونځونه کوي روژې نیسي او نر یې نه لمونځ کوي او نه روژه نیسي.
او ډېر ګناهونه دي چه په نرو کې ډېر دي او په ښځو کې نادر دي. مثلاً غلا، چرس،
هیروئن، کیسه بري، بچه بازي، لواطت، ناحقه قتل، ډاکو والي، رشوت اخستل،
پوپېړ ویل، خپلې ښځې ناحقه وهل او ټکول، شراب خوري، قمار کول، سپي جنګول،

زړګي په رو پوجنګول، او همدغسې کړه کان، په بیع و شراء کې خیانت کول، د بله
خوړل، زکوة نه ورکول، حج نه کول، د رواغ ویل په ډکیمانه - په بیګانه ښځو پسې کتل
سود کول، پر مایځ یا پر بله ښځه د زنا تهمت ویل، د سینما تګ، ساق خانه جوړول
دین او مذهب ښکنځل، غیبت کول، مسلمان زهیرول، او ناحقه تپې کول، په ورځ
کې لس واره د مایځ طلاق اچول، او پر هغه سر بیره ئې د ځان مایځه بلل او نور د دې
جملې څخه ګڼهونه چې په خوند وکې لین پیدا اکیږي -

فائده ! نن ورځ روا او ناروا هر سړي او ښځې ته معلوم دي - غښتلی هغه
دي چې امر د خدای او د رسول صلعم پر ځای کړي - او د ناروا کارو څخه پرهیز
وکړي او د شیطان څخه خپل دوستي او علاقه وشکوي - او د خدای پاک او رسول کریم
صلی الله علیه وسلم دوستي او محبت او اطاعت فرمان برداري مختاره کړي - او د دې
کار توفیق هم د خدای جل جلاله څخه وغواړي - وَمَا عَلَيْنَا إِلَّا الْبَلَاغُ الْمُبِيْنُ

## وَلَا بَأْسَ بِأَنْ تَخْرُجَ الْعَجُوْزُ فِي الْفَجْرِ وَالْمَغْرِبِ وَالْعِشَاءِ

او باک نشته یعني مکروه نه دي دا چې وزي زړې ښځې د سحار او ماښام او د ماخستن

## عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ رح وَقَالَ أَبُوْ يُوْسُفَ وَمُحَمَّدٌ رح

لمانځه ته - په نزد د امام اعظم رح او وائي امام ابو یوسف رح او امام محمد رح چې

## يَجُوْزُ خُرُوْجُ الْعَجُوْزِ فِيْ سَائِرِ الصَّلَوَاتِ

روا دي وتل د سپین سرو ښځو مسجد ته په ټولو لمونځو کې ، ولې چې سپین سرې ته د چا شوق نشته - کوکب ۳۰

مسئله ! فتوی نن ورځ پر دې ده چې زړې ښځې دي هم په یوه لمانځه کې مسجد ته نه وزي - کوکب دري - علت ئې دا دی چې فتنې ډېرې سوې د زنا او ربل دي - پر بعضي خلکو ځوان او زړه فرق نه لري - او سپین سرې هم په باوره نه دي -

## وَلَا يُصَلِّي الطَّاهِرُ خَلْفَ مَنْ بِهِ سَلَسُ الْبَوْلِ

او لمونځ دي نه کوي پاک سړی په هغه امام پسې چې هغه ته د بولو د مسلسل تویدو مرض وي.
یعني پوره لمونځ په او داسه نه سي کولای -

مسئله ! همدغسې په انفلاتِ الریح پسې - یعني چه باد ورنه جاري وي - پاک سړي دې لمونځ نه پسې کوي - او دغه رنګه په صاحب پسې د جرح سائل یعني چه تپ ئې وینې جارې لري طاهر سړی دې لمونځ نه پسې کوي -

## وَلَا الطَّاهِرَةُ خَلْفَ الْمُسْتَحَاضَةِ وَلَا الْقَارِئُ خَلْفَ الْأُمِّيِّ

او نه دې پاکه ښځې لمونځ کوي په هغه ښځه پسې چه وینه ئې جارې وي او نه دې قاري لمونځ کوي په امي پسې

یوه مسئله ! چه مراد د قاري څخه اصطلاحي قاري نه دی چه قرآن شریف ئې په تجوید سره زده وي - او نه د امي څخه مراد عرفي امي دی چه په اصطلاح امیان ورته وائي - بلکه د قاري څخه هغه سړی مراد دی چه قرآن مبارک ئې دومره قدر زده وي چه لمونځ په روا وي او امي هغه دی چه دغومره قدر ئې هم نه وي زده -

## وَلَا الْمُكْتَسِي خَلْفَ الْعُرْيَانِ

او نه دې هغه سړی لمونځ کوي چه کالي ئې اغوستي وي (یعني دومره قدر چه عورت ئې په پټ وي) په داسې سړي پسې چه بربنډ وي (یعني عورت ئې ښکاره وي)

## وَيَجُوزُ أَنْ يَؤُمَّ الْمُتَيَمِّمُ لِلْمُتَوَضِّئِينَ

او روا دي چه امامت وکړي تیمم والا او دس والاو (ولې چه تیمم هم په نزد طهارت کامله دی)

## وَالْمَاسِحُ عَلَى الْخُفَّيْنِ لِلْغَاسِلِينَ

او روا دي چه امامت وکړي هغه سړی چه پر موزو ئې مسح کړې وي د پښو پریولونکو کسانو (دا مسئله اتفاقي ده)

## وَيُصَلِّي الْقَائِمُ خَلْفَ الْقَاعِدِ

او لمونځ دې کوي ولاړ سړی په ناست امام پسې -

یعني چه په ولاړې لمونځ نه شي کولای د ناجوړتیا د سببه - ولې چه په حدیث شریف کې د بخاري او مسلم او مشکوة وغیره داسې راغلي دي چه رسول الله صلی الله علیه وسلم آخري لمونځ په ناستې کاوه او اصحاب کرام رض پسې ولاړ وو -

## وَلَا يُصَلِّيَ الَّذِي يَرْكَعُ وَيَسْجُدُ خَلْفَ الْمُؤْمِيْ

او لمونځ دې نه کوي هغه سړي چه رکوع او سجده کوي ورو ستهٔ تر هغه سړي چه لمونځ په اشاره کوي.

## وَلَا يُصَلِّي الْمُفْتَرِضُ خَلْفَ الْمُتَنَفِّلِ

او لمونځ دې نه کوي هغه سړے چه فرض لمونځ کوي په نفل کونکي پسې ځکه چه بناء دقوي په ضعيف نه ده روا

## وَلَا مَنْ يُصَلِّي فَرْضًا خَلْفَ مَنْ يُصَلِّي فَرْضًا اٰخَرًا

او نه دې کوي لمونځ هغه سړے چه يو فرض کوي لکه د ماپښين قضائي مثلاً وروستهٔ تر هغه چا چه بل فرض لمونځ کوي لکه د مازيګر وقتي لمونځ مثلاً. ولې چه په اقتداء کې يو والے دلمانځهٔ شرط دے.

## وَيُصَلِّي الْمُتَنَفِّلُ خَلْفَ الْمُفْتَرِضِ وَمَنِ اقْتَدٰى

او لمونځ دې نه کوي نفل کونکے په فرضي لمانځهٔ کونکي پسې. او که چا اقتداء وکړه په يو امام

## بِإِمَامٍ ثُمَّ عَلِمَ اَنَّهٗ عَلٰى غَيْرِ طَهَارَةٍ اَعَادَ الصَّلٰوةَ

پسې او بيا وروسته ئې علم راغے چه دغه امام لمونځ بې اودسه کړے نو دې دې لمونځ راوګرځوي.

پوهه سئ! چه علم په بې اودسيا د امام ځو په اقرار دخپل امام وي. يعني هغه ووائي چه زه بې اودسه وم چه لمونځ مې درکړے. او يا دوه کسه عادلان شاهدان ووائي چه دغه امام موږ وليدے چه اودس ئې مات کړے او بيا ئې لمانځهٔ ودريدے.

مسئله! امام که په هيره مقتديانو ته لمونځ په بې اودسيا ورکړے. نو پر ده واجبه ده چه هغه مقتديان به په خپله بې اودسيا خبر وي. تاچه دوی خپل لمونځونه راوګرځوي. په دې خبرو کې دې ملا شرم نه کوي.

مسئله! که يو سړے داسې ځاے لمونځ ورکړے چه مقتديان ده ته نه معلوميده او ده بې اودسه وو نو دې خپل لمونځ راوګرځوي.

فائده! شافعيان په وينه اودس مات نه بولي نو که چيرې ملا شافعي مذهبه وو. نو د حنيفي سړي اقتداء په هغه پسې نه رواکيږي. ولې چه د ده پرنه مثلاً وينې سې او دس نه تازه کوي. نو احتياط خو دا دے چه په دغسې سړي پسې تر هغو اقتدا و نه کړي

څوده نو دا معلومه شوه چه د امام شافعي مذهب امام د حنيفيانو د مذهب مراعات کوي۔ يعنې د وينو څخه هم او دس تازه کوي۔

مسئله: په داسې امام پسې اقتداء نه ده روا چه د هغه عقائد ستا په مذهب کې سبب د کفر ده وي لکه خوارج وغيره۔

## وَيُكْرَهُ لِلْمُصَلِّي أَنْ يَّعْبَثَ بِثَوْبِهِ أَوْ بِجَسَدِهِ

او مکروه دي لمونځ کوونکي لره چه ساتيري وي يا په جامه يا په بدن خپل۔

مثلاً په ږيره لاس تېروي يا په پوزه کې ګوتې وهي۔ او کالي څنډي يا ئې پوڅي۔ ولې چه په صحيح حديث کې راغلي دي "إِنَّ اللهَ كَرِهَ لَكُمْ ثَلَاثًا الْعَبَثَ فِي الصَّلٰوةِ وَالرَّفَثَ فِي الصَّوْمِ وَالضَّحِكَ فِي الْمَقَابِرِ" ترجمه په تحقيق خدائ پاک مکروه کړي دي و تاسې ته درې شيان عبث په لمانځه کې۔ او بېباکې و ښځخل په روژه کې او خندل په هديرو کې۔

## وَلَا يُقَلِّبُ الْحَصٰى إِلَّا أَنْ لَا يُمْكِنَهُ السُّجُوْدُ فَيُسَوِّيْهِ مَرَّةً وَاحِدَةً

او نه دي اړوي ډبري شګې مګر هغه وخت کې قدرت د سجدې نه درلودي په هغو شګو باندې۔ نو بيا دې سره برابرې کړي لکن يو واري باندې۔

## وَلَا يُفَرْقِعُ أَصَابِعَهُ وَلَا يُشَبِّكُ وَلَا يَتَخَصَّرُ

او په لمانځه کې دي په ګوتو ټکان نه کوي او نه دي ګوتې سره جاړ باسي او نه دي لاس په تشي ږدي چه د شيطان

## وَلَا يَسْتَدِلُ ثَوْبَهُ

فعل دئ۔ او نه به خوړه نه دي کوي کالي خپل۔

يعنې چه پټو په څان واچوي او دواړه طرفه ئې ايله وي په اوږه ئې نه وي راکش کړي۔ يا کوټ ئې اغوستې وي او لاسونه ئې تر لستوڼي نه وي کښلي او دغسې لکه چپنه او يا پوستين۔

## وَلَا يَكُفُّهُ وَلَا يَعْقِصُ شَعْرَهُ

او نه دي بيچي جامه خپله او نه دي تړي ويښتان د سر په توکر يا په تناو۔

يعنې چه د خاورو څخه ئې ساتي۔ په نن زمانه کې دا مکروه دي چه سړي په وخت

کې د لمانځه د مخ د خوا وېښتان ترخولې لاندې کوي۔ د عقص نه علیه السلام نهې کړې ده او په صحیح حدیث کې راغلې دی۔

## وَلَا يَلْتَفِتُ يَمِيْنًا وَّشِمَالًا

او نه دې کوي په لمانځه کې راسته طرفته او چپه طرفته۔

مسئله! په لمانځه کې کتل درې قسمه دي۔ یو په کنجانود سترګو په هغه کې کراهت نشته لکن د خشوع نه د لمانځه خلاف دی۔ او بل سر کړځول دي هغه مکروه دی۔ او بل څکر کړځول دي په هغه لمونځ فاسدېږي۔ کذافي العيني شرح البخاري۔

## وَلَا يَقْعِيْ كَاِقْعَاءِ الْكَلْبِ

او نه دې کښېني په التحيات کې لکه د سپي ناسته۔

د اقعاء الکلب تفسیر فقیه ابوجعفر طحاوي داسې کړې دی۔ چه کناټي په ځمکه کښېږدي او نه ټکونه جګ وړي او ځان ټول کړي او لاسونه په ځمکه کښېږدي دې فعل نه په صحیح حدیث مبارک کې نهې راغلې دی۔ کوکب دري ص ۳۰

## وَلَا يَرُدُّ السَّلَامَ بِلِسَانِهٖ وَلَا بِيَدِهٖ

او جواب د سلام دې نه ورکوي په ژبه (یعني وعلیکم السلام) او نه په لاس (چه لاس ورته پورته کړي ولې چه د خولې جواب خبرې دي او په خبرو لمونځ فاسدېږي او په لاس مکروه دی۔

## وَلَا يَتَرَبَّعُ اِلَّا مِنْ عُذْرٍ وَلَا يَأْكُلُ وَلَا يَشْرَبُ

او چارزانو دې نه کښېني مګر د عذر له سببه (ولې چه سنت طریقه پاتېږي) او خوړک به نه کوي او چښک به نه کوي په لمانځه کې؛

د مسئله! کې خوړک یا چښک وکړي لمونځ ئې فاسدسو په اتفاق؛

په ... چه لمونځ وخت د ډېر عجز او نیاز دی او وخت د رب العزت د مناجات دی نو په لمانځه کې لمونځ والا باید داسې کار و نه کړي چه هغه د لمانځه سره منافي وي چه یا لمونځ فاسد سي یا مکروه سي یا کم ئې ثواب ئې لږ ... ی۔

# بَابُ الْحَدَثِ فِي الصَّلٰوةِ

باب دی په بیان کی د بې اودسیا په لمانځه کی

## فَاِنْ سَبَقَهُ الْحَدَثُ اِنْصَرَفَ وَتَوَضَّأَ

که پیښه سی ولمونځ کوونکی ته بې اودسیا (که نابېره وی لکه پرزه چه ئی وېښې سی. یا سره د ده د علم لکه چه
ئی چه ئی باد وکړی دی خو ئی تېنګوی حځنی ایله سی) فوراً دی لمونځ پرېږدی ځای پرېږدی اودس دی تازه کړی

مسئله! که دغه سړی په دې حالت کی یو رکوع یا سجده حنه وکړی لمونځ ئی فاسد دی

## وَبَنٰی عَلٰی صَلٰوتِهٖ اِنْ لَّمْ يَكُنْ اِمَامًا فَاِنْ كَانَ اِمَامًا

او بناء دی پر لمانځه وکړی (یعنی لمونځ دی د هغه ځای په ځنه ونیسی) که چیرې لمونځ کوونکی امام نه وو او که

## اِسْتَخْلَفَ وَتَوَضَّأَ وَبَنٰی عَلٰی صَلٰوتِهٖ مَالَمْ يَتَكَلَّمْ

امام وو لمونځ کوونکی نو فوراً دی یو مقتدی پر خپل ځای ودروی او دی دی او دس تازه
کړی او بناء دی پر خپل لمانځه وکړی. او دا هلته چه خبرې نه وی کړی.

مسئله! که یوازې ئی لمونځ کاوه او که امام وو پس له دې چه بې اودسیا ئی پیښه
سوه نو کی خبرې وکړی یا یو بل داسی کار ئی وکړی چه د لمانځه سره منافی لکه خوړک وغیره
نو هغه تېر لمونځ ئی باطل سو لمونځ دی د سره کوی.

## وَالْاِسْتِئْنَافُ اَفْضَلُ وَاِنْ نَامَ فَاحْتَلَمَ

او لمونځ د سره راګرځول ښه کار دی. که څوک بیده سی په لمانځه کی (یعنی داسی خوب
چه اودس نه په ماتېږی. لکه په رکوع یا سجده یا ولاړه کی) نو شیطان احتلام ورپېښ سو.

## اَوْ جُنَّ اَوْ اُغْمِیَ عَلَيْهِ اَوْ قَهْقَهَ اِسْتَاْنَفَ الْوُضُوْءَ وَالصَّلٰوةَ

او یا لیونتوب ورپیښ سو او یا پر ده بېهوښی راغله. او یا ئی په زوره وخندل. نو ئی
اودس دی تازه کړی او لمونځ دی راوګرځوی.

## وَإِنْ تَكَلَّمَ فِي صَلوٰتِهٖ سَاهِيًا أَوْ عَامِدًا أَبْطَلَتْ صَلوٰتَهٗ

او که خبرې وکړي په لمانځه کې په سهوه یا په قصد سره لمونځ ئې باطل سو۔ او که وړ پیښه

## فَإِنْ سَبَقَهُ الْحَدَثُ بَعْدَ مَا قَعَدَ قَدْرَ التَّشَهُّدِ تَوَضَّأَ وَسَلَّمَ

سوه د ده تېږي اودسیا پس له دې چه په اخیره ناسته کې په قدر د التحیات کښینستلی وو۔
نو دی اودس تازه کړي او صرف سلام دې وګرځوي۔

پوښتنه! چه دا سلام واجب دی نو ځکه اودس دې ورته تازه کړي۔

## وَإِنْ تَعَمَّدَ الْحَدَثَ فِي هٰذِهِ الْحَالَةِ أَوْ تَكَلَّمَ

او که په قصد اودس مات کړي په دغه حالت کې (چه په قدر د التحیات ئې ناسته کړې وه) او یائې خبرې

## أَوْ عَمِلَ عَمَلًا يُنَافِي الصَّلوٰةَ تَمَّتْ صَلوٰتُهٗ

وکړې۔ او یائې یو بل داسې کار وکړي چه د لمانځه سره منافي وي لکه خوړک وغیره۔ لمونځ ئې
پوره د سو ولې چه دا فعل وتخه د لمانځه شی نه سو پاته۔

سوال! واجب سلام خو پاته دی۔

جواب! که اودس تازه کړي هم بناء د سلام نه سي کولای۔ ولې چه په مابین کې منافي پیدا سو۔

## وَإِنْ رَأَى الْمُتَيَمِّمُ الْمَاءَ فِي صَلوٰتِهٖ وَقَدَرَ عَلٰى

او که ولیدې تیمم کوونکی اوبه په لمانځه کې او دی قادر وو په استعمال د دې

## اِسْتِعْمَالِهٖ بَطَلَتْ صَلوٰتُهٗ فَإِنْ رَاٰهُ بَعْدَ مَا قَعَدَ قَدْرَ التَّشَهُّدِ

اوبو نو باطل سو لمونځ د ده۔ پس که ولیدې اوبه وروسته له هغه چه دی په قدر
د التحیات کښینستلی وی۔

پوښتنه! چه دا مذهب د امام اعظم دی ولې چه امام صاحب خروج په صنع د لمونځ
کوونکي فرض بولي۔ هغه دې سړي نه ده کړي۔ او یاران وتل د لمانځه په صنع د مصلی فرض
نه بولي۔ نو د دغه سړي لمونځ پوره سو۔ نو دا اوبو لیدل ئې خارج الصلوٰة سوه۔

أَوْ كَانَ مَاسِحًا عَلَى الْخُفَّيْنِ فَانْقَضَتْ مُدَّةُ

او یا مسح کوونکی پر موزو وو - نو تیره سوه مده د مسحی (چه درې ورځې مسافر لره او یو

مَسْحِهِ أَوْ خَلَعَ خُفَّيْهِ بِعَمَلٍ قَلِيْلٍ أَوْ كَانَ أُمِّيًّا

شپه ورځ مقیم لره ده) او یا وختې موزې په لږ عمل سره - او یا امی وو نو نې یو سوره ت

فَتَعَلَّمَ سُوْرَةً أَوْ عُرْيَانًا فَوَجَدَ ثَوْبًا أَوْ

زده سو - یعنې ورته یاد سوه - او یا لڅ وو نو نې جامه پیدا کړه (یعنې یو چا جامه ورکړه) او

أَوْ مُوْمِيًا فَقَدَرَ عَلَى الرُّكُوْعِ وَ السُّجُوْدِ

یائې په اشاره لمونځ کاوه بیا قادر سو پر رکوع او سجده باندې (مثلاً ملا ئې خوږه بدل بیا جوړ سوه)

أَوْ تَذَكَّرَ أَنَّ عَلَيْهِ صَلٰوةً قَبْلَ هٰذِهِ

او یائې بیا د سوه دا چه پر ده قضائي لمونځ پاته دی د هغه تردې لمانځه.

أَوْ أَحْدَثَ الْإِمَامُ الْقَارِیُ فَاسْتَخْلَفَ أُمِّيًّا

او یا بې او دسه سو امام چه قاری وو نو نې خلیفه ودراوی امی سړی.

أَوْ طَلَعَتِ الشَّمْسُ فِي صَلٰوةِ الْفَجْرِ أَوْ دَخَلَ

او یا راوختې لمر په لمانځه کی د سهار او یا داخل سو وخت د مازیګر

وَقْتُ الْعَصْرِ فِي صَلٰوةِ الْجُمُعَةِ أَوْ كَانَ مَاسِحًا

د جمعې په لمانځه کی.

او یا مسح کوونکی وو پر

عَلَى الْجَبِيْرَةِ فَسَقَطَتْ عَنْ بُرْءٍ أَوْ كَانَ

سکنده نو هغه ولویده او هغه ځائې جوړ سو

او یا وو د لمونځ کوونکی

## صَاحِبُ عُذْرٍ فَانْقَطَعَ عُذْرُهٗ كَالْمُسْتَحَاضَةِ

خاوند د عذر نو قطع سو عذر د دہ ۔ لکہ مستحاضہ ښځہ

## وَمَنْ فِيْ مَعْنَاهَا بَطَلَتْ صَلٰوتُهُمْ عِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ رح

او یا هغہ څوک چہ پہ معنا کی د دې وي ۔ باطل سو لمونځ د دغو ټولو پہ نز د امام اعظم رح

## وَقَالَ اَبُوْ يُوْسُفَ وَمُحَمَّدٌ تَمَّتْ صَلٰوتُهُمْ

او وائی امام ابو یوسف رح او امام محمد رح چہ پوره ؔلمونځونہ د دغو کسانو ۔ پہ دغو ټولو مسئلو کی ۔

پوره سه! چہ دغہ ذکر سوی مسئلی مسائل اثنی عشریہ بولی ۔ یعنی دوولس مسئلی چہ د امام اعظم رح او د یارانو پہ کی اختلاف دی ۔

او مبنی د ټولو دغو مسئلو پر دې خبره دہ چہ د امام اعظم رح پہ نزد وتل د لمانځہ پہ فعل د لمونځ کېدا ره فرض دی ۔ نو دغہ عوارض کہ څہ هم پس له ناستی پہ قدر د التحیات پیښ سوه ۔ نو چونکہ خروج پہ صنعہ پا تہ دی ۔ نو لکہ دغہ عوارض چہ پہ ما بین کی د لمانځہ پیښ سی ۔ او د لمانځہ پہ ما بین کی پہ پیښید و د دغو عوارضو خو لمونځ باطلیږی نو اوس هم باطل سو ۔

او یاران رح وائی چہ خروج پہ صنعہ نہ دئ فرض نو لمونځ کوونکی چہ پہ قدر د التحیات کښېنستی لمونځ ئې پوره سوا و د اعوارض کو یا خارج الصلوة یعنی د باندی تر لمانځہ پیښ سوه ۔ او د باندی تر لمانځہ خو پہ د غو عوارضو د څخہ لمونځ ادا سوی نہ باطلیږی ۔ کذا فی جمیع کتب الفقہ ۔

مسائل شتی من المفسدات للصلوة ۔ لکہ لمونځ کوونکی ځکیږ وکی و کړې یا ئی اوه او وه ویلہ او یا ئی پہ لمانځہ کی وژړل چہ د ژړا څخہ ئی حروف پیدا سوه او دا ژړل دیاد ولې څخہ د جنت یا د اور وه لمونځ ئې نہ قطع کوی ولی چہ دا ژړا ونہ یې د یر عجز د مصلی دلالت کوی او کہ دا ژړا ونہ د بدن د درد څخہ یا د یو غم د وجهی څخہ ځنی صادر سوه لمونځ ئی فاسد دی ۔ لکہ کې پہ لمانځہ کی غاړه تازه کړې بیلہ عذره او حروف ځنی پیدا سوه لمونځ ئی فاسد دی او کہ د عذر څخہ وو نو هغہ عفو دی لکہ نو ږی یا ټیغ ۔

# بَابُ قَضَاءِ الْفَوَائِتِ

باب دى په بيان كې د قضاء ويلو د فوتى لمونځو

فائده! فقهاء ټوله قضائى لمونځونه د فوائتو په نامه ياد وي او د متروكات په نامه ئې نه ياد وي ولې چې دا شان ده چې قضاء د لمونځ لازمه ده. كې په قصد قضاء كړې كې بې قصد ځنى قضاء شي په دې عبارت كې گمان پر مسلمان كول دى يعنى مسلمان خو په قصد لمونځ نه پرېږدى. البته په غفلت يا په هيره به ځنى فوت شوي وي. رد محتار وغيره.

وَمَنْ فَاتَتْهُ صَلٰوةٌ قَضَاهَا إِذَا ذَكَرَهَا

او كه د چا څخه فوت شو لمونځ قضاء دې ئې اوكړي كوم وخت چې ورته ياد شي.

لقوله عليه السلام "من نام عن صلوٰة او نسيها فليقضها اذا ذكرها" ترجمه كوم څوك بيده شو د لمانځه څخه او يائې هير شو بيا دې قضاء اوكړي هغه وخت چې ورته ياد شي د غه لمونځ.

وَقَدَّمَهَا عَلٰى صَلٰوةِ الْوَقْتِ إِلَّا أَنْ يَّخَافَ فَوْتَ صَلٰوةِ الْوَقْتِ فَيُقَدِّمُ صَلٰوةَ الْوَقْتِ عَلَى الْفَائِتَةِ ثُمَّ يَقْضِيْهَا

او مخ دې ئې كړي قضائى لمونځ پر وختى لمانځه باندى مگر هغه وخت كه بېرېدئ پر وختى لمانځه يعنى چه وختى لمونځ به ترې اوڅخه قضاء شي.

نو بيا دې مخ كړي وقتى لمونځ پر فوتى باندې وروسته دې قضائى ئې اوكړي خوى.

وَمَنْ فَاتَتْهُ صَلَوَاتٌ رَتَّبَهَا فِى الْقَضَاءِ كَمَا وَجَبَتْ فِى الْأَصْلِ

او كه د چا څخه فوت شوه ډير لمونځونه ترتيب دې ورته كړي په قضاء ويلو كى لكه په اصل كى چه واجب شوي وه

يعنى د مخه لمونځ دې د مخه وكړي پسى وروستنه بيا ترپايه پورې. په حديث كى د بخاري او نورو كتابو د حديثو اغلى دى چه د آنحضرت صلى الله عليه وسلم

او د اصحابو د خندق په مهمه مشهوره غزا کي څلور لمونځونه قضاء سوه. نو علیه السلام په ترتیب سره را او ګرځول او بیائي داسي وویل صلوا کما رأیتموني أُصلي، یعني تاسي لمونځ کوئ چه څرنګه موږ ولیدم چه لمونځ مي وکړی لمونځونه په ترتیب وکړه. نو په امر د علیه السلام ترتیب واجب سو.

## إِلَّا أَنْ تَزِيدَ الْفَوَائِتُ عَلَى خَمْسِ صَلَوَاتٍ

مګر هغه وخت ترتیب نه غواړي که زیات سوه قضائي لمونځونه پر پنځه لمونځو

## أَوْ نَسِيَ أَوْ ضَاقَ الْوَقْتُ فَيَسْقُطُ التَّرْتِيبُ فِيهَا

یا ئې هیر سوه او یا وخت تنګ وي بیا نو ساقط دی ترتیب په مابین کي د قضائي لمونځو

فائده! په مابین کي د وختي او د قضائي هم ترتیب ساقط دی.

مسئله! ترتیب چه یو وار ساقط سي بیا په لږ والي د لمونځو بیرته نه راګرځي.

مسئله! که د سړي څخه په جهالت او ناپوهي کي د کلو یا د میاشتو لمونځونه قضا سوي وه او اوس ئې توبه وکښل او هغه لمونځونه را ګرځوي څرنګه نیت به کوي. چه هر لمونځ ډېر وار ورته قضاء سوئ وي نو نیت به داسي کوي. نیت مي دئ د زړه د اخلاصه لمونځ کوم څلور رکعته فرض د اول ماپښین چه زما په ذمه کي دئ. او همدغسي اول مازدیګر او سهار مثلاً څو چه د کال لمونځونه پاتي تر سینړي ی دغه ډول نیت به کوي په ټولو لمونځو کي. ایوبي.

**کاتب الحروف غفرله الرؤف محمد عبدالباري غفرله الباري وائي**

چه د دي کتاب کتابت مخکي قاري فضل الحق حقاني کړی وو او مخکي تر تصحیح او نظر ثاني چاپ سو نو ځکه زیاتي نیمګړتیاوي او غلطیاني پکښي موجود وي. وروسته ما د مؤلف مولانا عبیدالله ایوبي او قاري فضل الحق په مشوره د دي کتاب کتابت دوهم وار وکړی او جناب مولوي عبیدالله صاحب د تصحیح او نظر ثاني سره یو ځای نوي مسئلي د اکثرو بابو په پای کي درج کړي. نو اوس که چیري زما څخه غلطي سوي وي تاسي څخه د حل په هیله یو. والسلام.

# بَابُ الْاَوْقَاتِ الَّتِیْ تُکْرَهُ فِیْهَا الصَّلٰوةُ

باب دی په بیان کی د هغو وختو چه په هغو کی لمونځ مکروه دی

فائده! دا باب په هدایه کی په باب المواقیت کی راوړه شوی دی۔

سوال! د باب عنوان مصنفؒ کراهة کښېښود او دستی وائی "لَا تَجُوْزُ الصَّلٰوةُ"

جواب! مصنفؒ غالب ته کتلی دی۔ ولی چه مکروه ډیر دی تر ناجائز۔ او بل دا چه کراهت په معنی لغوی عدم الجواز ته هم شامل دی یعنی بد کار کول۔

## لَا تَجُوْزُ الصَّلٰوةُ عِنْدَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ وَلَا عِنْدَ

نه ځی لمونځ روا نه دی په وخت کی د راختلو د لمر او نه په وخت کی د دریدو

## قِيَامِهَا فِی الظَّهِيْرَةِ وَلَا عِنْدَ غُرُوْبِهَا اِلَّا عَصْرَ يَوْمِهٖ

د لمر پر سر په غرمه کی۔ او نه په وخت د لویدو د لمر کی مګر د عصر د هغی ورځی د مازدیګر لمونځ

په حدیث کی د عقبه بن عامرؓ چه صحیح کتابونو کی روایت کړی دی دا سی راغلی دی "قَالَ ثَلٰثَةُ اَوْقَاتٍ نَهَانَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ نُصَلِّیَ وَاَنْ نَقْبُرَ فِيْهَا مَوْتَانَا عِنْدَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ حَتّٰی تَرْتَفِعَ وَعِنْدَ زَوَالِهَا حَتّٰی تَزُوْلَ وَحِيْنَ تَضَيَّفُ لِلْغُرُوْبِ حَتّٰی تَغْرُبَ"

ترجمه! دری وخته دی چه نهی کړی یو موږ رسول الله صلی الله علیه وسلم چه موږ لمونځ پکښی وکړو او یا موږ په قبر کی ښخ کړو مړی خپل۔ یعنی چه د جنازی لمونځ پکښی کوو۔ هغه په وخت کی د راختلو د لمر ترڅو چه بره راپورته کیږی۔ او په وخت کی پر سر د دریدو د لمر ترڅو چه زوال کوی او هغه وخت چه میلان سی د لویدو ترڅو چه لویږی۔

وَلَا يُصَلِّى عَلَى الْجَنَازَةِ وَلَا يَسْجُدُ لِلتِّلَاوَةِ

او لمونځ دې نه کوي پر جنازه او سجده د تلاوت دې هم نه کوي. که څه آیت د سجدې ئې په دغه وخت کې نه وو

وَيُكْرَهُ أَنْ يَتَنَفَّلَ بَعْدَ صَلٰوةِ الْفَجْرِ حَتّٰى تَطْلُعَ

او مکروه دي چه نفل وکړي پس د سحار د لمانځه تر هغو چه راخیژي لمر د دوو نیزو یا دري نیزو قدر

الشَّمْسُ وَبَعْدَ صَلٰوةِ الْعَصْرِ حَتّٰى تَغْرُبَ الشَّمْسُ

او پس د ماز دیگر د مازدیگر د لمانځه تر هغو چه لمر لوېږي.

وَلَا بَأْسَ بِأَنْ يُّصَلِّىَ فِىْ هٰذَيْنِ الْوَقْتَيْنِ الْفَوَائِتَ

او باک نشته چه په دې دوو وختو کښې اداء کړي قضا ئي لمونځونه

وَسَجْدَةَ التِّلَاوَةِ وَيُصَلِّىْ عَلَى الْجَنَازَةِ وَلَا يُصَلِّىْ رَكْعَتَيِ الطَّوَافِ

او یا سجده د تلاوت او لمونځ دې کوي پر جنازه او نه دې کذاري دوه رکعته د طواف په دې دوه وختو کې

مسئله: انذري لمونځ دې هم په دغو دوو وختو کې نه کوي. او د طواف واجب دې هم نه پکښې کذاري.

وَلَا يَتَنَفَّلُ بَعْدَ طُلُوْعِ الْفَجْرِ بِأَكْثَرَ مِنْ رَكْعَتَيِ

او نفل دې نه کوي پس له سپیده چاود لو څخه بالا تر دوه رکعته د سحار. یعنې سنت

الْفَجْرِ وَلَا يَتَنَفَّلُ قَبْلَ الْمَغْرِبِ

او نفل دې نه کوي د مخه د ماښام تر لمانځه

---

د مذهب محدثان وائي لکه فقیه ابو جعفر الطحاوي په شرح معاني الآثار کې وائي چه دا نفل د ماښام تر لمانځه د مخه په ابتداء کې د اسلام په مدینه منوره کې کیدل او بیا آنحضرت صلعم منع ځنې وکړه. فهو منسوخ.

# بَابُ النَّوَافِلِ

باب دی په بیان کې د نفلي لمونځو

پوهه سه! چه د نفل معنی زائد تر فرضو او واجبو نو سنت هم پکښې داخل دی. نو هر سنت نفل دی او هر نفل سنت نه دی. کوکب دری ص ۳۳

فائده! په صحیح حدیث شریف کې راغلي دي چه آنحضرت صلی الله علیه وسلم وائي «مَنْ ثَابَرَ (ای واظب) عَلٰی اِثْنَیْ عَشَرَ رَکْعَةً فِي الیوم واللیل بنی الله لَهٗ بَیْتًا فِي الْجَنَّةِ رکعتین قَبْلَ الْفَجْرِ واربع رکعاتٍ قَبْلَ الظهر ورکعتین بعدها ورکعتین بعدَ المغرب ورکعتین بعد العشاءِ»

ترجمه! کم چا همیشه توب وکړې په دوولس رکعاتو په ورځ او شپه کې خدای پاک به جوړ کړي ورته ماڼۍ په جنت کې او هغه دا دي! دوه رکعته د سحار ترلمانځه د مخه او څلور رکعته د ماپښین ترلمانځه د مخه او دوه رکعته وروسته تردې لمانځه. او دوه رکعته ترماښام وروسته او دوه رکعته ترماخستن وروسته. همدغه حدیث دلیل دی د راتلونکي بیان د مصنف.

## اَلسُّنَّةُ فِي الصَّلٰوةِ اَنْ يُّصَلِّيَ رَكْعَتَيْنِ بَعْدَ طُلُوْعِ الْفَجْرِ

سنت په لمانځه کې دا دي چه کذاري دی دوه رکعته د سپیدو تر راختو وروسته: شروع ئې په بیان د سنتو وکړه. ولې چه سنت تر نفلو افضل دی.

## وَاَرْبَعًا قَبْلَ الظُّهْرِ وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَهَا وَاَرْبَعًا

او څلور رکعته دي کذاري د ماپښین ترلمانځه د مخه. او دوه رکعته وروسته ترماپښین. او څلور رکعته

## قَبْلَ الْعَصْرِ وَاِنْ شَاءَ رَكْعَتَيْنِ وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْمَغْرِبِ

د مازدیګر ترلمانځه د مخه او که خوښه سې دوه رکعته دې وکړي او دوه رکعته د ماښام ترلمانځه وروسته

پوهه سه! چه دا څلور یا دوه رکعته د مازدیګر مستحب دي.

وَ اَرْبَعًا قَبْلَ الْعِشَاءِ وَاَرْبَعًا بَعْدَهَا وَاِنْ

او څلور رکعته دی د ماخستن تر لمانځه د مخه وکړي او څلور رکعته وروسته تر لمانځه د

شَاءَ صَلّٰی رَكْعَتَيْنِ

ماخستن او کی خوښه وی دوه رکعته دی وکړی (د مخه څلور رکعته مستحب دی. دا دوه تینګ سنت دي)

وَنَوَافِلُ النَّهَارِ اِنْ شَاءَ صَلّٰی رَكْعَتَيْنِ بِتَسْلِيْمَةٍ وَّاحِدَةٍ

او نفل د ورځی کی خوښه وی دوه رکعته دی وکړی په یوه سلام سره

وَاِنْ شَاءَ اَرْبَعًا وَيُكْرَهُ الزِّيَادَةُ عَلٰی ذٰلِكَ

او کی خوښه وی څلور رکعته دی وکړي او مکروه دی زیادت پر څلور باندی

فَاَمَّا نَوَافِلُ اللَّيْلِ فَقَالَ اَبُوْحَنِيْفَةَ اِنْ صَلّٰی ثَمَانِيَ

او هرچه نفل د شپې دی پس ویلی دی امام اعظم کی وکړه اته رکعته

رَكَعَاتٍ بِتَسْلِيْمَةٍ وَّاحِدَةٍ جَازَ وَيُكْرَهُ الزِّيَادَةُ عَلٰی

په یوه سلام سره روا دی (یعنی بیله کراهته) او مکروه دی بالا بوده پر اته

ذٰلِكَ وَقَالَ اَبُوْيُوْسُفَ وَمُحَمَّدٌ لَا يَزِيْدُ عَلٰی رَكْعَتَيْنِ

رکعته باندی. او ویلی دی امام ابویوسف او امام محمد بالا بوده دی نه کوی پر دوه

بِتَسْلِيْمَةٍ وَّاحِدَةٍ بِاللَّيْلِ

رکعته په یوه سلام سره د شپې (یعنی دوه رکعته افضل دی)

فتوی! په نزد د امام اعظم څلور رکعته نفل دی په یوه سلام سره د شپې او د ورځی کوی. او په نزد د یارانو افضل څلور رکعته په یوه سلام سره د ورځی او دوه رکعته په یوه سلام سره د شپې دی. کوکب ص۳۳

## وَالْقِرَائَةُ فِي الْفَرَائِضِ وَاجِبَةٌ فِي الرَّكْعَتَيْنِ الْاُوْلَيَيْنِ

او قرائت ویل په فرض لمونځو کی واجب دی په دوو اولو رکعتو کے

یو مسئله! چه مراد د واجب نه فرض عملي دی۔ او دا امام زموږ مذهب دی او امام شافعيؒ قرائت په ټولو رکعتو کے فرض بولی۔ او امام مالکؒ په درې رکعته کی فرض بولی۔ او حسن بصریؒ په یوه کی فرض بولی۔

## وَهُوَ مُخَيَّرٌ فِي الرَّكْعَتَيْنِ الْاُخْرَيَيْنِ اِنْ شَاءَ قَرَءَ

او دی اختیار لری په دوو اخیرو رکعتو کښی خو سره وی الحمد لله دی

## الْفَاتِحَةَ وَاِنْ شَاءَ سَكَتَ وَاِنْ شَاءَ سَبَّحَ

و وائی او که غواړی نو ساکت یعنی چپ خوله دی و درېږي۔ او که غواړی نو سبحان الله دی و وائی۔ لکن الحمد لله ویل بهتر دی۔

## وَالْقِرَاءَةُ وَاجِبَةٌ فِي جَمِيْعِ رَكَعَاتِ النَّفْلِ وَجَمِيْعِ رَكَعَاتِ الْوِتْرِ

او قرائت واجب دی په ټولو رکعتو کی د نفلی لمانځه او په ټولو رکعتو کی د وتر و۔

## وَمَنْ دَخَلَ فِي صَلٰوةِ النَّفْلِ ثُمَّ اَفْسَدَهَا قَضَاهَا

که څوک داخل سو یعنی شروع ئی وکړه په نفلی لمانځه کی او بیا ئی فاسد کړه قضاء دی ئی راوړی۔ او امام شافعيؒ وائی قضائی نسته۔

مسئله! دا حکم هلته دی چه قصداً داخل سی او که سهواً و بیا قضاء نسته۔ لکه یو سړی چه څلور رکعات لمونځ پوره کړه او سهواً پنځم رکعت ته ولاړ سی نو ئی بیا د سی نو هغه فاسد کړی قضائی نسته۔ فتح۔

مسئله! که چا څلور رکعتو نیت وکړی او دوه رکعته ئی وکړه نو ئی پریښودل هغه قضا پری نسته۔

## فَاِنْ صَلّٰى اَرْبَعَ رَكَعَاتٍ وَقَعَدَ فِي الْاُوْلَيَيْنِ

که چا څلور رکعته کوله نو د ما بین په نا سته کی کښینستی۔ (یعنی په دوو اولو کی)

## ثُمَّ اَفْسَدَ الْاُخْرَيَيْنِ قَضٰى رَكْعَتَيْنِ

او فاسدې کړې آخر دوه. نو قضاء دې دوه رکعتو راوړي. ولې چه اول دوه رکعته دا بين په ناسته پوره سو

## وَيُصَلِّى النَّافِلَةَ قَاعِدًا مَعَ الْقُدْرَةِ عَلَى الْقِيَامِ

او کذا روي دي نفلي لمونځ په ناستې سره د قدرت سره پر ولاړې باندې.

ولې چه دروازه د نفلو فراخه ده. لکن ثواب ئې پر نیمائي د ولاړي د لمانځ دي

اوکه په عذر وو ثواب ئې پوره دي.

## وَاِنِ افْتَتَحَهَا قَائِمًا ثُمَّ قَعَدَ مِنْ غَيْرِ عُذْرٍ

او که شروع کړې نفلي لمونځ په ولاړې بیا وروسته ئې په ناسته پوره کړې بیله عذره

## جَازَ عِنْدَ اَبِىْ حَنِيْفَةَ وَقَالَا لَا يَجُوْزُ اِلَّا مِنْ عُذْرٍ

روا دي په نزد د امام اعظمؒ او یاران وائي نه دي روا دغسې نفل مګر د عذر له سببه.

دلیل د امام اعظمؒ دا دي چه ولاړه په نفلو کې فرض نه ده. نو کول او نه کول

ئې برابر دي ابتداءً او انتهاءً.

## وَمَنْ كَانَ خَارِجَ الْمِصْرِ يَتَنَفَّلُ عَلٰى دَابَّتِهٖ

او که څوک تر ښار یعني آبادي د باندې وو نفل دې کوي پر بې دا هر بوده

## اِلٰى اَىِّ جِهَةٍ تَوَجَّهَتْ دَابَّتُهٗ يُوْمِىْ اِيْمَاءً

چه وي. او وهر طرفته چه دبوده مخ وي اګر څه پر قبله وي که نه وي اشاره دې کوي په اشاره کولو سره.

مسئله! شیخ عبدالحق دهلویؒ په مدارج النبوة کې وائي چه په وخت د تحریمې

دې مخ د بوده و قبله ته کړي. والله اعلم بالصواب!

د مولیش وائي چه متون د فقهي شریفي او شروحو هیڅ یو دا قید چه شیخ عبدالحقؒ راوړي دی نه دی

راوړي بلکه د ټولو عبارتو لکه د قدوري مطلق دي لکه چه ستا و مخ ته عبارت د قدوري موجود دی

# بَابُ سُجُودِ السَّهْوِ

باب دی په بیان کی د احکامو د سجده سهوی

## سُجُودُ السَّهْوِ وَاجِبٌ فِي الزِّيَادَةِ وَ النُّقْصَانِ بَعْدَ السَّلَامِ

سجده سهوه لازمه ده په زیاتوب او په نقصان کی پس له سلامه

یوه مسئله! چه سجده سهوه واجبه ده پر صحیح د مذهبو۔ لکن د امام اعظمؒ په نزد مطلقاً پس له سلامه ځنه یعنی که زیادت سوئ وی او که نقصان وی۔ او د امام شافعیؒ په نزد مطلقاً تر سلام دمخه ده۔ او د امام مالک په نزد که د نقصان ځنه وه مخ قبل السلام ده او که د زیاتوب ځنه وه مخ بعد السلام ده۔

فائدة! دا اختلاف په اولویت کی دئ یعنی چه ښه کوم خوا ده۔ ــ او خود وارې دی۔ یعنی قبل السلام و بعد السلام په اتفاق د مذهبو۔ ولی چه په دواړو طرفو کی صحیح حدیث موجود دی په شپږو کتابو د حدیثو کی۔

مسئله مهمه! په بعضی کتابو د فقهی شریفی کی وائی که سهوه سوی سړی یواړی لموځ کاوه نو تر سجده سهوی دمخه دی پر دواړو طرفو سلام وګرځوی۔ او که امام وو نو پر یوه طرف دی سلام وګرځوی۔ ولی ښایده چه مخه مقتدیان چه اول د لمانځه ځنی نیی سوئ وی ولاړ نه سی ویا ته رکعتونه۔ لکن په فتاوی قاسمیه کی په حواله د نورو فتاوو او چه منفرد دی هم پر یوه طرف سلام ګرځوی حتی وائی کی پر دواړه طرفه سلام وګرځاوه د لمانځه ځنه خارج سو۔ بیا سجده سهوه نه سی کولائ۔ و الله اعلم بالصواب۔

## يَسْجُدُ سَجْدَتَيْنِ ثُمَّ يَتَشَهَّدُ وَ يُسَلِّمُ

دوې سجدې دی وکړی او بیا دی التحیات و وائی او سلام دی وګرځوی۔

مسئله! خوک وائی چه په دغه ناسته کی فقط التحیات دی و وائی۔ لکن احتیاط دادئ چه "اللهم صل" دی هم و وائی۔ او په دوهمه ناسته کی دی التحیات۔ درود او اللهم ربنا، تول و وائی۔ کوکب دری ص٣٣

## وَيَلْزَمُهُ سُجُودُ السَّهْوِ إِذَا زَادَ فِي صَلٰوتِهِ فِعْلًا

او لازم میږي سجده سهوه چه زیادت کړي په لمانځه کې یو کار چه د جنسه څخه د لمانځه

## مِنْ جِنْسِهَا لَيْسَ مِنْهَا أَوْ تَرَكَ فِعْلًا مَسْنُونًا

څخه وي لکن په دې ځای کې نه وي (مثلاً لکه په اوله ناسته کې درود ووائي یا نور) او یا ئې پرېښود سنت فعل.

مسئله: په اوله ناسته کې که ئې دومره بالا بود وکړه چه "اللهم صلی علی محمد"، سجده سهوه پرې لازمه ده. یا ئې مثلاً درې سجدې وکړې.

فائده: سجده سهوه اصلاً یا په پرېښودلو د واجب لازمېږي. او یا په ځنډولو د فرضو. نو د زیادت په صورت کې حتماً تاخیر د رکن لازمېږي. ښه غور وکړه.

پوهه سه: چه مراد د مصنف د سنت څخه واجب دی لکن چونکه اثبات ئې په سنت نبوي سوی دی نو ئې سنت وباله. هدایه ص۱۴۰

## أَوْ تَرَكَ الْفَاتِحَةَ الْكِتَابِ أَوِ الْقُنُوتَ أَوِ التَّشَهُّدَ

او یا ئې ترک کړه الحمد لله شریف (ولې چه هغه هم په نزد واجبه ده) او یا ئې پرېښود دعاء قنوت

## أَوْ تَكْبِيرَاتِ الْعِيدَيْنِ

او یا ئې پرېښوده التحیات (په اخیره ناسته کې) او یا ئې پرېښودل تکبیرونه د دواړو اخترو د لمانځه. ولې چه دا ټول شیان واجب دي.

## أَوْ جَهَرَ الْإِمَامُ فِيمَا يُخَافِتُ

او یا ئې په زوره قرائت ووایه امام په هغه لمانځه کې چه د پټې خولې لمونځ وي. لکه د ماپښین او د مازدیګر لونځ. ولې چه مخافت په دغو لمونځو کې واجب دی.

## أَوْ خَافَتَ فِيمَا يُجْهَرُ

او یا کراره قرائت ووائي امام په هغو لمونځو کې چه جهر پکښې کیږي. لکه سحار، ماخستن، ماښام. ولې چه په دغو لمونځو کې پر امام جهر لازم دی.

فائده! د امام د قید څخه دا سی معلومیږي چه پر منفرد باندی سجده سهوه نشته په دواړه صورتو کی۔ هدایه ص۱۴۱

مسئله! الن جهر یا اخفاء سجده سهوه نه لازمه وی۔ ولی چه لن د قدرت څخه خارج دی۔ او مقدار د کثیر په نزد د امام اعظم یو آیت دی۔ او په نزد د یاړانو دری آیاتونه دی۔

**وَسَهْوُ الْإِمَامِ يُوجِبُ عَلَى الْمُؤْتَمِّ السُّجُودَ**

او د امام سهوه واجبوی پر مقتدی باندی سجده۔ ولی چه دی تابع د امام دی۔

**فَإِنْ لَمْ يَسْجُدِ الْإِمَامُ لَمْ يَسْجُدِ الْمُؤْتَمُّ**

پس که سجده سهوه امام نه وکړه مقتدی دی هم یواځی نه کوی (ولی د امام څخه مخالفت نه دی روا۔ جوهره)

**فَإِنْ سَهَى الْمُؤْتَمُّ لَمْ يَلْزَمِ الْإِمَامَ وَلَا الْمُؤْتَمَّ السُّجُودُ**

او که مقتدی سهوه سو نو نه ده لازمه پر امام او نه پر مقتدی سجده سهوه۔ ولی که امام سجده وکړی اصل تبع سو او که مقتدی وکړی یواځی نو مخالفت د امام لازمیږی۔

**وَمَنْ سَهَى عَنِ الْقَعْدَةِ الْأُولَى ثُمَّ تَذَكَّرَ وَهُوَ إِلَى**

او که سهوه سو یو لموځ کوونکی د اولی ناستی څخه او بیا وره پیاد سو۔ او دی و ناستی ته

**حَالِ الْقُعُودِ أَقْرَبُ عَادَ فَجَلَسَ وَتَشَهَّدَ**

نژدې وو۔ نو را و دی ګرځی و ناستی ته۔ پس کښینی دی او التحیات دی و وائی۔

یعنی پر ده سجده سهوه نشته۔ هدایه ص۱۴۱

**وَإِنْ كَانَ إِلَى حَالِ الْقِيَامِ أَقْرَبُ لَمْ يَعُدْ وَسَجَدَ لِلسَّهْوِ**

او که چیری و حال ته د ولاړی نژدې وو نو نه دی را ګرځی او سجده سهوه دی وکړی۔

مسئله! که چیری په دغه صورت کی راوګرځیدی یا ولاړ سوی وو بیائی پیاد سویو چا فتحه ورکړه۔ که امام وو او و ناستی ته راوګرځیدی ډیر کتابونه د فقهی شریفی وائی چه لموځ ئی فاسد سو ولی چه فرض ئی چه ولاړه ده د یاره د واجب ئی چه ناسته ده پریښوده۔ وبه افتی۔

## وَاِنْ سَهٰى عَنِ الْقَعْدَةِ الْاٰخِيْرَةِ فَقَامَ اِلَى

اوكه څوک سهوه سو د اخيرې ناستې څخه او ولاړ سو و پنځم ركعت ته

## الْخَامِسَةِ رَجَعَ اِلَى الْقَعْدَةِ مَالَمْ يَسْجُدْ

بيرته دې راوګرځي و ناستې ته ترهغو چه سجده ئې د پنځم ركعت د پاره نه وي

## لِلْخَامِسَةِ اَلْغٰى الْخَامِسَةَ وَسَجَدَ لِلسَّهْوِ

كړې. او لغوه دې كړي پنځم ركعت او سجده سهوه دې وكړي.

فائده: دا مسئله خاص د پنځم ركعت په ولاړيدو پورې نه ده. بلكه كه د سهوا په لمانځه كې و دريم ركعت ته ولاړ سو يا د ماښام په لمانځه كې څلرم ركعت ته ولاړ سو. همدا غه ئې حكم دئ د راګرځيدو. او د پنځم ركعت د لغوكيدو دليل دا دئ چه په دغه سره د سرې لمونځ د بطلان څخه خلاصيږي او سجده سهوه دې په دې سبب كوي چه اخيره ناسته ئې وځنډول.

## وَاِنْ قَيَّدَ الْخَامِسَةَ بِسَجْدَةٍ بَطَلَ فَرْضُهٗ وَتَحَوَّلَتْ صَلٰوتُهٗ نَفْلًا

اوكه بند كې پنځم ركعت په سجده سره (يعني د پنځم ركعت سجده ئې وكړه) نو فرض ئې باطل سو او وګرځيدئ لمونځ ئې نفل. مسئله: اوچه د رفع تندې پر حكم كښينږ دې پنځم ركعت مقيد سو.

## وَكَانَ عَلَيْهِ اَنْ يَضُمَّ اِلَيْهَا رَكْعَةً سَادِسَةً

او لازم ده پر ده باندې دا چه شپږم ركعت ورجوت كړي (ولې چه نفل تاك نسته)

## وَاِنْ قَعَدَ فِى الرَّابِعَةِ قَدْرَ التَّشَهُّدِ ثُمَّ قَامَ وَلَمْ

او كه چيرې كښينستئ په څلرم ركعت كې پر قدر د التحيات او بيا ولاړ سو (يعني پنځم ركعت ته)

## يُسَلِّمْ يَظُنُّهَا الْقَعْدَةَ الْاُوْلٰى عَادَ اِلَى الْقُعُوْدِ

او سلام ئې ونه ګرځاوه (يعني سهوا) په ګمان د دې چه دا اوله ناسته ده. راو دې ګرځي و ناستې ته.

**مَالَمْ يَسْجُدْ لِلْخَامِسَةِ وَيُسَلِّمُ وَيَسْجُدُ لِلسَّهْوِ**

تر هغو چې سجده ئې نه وي کړې د پاره د پنځم رکعت۔ او سلام دې وګرځوي (ولې چې سلام ګرځول په ولاړه مشروع نه دي) او سجده د سهوه دې وکړي۔

**وَإِنْ قَيَّدَ الْخَامِسَةَ بِسَجْدَةٍ ضَمَّ إِلَيْهَا رَكْعَةً أُخْرَى**

او که مقید کړي پنځم رکعت په سجده سره نو دې ورجوت کړي یو بل رکعت۔

**وَقَدْ تَمَّتْ صَلٰوتُهُ وَالرَّكْعَتَانِ نَافِلَةٌ وَيَسْجُدُ لِلسَّهْوِ**

او لمونځ دده تمام سو او دوه رکعته نفل سوه او سجده دې وکړي د پاره د سهوې۔

فائده! د دې سجدې وجه دا ده چې په فرض لمانځه کې نقصان راغئ ولې چې پر سنت طریقه خارج نه سو۔ او په نفلو کې هم نقصان راغئ ولې چې پر وجه مسنونه نه سو پر کې داخل۔ هدایه ص۱۴۲

مسئله! دغه دوه رکعته د سنتو د ماپسین پر ځای نه درېږي۔ ولې چې هغه سنت تحریمه قصدي غواړي ص۱۴۲ هدایه

مسئله! که پنځم رکعت ترئې سجده وکړه او بیائې پرېښوده یعنې شپږم رکعت ئې نه کړئ ورضم او سلام ئې وګرځاوئ د دې دوو رکعتو نفلو په سبب د شروع قضاء پرې نشته ولې چې دا شروع قصدي نه ده ص۱۴۲ هدایه

**وَمَنْ شَكَّ فِي صَلٰوتِهٖ فَلَمْ يَدْرِ أَثَلَاثًا صَلّٰى أَمْ أَرْبَعًا**

او که څوک شک سو په لمانځه کې پس دده ته نه معلومیده چې درې رکعته مې وکړه او که څلور۔

**وَكَانَ ذٰلِكَ أَوَّلَ مَا عَرَضَ اِسْتَأْنَفَ الصَّلٰوةَ**

او دا اول شک و وچه وده ته پیښ سو۔ د سره دې راوګرځوي لمونځ۔

ولې چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم په داغسې صورت کې داسې وائي «فَلْيَسْتَقْبِلِ الصَّلٰوةَ»۔

یو سوال! چه معنی د اول شک دا نه ده چه دده په عمر کی د اول شک وو او دا هم نه ده چه په دغه لمانځه کی د اول شک وو. بلکه معنی د اول شک دا ده چه شک دده عادت نه وی. یعنی ډیر ډیر نه وو وه پیښ سوی.

## وَاِنْ كَانَ الشَّكُّ يَعْرِضُ لَهٗ كَثِيْرًا بَنٰى عَلٰى غَالِبِ ظَنِّهٖ اِنْ كَانَ لَهٗ ظَنٌّ

او که چیری ده ته داشک ډیر پیښیدئ. نو بناء دی وکړی پر غالب گمان که چیری د ده د یاره گمان وی (یعنی یو طرف ئی پر بل طرف غالب وی)

رسول الله صلی الله علیه وسلم په صحیح حدیث کی وائی "مَنْ شَكَّ فِيْ صَلٰوتِهٖ فَلْيَتَحَرَّ الصَّوَابَ" ترجمه: که څوک شک سو په لمانځه کی پس فکر دی وو هی په حق کی.

## وَاِنْ لَّمْ يَكُنْ لَهٗ ظَنٌّ بَنٰى عَلَى الْيَقِيْنِ

او که ده لره نه وو غالب گمان پر یو خوا باندی پس بناء دی وکړی پر یقین باندی.

یعنی که په دوو او دریو کی شک وو. دوه یقین دی دوو څخه دی شروع کړی. او که په دریو او څلورو کی شک وو دری یقین دی. دریو څخه دی شروع کړی. ولی که عدد خو یقینی دی.

مسئله: چه ده بناء پر یقین وکړه چه هغه اقل عدد دئ نو پر هغه ځای دی کښینی او التحیات دی و وائی چه تو هم او خیال د اخیری ناستی پری کیږی د پاره د احتیاط چه اخیره ناسته پاته نه سی. کذا فی الهدایه ص۱۳۸ وعلیه الفتوی. او سجده سهوه نسته باندی.

کاتب مولوی عبدالباری غفرله الباری

اللّٰهم اغفر لکاتبه ولمؤلفه ولناشره ولاٰبائهم ولاجدادهم ولاقربائهم ولجمیع المؤمنین والمؤمنات آمین

# باب صلوة المريض

قاعده ۱۳

باب دی په بیان کی د احکامو د لمانځه د ناجوړی

## إذا تعذّر على المريض القيام صلّى قاعدًا يركع ويسجد

کړ سخته وه پر ناجوړي باندي ولاړه لمونځ دی کوی په ناسته او رکوع او سجده دی کوی۔

مسئله! د ولاړی په سخت والی او تکلیف کی ډیر اختلاف دی۔ خو صحیح دا ده چه وده ته په ولاړه کی ضرر رسیږی۔ مثلاً یا ئی سر پرله ګرځی او غورځیږی۔ او یا ئی ورته تبه ئی خرابیږی۔ یا ئی درد زیاتیږی او یا نوره د غه قسم څه۔

فائده! اعتبار د لمونځ ګذاره غالب ګمان لره دی۔

مسئله! بعضی عوام د لږ ناجوړی څخه هم لمونځ په ناسته کوی۔ نو فرضی لمونځ خو نه دی روا۔ نفل او یا سنت روا دی۔

## فإن لم يستطع الركوع والسجود أومى إيماءً

او که طاقت نه درلودی د رکوع او سجدې (که څه هم د ولاړی قدرت لری) نو لمونځ دی په

## وجعل السجود أخفض من الركوع

اشاره کوی۔ او ګرځوی دی سجده لږ کښته تر رکوع۔

مسئله! د اشاری لمونځ به په ناستی وی په ولاړی اشاره نه ده روا۔ کوکب دری ص

مسئله! که په سجده کی سر تر رکوع کښته نه کړی لمونځ ئی نه دی روا۔

پوښتنه! چه د ناستی په لمانځه سره او د اشاری په لمانځه سره صریح حدیث صحیح په روایت د عمران بن حصین رض چه نسائی روایت کړی دی راغلی دی۔

## ولا يرفع إلى وجهه شيء يسجد عليه

او نه دی پورته کوی وخته دده یو شی لکه بالښت وغیره۔ تا چه دی سجده پری وکړی۔

رسول کریم صلی الله علیه و سلم فرمائی «اِنْ قَدَرْتَ اَنْ تَسْجُدَ عَلَی الْاَرْضِ فَاسْجُدْ وَاِلَّا فَاَوْمِ بِرَاْسِكَ» کوکب دری ص۳۵۔

یعنی که دی قدرت درلودی چه سجده وکړې پر ځمکه پس سجده وکړه او که قدرت نه وو پس اشاره کوه په سر سره۔

**فَاِنْ لَّمْ يَسْتَطِعِ الْقُعُوْدَ اِسْتَلْقٰى عَلٰى قَفَاهُ**

او که طاقت نه وو د ناستی پس پروت دی پر شا باندی (یعنی ستنی ستغ)

**وَجَعَلَ رِجْلَيْهِ اِلَى الْقِبْلَةِ وَاَوْمٰى بِالرُّكُوْعِ وَالسُّجُوْدِ**

او ودی ګرځوی پښې خپلی طرفته د قبلې او اشاره دی کوی په رکوع او سجده سره

**وَاِنِ اضْطَجَعَ عَلٰى جَنْبِهٖ وَوَجْهُهٗ اِلَى الْقِبْلَةِ وَاَوْمٰى**

او که چیری پر بغل پریوزی او مخ وقبلې ته کړی او اشاره کوی نو دا هم

**جَازَ وَاِنْ لَّمْ يَسْتَطِعِ الْاِيْمَاءَ بِرَاْسِهٖ اُخِّرَ الصَّلٰوةُ**

روا دی او کې قدرت پر اشاره نه درلودی په سر سره نو لمونځ ځنډیږی

**وَلَا يُوْمِیْ بِعَيْنِهٖ وَلَا بِحَاجِبَيْهِ وَلَا بِقَلْبِهٖ**

د دغه ځنډه (تر وخته د صحت) او اشاره دی نه کوی په سترګو او نه په وروځو او نه په زړه۔

تنبیه! لمونځ ځونی مهم شی دی چه تردغی اندازې پورې ئی اداء کول لازم دی۔ نو افسوس صد افسوس پر حال د هغو کسانو چه په صورت جوړ بیا روی او لمونځ نه کوی۔

نمونه د کهران افغانستان خلک تر انقلاب ثور د مخه (۸۰) (فی صد) لمونځ ګزاره وو۔ څه وخت چه بې دینه انقلاب راغئ او خلقیان او پرچمیان بنکاره او د قدرت خاوندان سوه هغو خو هیڅ لمونځ نه پیژندی بلکه عموما ځنی منکر وه بیا د انقلاب له کبله بعض د افغانستان خلک امریکې ته او بعضی جرمنی ته او بعضی لندن ته او بعضی پرانسې ته مهاجر سوله۔ د کفارو د وطنو مهاجر وهم (۸۰) فی (۱۰۰)

لمونځونه پریښودل. بلکه بعضې کسان خو ښځې په لمانځه پسې خندوي. او بل دا چه ماینې خوندې او لوڼې ئې په آزاده توګه بې حجابه په بازارونو کې د کفارو ګرځي.

واقعه! په قندهار کې یو حاجي صاحب ډیر ښه سړی وو او س مړ دی خدای دې وبښي. زامن ئې په کوټه کې دي او بعضې په امریکا کې دي. د امریکا والو د زامنو ئې واده وو په کوټه کې. نو دا د خولې حکایت دی چه دې واده والا تر یو شناخته چه په کراچۍ کې ئې ویل چه راځه مسجد ته ولاړ سو لمونځ به وکړو نو ده وویل (العیاذ بالله) چه هغه ښځوانه خرتوبې دي لا نه ده پرې اینې. دا یقینا کلمه د کفر ده او په واده کې ئې شپیتر زره کلدارې مسلیانو او شوقیانو ته ورکړي وې. افسوس پر هغو ناموس فروشانو چه د عسی دین فروشانو ته خپلې لوڼې ورکوي په نکاح. البته د روپو په خاطر ئې ورکوي.

فَإِنْ قَدَرَ عَلَى الْقِيَامِ وَلَمْ يَقْدِرْ عَلَى الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ

اوکه لمونځ کونکی قادر وو په ولاړه او قادر نه وو په رکوع او سجده باندې

لَمْ يَلْزَمْهُ الْقِيَامُ وَجَازَ لَهُ أَنْ يُصَلِّيَ قَاعِدًا يُومِئُ إِيْمَاءً

نو نه ده لازم په ده ولاړه او روا ده ده لره چه لمونځ وکړي په ناسته او اشاره دې کوي په رکوع او سجده

## بنهانه فائده!

د دې عبارت څخه د قدوری داسې فهمیږي چه ولاړه لازمه نه ده بلکه روا ده. نو چه لمونځ په ولاړې روا سو نو اشاره هم په ولاړې روا ده. نو هغه چه ما مخه وویل چه اشاره په ولاړې نسته هغه قول د کوکب دري وو.

فَإِنْ صَلَّى الصَّحِيحُ بَعْضَ صَلَاتِهِ قَائِمًا ثُمَّ حَدَثَ

اوکه سړی جوړ وو او بعض لمونځ ئې په ولاړې وکړی وروسته ورته پیښ سو

بِهِ مَرَضٌ أَتَمَّهَا قَاعِدًا يَرْكَعُ وَيَسْجُدُ أَوْ يُومِئُ إِيْمَاءً

مرض نو پوره دې کړي لمونځ په ناستې او رکوع او سجده دې کوي. او یا دې اشاره کوي

إِنْ لَمْ يَسْتَطِعِ الرُّكُوعَ وَالسُّجُودَ اَوْ مُسْتَلْقِيًا إِنْ

که ئې قدرت نه وو د رکوع او سجدې او یا دې ستونی ستغ وکړي که ئې قدرت

لَمْ يَسْتَطِعِ الْقُعُوْدَ وَمَنْ صَلّٰى قَاعِدًا يَرْكَعُ وَيَسْجُدُ

نه وو د ناستې - او که چالمونځ په ناستې کاوه د مرض له سببه او رکوع وسجده

لِمَرَضٍ ثُمَّ صَحَّ بَنٰى عَلٰى صَلٰوتِهٖ قَائِمًا

ئې کوله او بیا جوړ سو (یعنی قدرت ئې پر ولاړې پیدا کړې) بناء دې وکړي پر هغه لمانځه ولاړ

فائده ! دا مذکوره په قدوري کې مذهب د شیخینو رح دئ چه دوئ اقتدار دولاړه سړي په ناست سړي پسې روا بولي ولې چه آنحضرت صلی الله علیه و سلم ناست وو او صحابه رض په ولاړه ئې لمونځ کاوه - بخاري - مسلم - مشکوة -

نو چه اقتداء روا ده نو بناء هم روا ده - په دې کې امام محمد رح مخالف دئ ولې چه اقتداء د قائم په قاعد پسې روا نه بولي -

فَاِنْ صَلّٰى بَعْضَ صَلٰوتِهٖ بِاِيْمَاءٍ ثُمَّ قَدَرَ عَلَى

که یو چا وکړې بعضې لمونځ په اشاره سره او بیا قادر سو پر رکوع او سجده

الرُّكُوْعِ وَالسُّجُوْدِ اِسْتَاْنَفَ الصَّلٰوةَ

بايدی نو لمونځ دی د سره راوګرځوي

یو که سائله ! چه دا مسئله هو بهو د ټولو امامانو رح په اتفاق ده ولې چه اقتداء د راکع او ساجد په اشاره والا سره نه ده روا

وَمَنْ اُغْمِيَ عَلَيْهِ خَمْسُ صَلَوَاتٍ فَمَا دُوْنَهَا قَضَاهَا

او که پر چا بیهوښي راغله پنځه لمانځه یا کم تر پنځه لمونځو د هغو قضا دې راوړي -

اِذَا صَحَّ وَاِنْ فَاتَتْهُ بِالْاِغْمَاءِ اَكْثَرُ مِنْ ذٰلِكَ لَمْ يَقْضِ

چه جوړ سي - او که د چا لمانځه قضا سي د اغماء په سبب بالا تر پنځه لمونځو قضائي نسته -

# بَابُ سُجُودِ التِّلَاوَةِ

باب دئ په بيان کي د سجدې د تلاوت

يعنی هغه سجده چه په سبب د تلاوت د بعضو آياتو د قرآن لازميږی

## فِى الْقُرْاٰنِ اَرْبَعَةَ عَشَرَ سُجْدَةً

په قرآن مبارک کي څوارلس ځايه د سجدې دی.

پوهه سه! چه دا مذهب د حنفيانو دئ - او بعضی علماء ئې پنځلس بولی - او بعضی علماء ئې يوولس بولی چه تفصيل ئې په لويو کتابو کی د فقه دئ.

## سُجْدَةٌ فِى اٰخِرِ الْاَعْرَافِ وَفِى الرَّعْدِ وَفِى النَّحْلِ

يوه سجده په آخر کی د سورة اعراف ده - او په سورة رعد کی - او په سورة نحل کی -

## وَفِى بَنِىْ اِسْرَائِيْلَ وَمَرْيَمَ وَالْاُوْلٰى فِى الْحَجِّ وَالْفُرْقَانِ

او په سورة بنی اسرائيل کی - او په سورة مريم کی - او اول په سورة حج کی - او په سورة

## وَالنَّمْلِ وَالٓمّٓ تَنْزِيْلُ وَصٓ وَحٰمٓ السَّجْدَةِ وَالنَّجْمِ

فرقان کی - او په سورة نمل کی - او په الٓمّٓ تنزيل کی - او په سورة صاد کی - او په

## وَالْاِنْشِقَاقِ وَالْعَلَقِ

سورة حٰمٓ سجده کی او سورة نجم کی او په سورة الانشقاق کی او په سورة علق کی

پوهه سه! چه دا هغه سورتونه دی چه په هغوکی زموږ په مذهب کی سجده سته - امام شافعیؒ په سورة حج کی دوې سجدې وائی حکم مصنفؒ وويل چه اول سجده د سورة حج

## وَالسُّجُوْدُ وَاجِبٌ فِىْ هٰذِهِ الْمَوَاضِعِ عَلَى التَّالِىْ

او سجده واجبه ده په دغو ځايو کی پر و يونکی باندی.

## وَالسَّامِعِ سَوَاءٌ قَصَدَ سَمَاعَ الْقُرْاٰنِ اَوْلَمْ يَقْصُدْ

او پر اورېدونکي باندې خواه قصد داورېدو د قرآن مبارک ئې وي یائې قصد نه وي.

دلیل! آنحضرت صلی الله علیه وسلم فرمائي "السَّجْدَةُ عَلٰى مَنْ سَمِعَهَا وَعَلٰى مَنْ تَلَاهَا" حدیث صحیح. کوکب دری ص۳۶

## فَاِذَا تَلَا الْاِمَامُ اٰيَةَ السَّجْدَةِ سَجَدَهَا وَسَجَدَ الْمَامُوْمُ مَعَهُ

که آیة د سجدې امام ووایه نو امام به سجده کوي او مقتدی به هم سجده کوي سره دده

مسئله! که امام په خفیه لمانځه کې آیة د سجدې ووایه او سجده ئې کوله نو مقتدی تبعًا سجده لازم ده. که څه هم آیة د سجدی خوند دی او اورېدلې. رد. فتح.

## فَاِنْ تَلَا الْمَامُوْمُ لَمْ يَلْزَمِ الْاِمَامَ وَلَا الْمَامُوْمَ

او که مقتدی آیة د سجدې ووایه (که څه مقتدی د قرائت څخه منع دې) نه لازمېږي پر امام او نه پر مقتدی

پوه سه! چه دا مذهب د شیخینو دی. او امام محمد وائي چه ټول به سجده کوي لکن وروسته تر لمانځه. ولې چه سبب د سجدې پیدا سو. او امام اعظم او امام ابو یوسف وائي چه مقتدی چونکه د قرائت څخه ممنوع دی نو دا سبب لکه نه سبب دی.

فائده! زموږ د مذهب درې سره امامان ائمه ثلاثة بولي. او امام ابو یوسف او امام محمد دواړه یاران بولي. او امام اعظم او امام ابو یوسف دواړه شیخین بولي. یعنی سپین ږیري. او امام اعظم او امام محمد دواړه طرفین بولي یعنی یو سپین ږیری او بل ځوان.

## وَاِنْ سَمِعُوْا وَهُمْ فِیْ صَلٰوةٍ اٰيَةَ سَجْدَةٍ مِنْ رَجُلٍ

او که واورېدې خلکو په داسې حال چه دوی په لمانځه کې وه آیة د سجدې د داسې

## لَيْسَ مَعَهُمْ فِی الصَّلٰوةِ لَمْ يَسْجُدُوْهَا فِی الصَّلٰوةِ

سړي څخه چه هغه نه وو شامل د دوئ سره په لمانځه کې. نو دوی دی سجده نه کوي په لمانځه کې

## وَسَجَدُوْهَا بَعْدَ الصَّلٰوةِ فَاِنْ سَجَدُوْهَا فِي الصَّلٰوةِ

او سجده دې وکړي د هغه آیت لره وروسته تر لمانځه او که سجده وکړه دې آیت لره په لمانځه کې

## لَمْ تُجْزِئْهُمْ وَلَمْ تُفْسِدْ صَلٰوتَهُمْ

هغه سجده کافي نه ده دوی لره او لمونځ د دوی هم نه فاسدیږي۔

چونکه سبب د سجدې چه اوریدل د آیت دی پیدا سو نو ځکه سجده پر لازم سوه او په لمانځه کې په دې سبب نه ده رواچه دا سجده صلاتیه نه ده۔ یعنې آیت د سجدې په لمانځه کې نه دی ویل سوی۔ او لمونځ حکم نه فاسدیږي چه دا سجده د لمانځه د جنس څخه ده۔ او دا هم مذهب د شیخینو دی۔ او فتوی هم پر دغه مذهب ده او امام محمد وائي چه لمونځ ئې فاسد سو۔

## وَمَنْ تَلَا اٰيَةَ سَجْدَةٍ خَارِجَ الصَّلٰوةِ وَلَمْ

او که چا وایه آیت د سجدې د باندې تر لمانځه او سجده ئې نه وکړه د هغه د پاره

## يَسْجُدْ لَهَا حَتّٰى دَخَلَ فِي صَلٰوةٍ فَتَلَاهَا وَ

او بیا پر لمانځه ودریدئ او هغه آیت د سجدې ئې په لمانځه کې بیا وایه او سجده ئې

## سَجَدَ لَهُمَا اَجْزَأَتْهُ السَّجْدَةُ عَنِ التِّلَاوَتَيْنِ

وکړه د دواړو تلاوتو د پاره کافي ده. هغه یوه سجده د دواړو تلاوتو د پاره

پوره سوه ځکه چه دا حکم هلته دئ چه مجلس ئې نه وي بدل کړئ۔ او که مجلس ئې بدل کړئ بیا د وړې سجدې غواړي۔

## وَاِنْ تَلَاهَا فِي غَيْرِ الصَّلٰوةِ فَسَجَدَ لَهَا ثُمَّ

او که چا وایه آیت د سجدې په غیر کې د لمانځه او سجده ئې د هغه د پاره وکړه او بیا داخل سو

**دَخَلَ فِي الصَّلٰوةِ فَتَلَاهَا ثَانِيًا سَجَدَهَا ثَانِيًا**

په لمانځه کې او بیائې هغه آیة د سجدې و وایه نو دوهمه به کوي.

**وَلَمْ تُجْزِئْهُ السَّجْدَةُ الْاُوْلٰى وَمَنْ كَرَّرَ تِلَاوَةَ**

او هغه اوله سجده ئې کفایت نه کوي. او که چا مکرر کړې یو آیة د سجدې په یو

**اٰيَةِ سَجْدَةٍ وَاحِدَةٍ فِي مَجْلِسٍ وَاحِدٍ اَجْزَأَتْهُ سَجْدَةٌ وَاحِدَةٌ**

مجلس کې یعنې درې څلور وارې ئې و وایه) کافي ده هغه سړي لره یوه سجده.

مسئله! که آیات د سجدې دوه درې ئې و ویله پس هغوی سجدې غواړي که څه هم مجلس یو وي.

مسئله! که یو آیة د سجدې په دوه درې ځایه جلا کې و وایه بیا هم مکررې سجدې پرې لازمیږي.

**وَمَنْ اَرَادَ السُّجُوْدَ كَبَّرَ وَلَمْ يَرْفَعْ يَدَيْهِ وَسَجَدَ ثُمَّ**

چه څوک اراده وکړي د سجدهٔ تلاوت الله اکبر دې و وائي او لاسونه دې پورته نه کړي او سجده دې وکړي

**كَبَّرَ وَرَفَعَ رَاْسَهٗ وَلَا تَشَهُّدَ عَلَيْهِ وَلَا سَلَامَ**

او بیا چه سر پورته کوي هم دې الله اکبر و وائي. او التحیات نشته پره او نه سلام کول شته

مسئله! که چا آیة د سجدې په یوه ځای کې و وایه او بیا د هغه ځایه څخه ولاړ شي. او بیرته هغه ځای ته راغلئ او بیائې هغه آیة د سجدې و وایه. نو دوې سجدې به کوي.

مسئله! که یو قاري آیة د سجدې په یوه ځای کې و وایه او سامع و اورېدې او سامع ځای بدل کړي او قاري په هغه مجلس کې بیا هغه آیة د سجدې و وایه. نو پر سامع دوې سجدې او پر قاري یوه سجده ده. هدایه ص ١٤٧

مسئله! که قاري مجلس بدل کړي او سامع په هغه مجلس کې وو چه د هغو و صحیح مذهب دا دی چه پر سامع یوه سجده ده او پر قاري دوې دي. هدایه ص ١٤٧

مسئله! دا مکروه ده چه یو سړی په لمانځه کې یا خارج تر لمانځه نوره سورة وواني او آیة د سجدې پرېږدي - ولې چه په دې کار کې مشابهت د هغه چا سره راځي چه د سجدې څخه انکار کوي - حقیقت انکار خو کفر دی نو مشابهت ئې مکروه دی -

مسئله! که څوک آیة د سجدې واني او نور قران او سورة پرېږدي نو دا مکروه نه دی - ولې چه سجدې ته ئې ځان چمتو کړی - لکن امام محمد رح وائي چه د څه تر آیة د سجدې دی یو یا دوه آیاته ووائي چه د آیة سجدې تفضیل د چا خیال نه سی -

مسئله! په خارج کې د لمانځه کې چا قرآن شریف وایه او خلک موجود وه - آیة د سجدې دې پټ ووائي د پاره د شفقت پر اوریدونکو - هدایه ص۱۷۱

## ښکلی فائده!

په روح البیان کې دا سې راغلی دی که یو چاته سخت کار او مشکل پیښ سي چه د هغه کار کول ورته تکړان وي نو د قرآن شریف څوارلس آیاته د سجدې پر ترتیب او تر هر آیة د سجدې د مخه یو آیة بل دې وواني او د هر آیات سره دې سجده تلاوت کوي - چه پاځي ته وروسته سیدځي - نو دی لاسونه پورته کړي په ډیر عجز دې د هغه مشکل کار حل غواړي د خدای څخه - خدای ئې ورته حل کړي - من تجربات الاولیاء -

متفرق مسئلې د سجدة التلاوة په بار ه کې ۱ سجدة تلاوة په اوقات مکروهو کې نه ده روا لکه لمونځ مکر هغه وخت روا ده چه آیة د سجدې هم په دغه وخت کې وواني - قاضیخان ۲ د سجدۀ تلاوة د عدد په قرآن مبارک کې اختلاف دی زمونږ مذهب دا دی چه آیاتونه د سجدې (۱۴) دی په دغه ترتیب سره چه قدوړی ذکر کړه - او بعضی علماء وائي (۱۱) دی یعنی په مفصل سورتو کې آیة د سجدې سته د دوی په نزد - او اهل مدینه ئې (۱۵) بولي - او امام شافعی په نزد هم (۱۴) دی لکن په سورة ص کې سجده نه وائي او په سورة حج کې دوې سجدې وائي - زمونږ دلیل دا دی چه په مصحف عثمانی رض کې (۱۴) سجدې زمونږ د مذهب پر ترتیب لیکل سوې دي - هدایه ص۱۷۶

# بَابُ صَلٰوةِ الْمُسَافِرِ

باب دی په بیان کې د لمانځه د مسافر

## اَلسَّفَرُ الَّذِیْ یَتَغَیَّرُ بِهِ الْاَحْکَامُ

هغه سفر چه په هغه سره تغیر پیدا کوی حکمونه. (یعنی نکړوشه خورول چه روژه ونه نیسی او څلور رکعته لمونځ دوه رکعته کیږی او دې ته سفر شرعی وائی)

## هُوَ اَنْ یَّقْصُدَ الْاِنْسَانُ مَوْضِعًا بَیْنَهٗ وَبَیْنَ الْمَقْصَدِ

هغه سفر دا دی چه قصد وکړی یو انسان د یو ځائ چه د سړی او د هغه ځائ چه د ده وړ ته قصد وی

## مَسِیْرَةُ ثَلٰثَةِ اَیَّامٍ فَصَاعِدًا بِسَیْرِ الْاِبِلِ وَمَشْیِ الْاَقْدَامِ

لاره د تګ وی د درو ورځو یا بالایه تګ داوښانو او پیاده تګ ایه هغه تګ سره چه میانه وی

یوه مسئله! چه قصد ئې وو ایه ولې چه بیله قصده د سفر چه ټوله دنیا وګرځی مسافر شرعی نه دی. او نفس قصد هم کافی نه دی بلکه عمل د سفر هم غواړی. نو که قصد د سفر وکړی او شروع په سفر ئې نه وکړه مسافر نه دی. کوکب دری صـ۳۷.

مسئله! د درې ورځې ئې وویل. اشاره وده ته ده چه د شپو تګ شرط نه دی. ولې چه شپه د پاره د استراحت ده. په هدایه کی د درې ورځې د درې شپې چه راغلی دی د هغه مطلب دا دی چه سره دا استراحاتو.

مسئله! په سفر کی د ورځې تر ماښامه تګ شرط نه دی. بلکه په ورځ کی وخت د لمانځه دا استراحت د دوډی خوړو لوځنی خارج دی.

حتی چه د فتاوو او په کتابو کی وائی که څوک د اول ځنه د ورځې په تګ شروع وکړی تر ماپښینه پورې نو یوه منزله ته ورسیږی. نو هلته دا استراحت د پاره وا ړوی او شپه تیره کړی او د دوهمه ورځ وده یمه ورځ هم د غسی وکړی. هغه سړی شرعًا مسافر دی. کوکب دری. صـ۳۷

مسئله! په هدایه کې وائي، ولا معتبر بالفراسخ هو الصحیح، لکن اکثر مشائخ
پس دي چه اندازه د فرسخو سره ده - بیا تو اختلاف دی څوک یوویشت فرسخه وائي
څه دا مذهب ضعیف دی - او فتوی په اتلس فرسخه ده - کفایه ج هدایه ص۱۴۸
مسئله! کر یو چا د دریو ورځو مسافه په موټر کې په لس ساعته کې مثلاً یا په
طیاره کې په دوه ساعته کې مثلاً قطع کړه هغه سړی هم مسافر دی - ولې چه په
ن زمانه کې مجتهد نشته چه نوی اجتهاد وکړی - او مخې انی مجتهدینو هغه
مذکوره اندازه کړې دی -

# وَلَا يُعْتَبَرُ السَّيْرُ فِي الْمَاءِ

او اعتبار نشته تګ لره داوبو -

یعنی تګ د وچې پر تګ داوبو نه قیاسیږي - بلکه هر تګ په خپله لاره د سړي وړ ځي
غواړي - مثلاً داوبو لاره د دوو ورځو وه او د وچې لاره د درو ورځو وه - نو
داسړی که داوبو د لارې تلی مسافر نه دی - او که د وچې لارې تلی بیا مسافر دی - حاصل
دا چه په هره لاره سړي تلی د هغې لارې مسافت ته اعتبار دی - ج ص۱۴۸ هدایه -

# وَفَرْضُ الْمُسَافِرِ عِنْدَنَا فِي كُلِّ صَلٰوةٍ رُبَاعِيَّةٍ

او فرض لمونځ د مسافر په نزد زموږ څلور رکعتینو د وه رکعته دي -

# رَكْعَتَانِ وَلَا تَجُوزُ لَهُ الزِّيَادَةُ عَلَيْهِمَا

او نه دی روا د پاره د ده زیاتوب پس د دوه رکعته -

او امام محمد بن ادریس الشافعیؒ وائی چه د مسافر لمونځ څلور رکعته عزیمت
دی او دوه رکعته ئې رخصت دی - نو که مسافر څلور رکعته وکړی زموږ په نزد
ګناه کار دی - او د امام شافعیؒ په نزد څلور رکعته بنه کار دی -
مسئله! د ماښام او سحار په لمانځه کې قصر نشته په اتفاق -
مسئله! په سفر کې که سړی په آرام وی د لمانځه د پاره رواتب سنت دی نه
پریږدی او کچې تلوار وی یا موټر ځنې تلی یار فقاء ځنې خوابدی کیده نو سنت دی
پریږدی - کذافی روایة ابن عمرؓ فی البخاری والترمذی -

فَاِنْ صَلّٰى اَرْبَعًا وَقَدْ قَعَدَ فِى الثَّانِيَةِ مِقْدَارَ التَّشَهُّدِ

نو که مسافر څلور رکعته وکړه او په دوهم رکعت کې په قدر د التحيات کښېنستلې وو۔

اَجْزَأَتْهُ الرَّكْعَتَانِ عَنْ فَرْضِهٖ وَكَانَتِ الْاُخْرَيَانِ لَهٗ نَافِلَةً

نو کافي شوه اول دوه رکعته ئې د فرض لپاره او دوه اخيره رکعته ئې نفل شوه۔

مسئله! دا سړي ګناه ګار دی ولې چه د فرضو سلام ئې وځنډاوی۔

وَاِنْ لَّمْ يَقْعُدْ فِى الثَّانِيَةِ مِقْدَارَ التَّشَهُّدِ بَطَلَتْ صَلٰوتُهٗ

او که نه کښېنستی په دوهم رکعت کې په قدر د التحيات لمونځ ئې باطل شو (ولې چه اخيره ناسته د فرضو باتره شوه)

وَمَنْ خَرَجَ مُسَافِرًا صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ اِذَا فَارَقَ بُيُوْتَ الْمِصْرِ

او څوک وواتی په نيت د سفر نو لمونځ دی دوه رکعته کوي هغه وخت چه ترکوړه ود بنار تير شو او که د قريې څخه مسافر شو بيا چه د قريې ترکوړه وتير شی مسافر دی۔

وَلَا يَزَالُ عَلٰى حُكْمِ السَّفَرِ حَتّٰى يَنْوِىَ الْاِقَامَةَ فِىْ بَلْدَةٍ

او هميشه دی په حکم د سفر دی تر هغو چه نيت د اقامت او پاتې کيدو وکړي په يو ښار يا کلي کې پنځلس

خَمْسَةَ عَشَرَ يَوْمًا فَصَاعِدًا فَيَلْزَمُهُ الْاِتْمَامُ

ورځې يا له دې نه زيات پنځلس ورځې۔ نو پس له نيته په ده پوره کول د لمانځه لازم دی۔ دا زموږ مذهب دی او دا پنځلس ورځې اقامت د عبدالله بن عباس رض او عبدالله بن عمر رض څخه روايت دی۔

مسئله! د عسکرو نيت ته اعتبار نشته بلکه د امير و نيت ته ئې اعتبار دی۔ د غه رنګ د ښځې نيت د اقامت ته اعتبار نشته د ميړه نيت ئې معتبر دی۔ وهکذا مزدور او باداـ

فَاِنْ نَوَى الْاِقَامَةَ اَقَلَّ مِنْ ذٰلِكَ لَمْ يُتِمَّ

پس که نيت وکړي د اوسيدو کم په پنځلس ورځې لمونځ به پوره نه کوي (يعنی دی مسافر دی)

## وَمَنْ دَخَلَ بَلَدًا وَلَمْ يَنْوِ اَنْ يُّقِيْمَ فِيْهِ خَمْسَةَ عَشَرَ

او کڅوک مسافر یو ښار ته ورغلی او نیت ئې نه وو چه زه به پنځلس ورځې دلته اوسیږم۔

## يَوْمًا وَاِنَّمَا يَقُوْلُ غَدًا اَخْرُجُ اَوْ بَعْدَ غَدٍ اَخْرُجُ

بلکه داسې ئې ویل چه زه سبا وزم د دې ځایه څخه یا بل سبا وزم

## حَتّٰى بَقِيَ عَلٰى ذٰلِكَ سِنِيْنَ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ

تر هغو چه باقي پاته وو په دغه قصد باندې کلونه نو لمونځ دې کوي دوه رکعته۔

بيهقي روایت کړې دی په صحیح سند سره چه عبدالله بن عمر رض په آذربیجان کې شپږ میاشتې تیرې کړې او لمونځ ئې دوه رکعته کول۔ او انس رض هم په نیشاپور کې شپږ میاشتې تیرې او قصر ئې کاوه۔

مسئله! هغه موټروانان چه یو ښار ته ئې بار وړې وي۔ او د هغه ځای په بار پسې گرځي چه نن به بار پیدا اسې نو به ځم د دې ښاره صبا به پیدا اسې په دغه کې میاشتې پر تیرې سوې لمونځ به سفریانه کوي یعنې دوه رکعته۔

مسئله! هغه موټر چلونکي چه تر یوه ښاره تر بل ښاره پسان سره یسان چلوي هغه چه خپل ښار ته راغی مقیم دی۔ او چه د ښاره ووتی مسافر دی لمونځ به پوره نه کوي۔

## وَاِذَا دَخَلَ الْعَسْكَرُ اَرْضَ الْحَرْبِ فَنَوَوُا الْاِقَامَةَ

او که داخل سوه عسکر د اسلام وملکې ته د حرب (د کفارو وطن ته) او نیت د اقامت ئې

## خَمْسَةَ عَشَرَ يَوْمًا لَمْ يُتِمُّوا الصَّلٰوةَ

پنځلس ورځې وکړې (ولې چه دوی وطن د کفارو نه وی فتحه کړی په ما بین کې قرار و فرار دی) نو لمونځ دې نه پوره کوي

### د تعجب فتوٰی

چه څه وخت روسانو پر افغانستان یرغل وکړی نو د افغانستان مسلمانان و هجرت ته مجبور سوه عوام هم ملایان هم - څوک پاکستان ته مهاجر سوه او څوک ایران ته۔ او بعضې نور و حملکو ته

او څوک به خیمو کې او څوک به بنارونو کې او څوک به قریو او کلو کې اوسیدل.

څو تنه د افغانستان علماء عموماً برجسته او مدرس علماء وه نو چه بنار او بانډو کې د پاکستان د مساجدو دوی ته بنې بنې ملا ئیګانې پیدا سوې. نو بعضې پاکستانی ملایانو فتوی صادره کړه چه په مهاجر ملا پسې د پاکستانی لمونځ نه دی صحیح. ولې چه په ملائی کې لمونځ پوره کوی او دوی مسافر دی او نیت د اقامت ئې نه دی صحیح کړی هم په کلو کې د پاکستان وی. ولې چه کډې ئې نن وطن آزاد سی پاکستان به پرېږدی وره د وطنه تخته دوی وشړی

د دې ملایانو صاحبانو دا جواب دی! چه پاکستان نن خو الحمد لله دار اسلام دی. په هیڅ توګه مهاجر چه خیانت ونه کړی د وطنه نه شړی. او پاکستان په څو ځله د رادیو د لارې دا اعلان کړی دی، چه افغانی مهاجرین په خپله مرضی افغانستان ته تلای سی جبراً ونه ویستل که دغه ملایان و وائی چه مهاجرین په خپله دا نیت لری چه نن به ځم صبا به ځم. نو جواب دا دی چه داسې ناپوره مهاجر به څوک وی چه دی به دا خیال کوی چه روس غوندې لویه قدرت به په پنځلس ورځو کې شکست خوړی او افغانستان به په پنځلس ورځو کې دار الامان جوړیږی بلکه دا صحیح ده چه ستاسې په افغانستانی ملایانو د پاکستان ملا ئیګانو یا مدرسې نه دی پیښې ولې وجه نه کې پیدا کیږی. نو رازق خدای جل جلاله دی.

## وَإِذَا دَخَلَ الْمُسَافِرُ فِي صَلوٰةِ الْمُقِيمِ مَعَ بَقَاءِ الْوَقْتِ أَتَمَّ الصَّلوٰةَ

او که چیری داخل سو مسافر په لمانځه کې د مقیم یعنی اقتداء ئې پسې وکړه او وخت باقی وو نو لمونځ دې پوره کړی

خواه اول د لمانځه ئې بیولی وی یا اخیر د لمانځه. ولې چه دغه مسافر په سبب د اقتداء په مقیم پسې په ځان متابعت د امام لازم وګرځاوه نو په سبب د متابعت فرض د مسافر څلور رکعته ګرځی لکه په نیت د اقامت چه ګرځی.

## وَإِنْ دَخَلَ مَعَهُ فِي فَائِتَةٍ لَمْ تَجُزْ صَلوٰتُهُ خَلْفَهُ

او که داخل سو مسافر سره د مقیم په قضائی لمانځه کې نو نه ده روا اقتداء یعنی لمونځ د مسافر وروسته ته مقیم. ولې چه د مسافر قضائی لمونځ په متابعت د امام څلور رکعته نه ګرځی.

## وَإِذَا صَلَّى الْمُسَافِرُ بِالْمُقِيمِينَ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ

او که چیری لمونځ ئې وکړ مسافر په مقیمینو سره (امام مسافر وو. مقتدیان مقیمین وه) نو امام دې خپل

## ثُمَّ سَلَّمَ وَ اَتَمَّ الْمُقِيْمُوْنَ صَلٰوتَهُمْ

دوه رکعته لمونځ وکړي او سلام دی وګرځوي. او مقیم خلک دی خپل لمونځ پوره کړي یعنی څلور رکعته دی وکړي

مسئله! مقیم خلک به په خپلو دوو رکعتو کی هیڅ قرائت نه وائی. ولی چه دوی حکما خلف الامام دی. بلکه په قدر دالحمد لله شریفی دی ساکت ودریږی. او که تسبیح وائی هم روا ده.

## وَيُسْتَحَبُّ لَهٗ اَنْ يَّقُوْلَ لَهُمْ اِذَا سَلَّمَ اَتِمُّوْا صَلٰوتَكُمْ فَاِنَّا قَوْمٌ سَفْرٌ

او ښه کار دی چه مسافر امام و وائی مقتدیانو ته چه سلام ئی وګرځاوه چه پوره کړي خپل لمونځو ولی چه موږ قوم مسافر یو

مسئله! داسی وینا دی هغه وخت کوی چه مسافر او مقیم خلک کی پیسی ولاړ وی او که یوازی مسافر وه. نو داسی دی و وائی چه زه مسافر یم. په ابوداؤد او ترمذی کی راغلی دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم چه مکی شریف ته مسافر راغلی وه او مکی والاؤ ته لمونځ وه کړي نو د اعشی نږغ ئی وکړي پس له سلام. ددي نږغ فائده داده چه مقیم خلک پوره سی چه په پاته رکعتو کی قرائت و نه وائی. او که مقتدیان محصور کسان وه نو ښه دا ده چه د مخه تر لمانځه دی دا نږغ وکړي.

## وَاِذَا دَخَلَ الْمُسَافِرُ فِیْ مِصْرِهٖ اَتَمَّ الصَّلٰوةَ وَاِنْ لَّمْ يَنْوِ الْاِقَامَةَ فِيْهِ

او که چیری داخل سو مسافر خپل ښار یعنی وطن ته پوره به کوی لمونځ کی څه هم نیت د اقامت د پنځلسو ورځو نه وی کړي په د غه خپل وطن کی ولی چه خپل وطن د اقامت د پاره متعین دی نو نیت د اقامت ته حاجت نسته.

## وَمَنْ كَانَ لَهٗ وَطَنٌ فَانْتَقَلَ عَنْهُ وَاسْتَوْطَنَ غَيْرَهٗ

او که چا لره و و یو وطن او د هغه وطن څخه بار سو او وطن ئی وګرځاوه بل ځای

## ثُمَّ سَافَرَ فَدَخَلَ وَطَنَهُ الْاَوَّلَ لَمْ يُتِمَّ الصَّلٰوةَ

او بیا مسافر سو او خپل وطن ته ور غلی لمونځ به پوره نه کوی.

پوهه سه! چه وطن دری قسمه دی. وطن اصلی هغه وطن دی چه سړی کړه او ماینه وغیره پکښی وی. نو دا وطن نه باطلیږی مګر په مثل د هغه. یعنی چه کړه او کوچنیان بل وطن ته بوزی. نو اول وطن ئی باطل سو. که دی یوازی بیا ورسی مسافر دی.

اوبل وطن د اقامت دئ. دا هغه وطن دی چه سړی د پنځلسو ورځو د اقامت نیت پکښې
کړی وی. نو دا وطن باطلیږی چه د څو ورځو د سفر په نیت څخی و وزی یا خپل وطن اصلی
ته ولاړ سی یا بل ځای د اقامت نیت وکړی. اوبل وطن د سکنی دئ. دا هغه دی چه تر پنځلس
کم د اقامت نیت د اوسیدو پکښې وکړی. دا تر ټولو ضعیف وطن دئ په هر شی باطلیږی.

مسئله! که د چا کره او کوچنیان و ماینه په پاکستان کی وی مثلا او باغ و ځمکه ئی په
افغانستان کی وی او دی به کاهی کاهی افغانستان ته تلئ د باغ و ځمکی د کار دپاره نو تر هغو
چه نیت د پنځلسو ورځو په افغانستان کی و نه کړی هلته افرادی لمونځ به پوره نه کوی.

مسئله! که د چا دوې کړی وې یوه په پاکستان کی او یوه په قندهار کی وه. هر ځای
چه ورسی بیله نیته مقیم دئ.

## وَاِذَا نَوَى الْمُسَافِرُ اَنْ يُقِيْمَ بِمَكَّةَ وَمِنًى خَمْسَةَ

او که نیت وکړی مسافر حاجی چه پنځلس ورځی به په مکه شریفه کی او په منا کی

## عَشَرَ يَوْمًا لَمْ يُتِمَّ الصَّلٰوةَ

تیروم نو دا حاجی به لمونځ پوره نه کوی. ولی د دوه ځایه چه فاصله سره لری نیت د اقامت نه دی صحیح

پوښکه مسئله! چه حاجی چه مکی شریفی ته ورغلی او پیاوری په مکه شریفه کی د پنځلس
ورځو د اوسیدو وخت نه وو نو دی مسافر دئ نیت د اقامت ئی نشته.

## وَالْجَمْعُ بَيْنَ الصَّلٰوتَيْنِ لِلْمُسَافِرِ يَجُوْزُ فِعْلًا وَلَا يَجُوْزُ وَقْتًا

او جمع کول د دوو لمنځو روا ده د فعل د لاری او نه ده روا د وقت د لاری.

او دا هم زموږ مذهب دئ یعنی مسافر ته روا ده جمع کول د دوو لمونځو په داسی
شان چه اول لمونځ لکه د ماپښین لمونځ و اخیر ته د وخت وځنډوی او دوهم لمونځ لکه د
ماز دیګر لمونځ په اول کی د وخت وکړی. فائده ئی دا ده چه دوه واړه به د سفر کاندونه
او د غسی ماښام او ماخستن هم. ودې ته جمع صوری وائی.

زموږ په مذهب کی جمع حقیقی یعنی جمع وقتی د دوه ځایه روا ده. لکه په عرفات کی
ماپښین او ماز دیګر چه د ماز دیګر لمونځ د ماپښین په وخت کی کیږی. او په مزدلفه
کی چه د ماښام لمونځ د ماخستن په وخت کی اداء کیږی. یوه جمع تقدیم بولی. چه

دمانځه یکړلموځ تر وخت د هغه سي - او هغه باجمع تاخیر بولي - او هرځای چه په حدیثو کې جمع د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه روایت سوی دی د هغه څخه جمع صوری مراد ده - او په نورو مذهبو کې جمع حقیقي په سبب د هر عذر روا ده - لکه سفر - باران - ناجوړی -

وَتَجُوْزُ الصَّلٰوةُ فِي سَفِيْنَةٍ قَاعِدًا عَلٰى كُلِّ حَالٍ عِنْدَ

او روادی لمونځ په کښتۍ کې په ناستی سره په هر حال کې په نزد د ابي حنیفه ؒ

اَبِيْ حَنِيْفَةَ ؒ وَعِنْدَهُمَا لَا تَجُوْزُ اِلَّا بِعُذْرٍ

او په نزد دیارانو نه دی روا په ناستی مګر د عذر له سببه (یعنې که عذر نه وي په ولاړی به لمونځ کوي)

وَمَنْ فَاتَتْهُ صَلٰوةٌ فِي السَّفَرِ قَضَاهَا فِي الْحَضَرِ رَكْعَتَيْنِ

او که د چا څخه قضا سو لمونځ په سفر کې نو په کور کې دی دوه رکعته قضا او ړی -

وَمَنْ فَاتَتْهُ صَلٰوةٌ فِي الْحَضَرِ قَضَاهَا فِي السَّفَرِ اَرْبَعًا

او که د چا څخه قضا سی لمونځ په کور کې نو قضا دې راوړي په سفر کې څلور رکعته -

حاصل دا چه لمونځ پس له قضا څخه په سفر او اقامت نه بدلیږي -

وَالْمُطِيْعُ وَالْعَاصِيْ فِي السَّفَرِ وَالرُّخْصَةِ سَوَاءٌ

او فرمان وړونکی لکه چه تر چه سفر کوي او نافرمان لکه په غلا پسې چه ځي - په سفر او رخصت کې سره برابر دي

یعنې دواړو ته قصر د لمانځه روژه خوړل روا دی - ولې چه په آیة مبارک کې د روژې خوړلو په باب کې داسې راغلي دی ، فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَرِيْضًا اَوْ عَلٰى سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِّنْ اَيَّامٍ اُخَرَ ، ترجمه ! که څوک ستاسې څخه مریض اویا په سفر او روژه یې وخوړلې نو په هغه حساب دې په نورو ورځو کې روژې ونیسي -

په دې آیة مبارک کې د مطیع او عاصي فرق نه دی راغلی - او په حدیث شریف کې داسې راغلي دی ، صلوة المسافر رکعتان ، په حدیث کې هم د مطیع او د عاصي فرق نه دی سوی - او امام شافعي ؒ وائي چه عاصي ته رخصت نسته -

# بَابُ صَلٰوةِ الجُمُعَةِ

باب دئ په بیان کې دجمعې د لمانځه

یوه مسئله! چه دجمعې لمونځ فرض محکم دی په آیت، حدیث او اجماع او منکر ئې اتفاقا کافر دی

## لَا تَصِحُّ الْجُمُعَةُ اِلَّا فِیْ مِصْرٍ جَامِعٍ اَوْ فِیْ مُصَلَّی الْمِصْرِ

نه صحیح کیږي دجمعې لمونځ مګر په جامع ښار کې او یا په عیدګاه کې د ښار۔

مسئله! عیدګاه خاصه نه ده بلکه په ټولو اطرافو کې د ښار دجمعې لمونځ روا دی۔

مسئله! اطراف د ښار څوک وائي هغه دي چه یو میل د ښاره څخه لیرې وي او څوک وائي چه دوه میله او څوک وائي چه دوه فرسخه لیرې وي۔ او څوک وائي چه دمؤذن اذان ورته رسیږي۔ او څوک وائي هغه ځای هم په طرف کې داخل دی چه سحار دکوره سړی پیاده راووزي او د جمعې لمونځ په ښار کې وکړي د ماښام د مخه کوره ورسیږي

مسئله! په یوه ښار کې څو ځایه دجمعې لمونځ په مذهب د امام اعظمؒ او د امام محمدؒ روا دی۔ وَهُوَ الصَّحِیْحُ وَعَلَیْهِ الْفَتْوٰی۔

فائده! د مصر په تعریف کې اختلاف دی۔ څوک وائي هغه دی چه هغه له امیر وقاضي وي او چلول د احکامو د شرعي شریفې او حدود کولای سي۔ او دا هم مذهب د امام ابویوسفؒ دی او مختار د کرخیؒ هم دی۔ او دا هم ظاهر المذهب دی۔ او د امام ابویوسفؒ څخه بله روایت دی چه مصر جامع هغه ځای دی چه د ځای مکلف خلک سره راټول سي نو د هغه ځای په لوئ مسجد کې نه ځائیږي۔ او دا هم مختار د امام بلخیؒ دی۔

### دخیل خان حال

زه عبید الله د وولس کاله په سخړي کې مدرس وم چه هلته دجمعې لمونځ د قدیم څخه کیدئ او سخړي په ظاهر مذهب مصر نه وو بلکه پر دوهمه روایت مصر وو۔ او بیا ورسته تر سخړي په خوشاب کې چه هلته هم جامع مسجد وو د جمعې لمونځ پکښې کیدئ او خوشاب هم پر دوهمه روایت مصر وو۔ نو ځکه نه ماشخصي

فتوی دا ده چه په دغسې ځایونو کښې د جمعې لمونځ ـ وادئ او دیر ډ کتابونو د فقهې شریفې په دغه روایت فتوی ورکړې ده ـ

## وَلَا تَجُوْزُ فِي الْقُرٰى وَلَا تَجُوْزُ اِقَامَتُهَا اِلَّا

او نه دی روا د جمعې لمونځ په قریو کښې (د قریې تعریف د مصر څخه معلوم کړئ) نه دی روا د جمعې د لمانځه امامت مګر

## لِسُلْطَانٍ اَوْ لِمَنْ اَمَرَهُ السُّلْطَانُ

بادشاه ته ـ یا هغه چا ته چه بادشاه ئې امر کړی (ولې چه په دې کښې د فتنې په ما بین د خلکو روانه بندیږی)

پوه سه! چه شرطونه د فرض والی د لمانځه د جمعې دوولس[12] دی ـ

(۱) حُرِّیة دی ـ پر مریي فرض نه دی ـ

(۲) الذکورة دی ـ پر ښځه باندی د جمعې لمونځ فرض نه دی ـ

(۳) الاقامة دی ـ پر مسافر باندی د جمعې لمونځ فرض نه دی ـ

(۴) الصحة دی ـ پر مریض باندی د جمعې لمونځ فرض نه دی ـ

(۵) سلامة الرِجْلَیْن دی ـ پر ګوډ باندی فرض نه دی ـ

(۶) سلامة العَیْنَیْن دی ـ پر ړانده باندی فرض نه دی ـ

(۷) المصر دی ـ په قریو کښې فرض نه دی ـ

(۸) السلطان دی ـ بیله بادشاه یا د نائب د بادشاه جمعې لمونځ فرض نه دی ـ

(۹) الجماعة دی ـ چه جماعت نه وی د جمعې لمونځ فرض نه دی ـ

(۱۰) الخطبه ده ـ بیله خطبې د جمعې لمونځ فرض نه دی ـ

(۱۱) الوقت دی ـ بیله ماپښین له وخته د جمعې لمونځ فرض نه دی ـ

(۱۲) الاذن العام مِنَ الْاِمَام ـ چه عامه اجازه د باچا نه وی د جمعې لمونځ فرض نه دی ـ

فائده! دغه مذکوره شرطونه بعضې د صحت او د وجوب دواړه دی ـ او بعضې یوازې د فرضیت دی ـ فکر وکړه ـ د دې شرطو بیان په قدوری کښې راروان دی ـ

## وَمِنْ شَرَائِطِهَا الْوَقْتُ فَتَصِحُّ فِي وَقْتِ الظُّهْرِ

او بعضې د شرائطو څخه د جمعې د لمانځه وخت دی ـ نو د ماپښین په وخت کښې روا دی

## وَلَا تَصِحُّ بَعْدَهُ وَمِنْ شَرَائِطِهَا الْخُطْبَةُ قَبْلَ الصَّلٰوةِ

او نه دی روا وروسته تر ماپښین۔ او بعضی د شرطونو د جمعې د لمانځه خطبه ده د مخه تر لمانځه۔

## يَخْطُبُ الْإِمَامُ خُطْبَتَيْنِ يَفْصِلُ بَيْنَهُمَا بِقَعْدَةٍ

خطبه به وائي امام د لمانځه دوې خطبې او جلا والی به کوي په مابین کی د دغو دوو خطبو په ناسته سره (هم په دې

## وَيَخْطُبُ قَائِمًا عَلَى الطَّهَارَةِ

سره اجماع د امت (اعلیٰ ده) او خطبه به وائي په ولاړه په پاک بدن سره۔

روایت دی چه چا د ابن مسعود رضی الله عنه د خطبې د ولاړې په باره کی پوښتنه وکړه هغه ورته وویل تا د آیة مبارک نه دی اوریدلی وَتَرَكُوكَ قَائِمًا، یعنی تا پرېښي دې په ولاړې په خطبه کی او دوی ولاړ سی۔

## وَإِنِ اقْتَصَرَ عَلَى ذِكْرِ اللّٰهِ تَعَالٰى جَازَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ

او که چېرې بس والی وکړی خطیب په خطبه کی پر ذکر د خدای تعالی (مثلاً و وائي سبحان الله الحمد لله لا اله الا الله) روا دی په نزد د امام اعظم۔

مسئله! دا هلته چه په نیت د خطبې ئې و وائي نه په نیت د ذکر ولی چه خدای پاک د جمعې د خطبې په باره کی فرمائي «فَاسْعَوْا إِلَى ذِكْرِ اللّٰهِ» په دې آیة کی مطلق ذکر راغلی دی که اوږد وی که لنډ وی۔

## وَقَالَا لَا بُدَّ مِنْ ذِكْرٍ طَوِيلٍ يُسَمَّى خُطْبَةً

او یاران وائي چه په خطبه کی چاره نسته د اوږده ذکر څخه چه خطبه مسمّٰی کیږي۔

گویا بناء د مذهب د یارانو پر عرف ده په عرف کی فقط سبحان الله الحمد لله خطبه نه بولی۔

## فَإِنْ خَطَبَ قَاعِدًا أَوْ عَلَى غَيْرِ طَهَارَةٍ جَازَ وَيُكْرَهُ

پس کې خطبه و ویل په ناستې یا بې اوداسه روا ده لکن مکروه ده۔

روا په دی ده چه مقصود حاصل سو۔ او مکروه په دې ده چه د سنت نبوی ؐ ئې خلاف وکړی۔

وَمِنْ شَرَائِطِهَا الْجَمَاعَةُ وَأَقَلُّهُمْ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ
او بل د شرطو نه د جمعې د لمانځه جماعت دی او کمه مرتبه د جماعت په نزد د امام اعظم صاحب

ثَلٰثَةٌ سِوَى الْإِمَامِ وَقَالَا اِثْنَانِ سِوَى الْإِمَامِ
درې کسه دی ما سوای د امام نه۔ او یاران وائی چه دوه کسه دی ما سوای د امام نه۔

وَيَجْهَرُ الْإِمَامُ بِقِرَائَتِهٖ فِي الرَّكْعَتَيْنِ وَلَيْسَ فِيْهِمَا
او جهر دی کوی امام په قرائت خپل په دواړو رکعتونو کې۔ او نشته په دې رکعتونو کې د جمعې

قِرَائَةُ سُوْرَةٍ بِعَيْنِهَا وَلَا تَجِبُ الْجُمُعَةُ عَلٰى مُسَافِرٍ
ویل د یوه معینه سورت۔ او نه دی واجب د جمعې لمونځ په مسافر باندې

وَلَا امْرَئَةٍ وَلَا مَرِيْضٍ وَلَا صَبِيٍّ وَلَا عَبْدٍ وَلَا أَعْمٰى
او نه په ښځه او نه په ناجوړه او نه په کوچنی او نه په مریی او نه په ړانده باندې۔

فَإِنْ حَضَرُوْا وَصَلَّوْا مَعَ النَّاسِ أَجْزَأَهُمْ عَنْ فَرْضِ الْوَقْتِ
او که دوی حاضر سوه او د جمعې لمونځ ئې وکړی سره د خلکو بس ئې دی د فرض الوقت نه۔ یعنی د

وَيَجُوْزُ لِلْعَبْدِ وَالْمُسَافِرِ وَالْمَرِيْضِ أَنْ يَّؤُمُّوْا فِي الْجُمُعَةِ
ماپښین د لمانځه نه۔ او روا ده مریی لره او مسافر لره او مریض لره چه امامت وکړی د جمعې په لمانځه کې
ولې چه دوی حاضر سوه د جمعې لمونځ پر دوی فرض دی۔

وَمَنْ صَلَّى الظُّهْرَ فِيْ مَنْزِلِهٖ يَوْمَ الْجُمُعَةِ قَبْلَ صَلٰوةِ الْإِمَامِ
او که چا وکړی د ماپښین لمونځ په کور خپل کې د مخه تر لمانځه د امام

**وَلَا عُذْرَ لَهُ كُرِهَ لَهُ ذَالِكَ وَجَازَتْ صَلٰوتُهُ**

او عذر ئې نه دی لودی۔ مکروه دی ده لره دا کار مګر لمونځ ئې روا دی۔

**فَإِنْ بَدَا لَهُ أَنْ يَحْضُرَ الْجُمُعَةَ فَتَوَجَّهَ إِلَيْهَا وَالْإِمَامُ**

او که پس له دی چه لمونځ ئې کړو وکړی فکر ئې داسو چه د جمعې لمانځه ته ولاړ سی۔ نو ئې مخ

**فِيهَا بَطَلَتْ صَلٰوةُ الظُّهْرِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رح**

وکړ خاوی (روان سو) د جمعې لمانځه ته په داسی حال کی چه امام د جمعې په لمانځه کی وو نو د ماپښين

**بِالسَّعْيِ إِلَيْهَا**

لمونځ باطل سو په نزد د امام اعظم صرف په دې کار سره چه روان سو د جمعې لمانځه ته۔

یعنی کله چه ورته تلی د جمعې لمونځ تیر سوی وو. د ماپښين لمونځ به بیرته راوګرځوی۔

**وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ رح لَا يَبْطُلُ حَتّٰى يَدْخُلَ مَعَ الْإِمَامِ**

امامان وائی چه د ماپښين لمونځ ئې نه باطلیږی ترڅو چه د امام سره داخلیږی په لمانځه کی

**وَيُكْرَهُ أَنْ يُصَلِّيَ الْمَعْذُورُونَ الظُّهْرَ بِجَمَاعَةٍ يَوْمَ الْجُمُعَةِ**

او مکروه دی دا چه وکړی معذوره کسان د ماپښين لمونځ په جماعت سره د جمعې

**فِي الْمِصْرِ وَكَذَالِكَ أَهْلُ السِّجْنِ وَمَنْ أَدْرَكَ الْإِمَامَ**

په ورځ په ښار کی۔ او دغه رنګه مکروه دی اهل لره د بندی خانی۔ او که چا پیدا کړی امام

**يَوْمَ الْجُمُعَةِ صَلّٰى مَعَهُ مَا أَدْرَكَ وَبَنٰى عَلَيْهِ الْجُمُعَةَ**

په ورځ د جمعې (یعنی لمانځه ته وروسته سیدئ) دا سړی دی وکړی د امام سره هغه قدر چه ده د امام سره پیدا کړی۔ او د جمعې د لمانځه بناء دی پر وکړی۔

مثلاً که یوه رکعت ځنی تیر سوی وو د هغه رکعت دی قضا راوړی۔

وَإِنْ أَدْرَكَهُ فِي التَّشَهُّدِ أَوْ سُجُودِ السَّهْوِ بَنٰى عَلَيْهِ

اوکه ورسیدی وامام ته په حال کی د التحیات او یا د سجود سهوی نو بنی د جمعی دی پر

الْجُمُعَةَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ

وکړی په نزد د امام اعظمؒ او امام ابو یوسف رحمهما الله تعالی

وَقَالَ مُحَمَّدٌ إِنْ أَدْرَكَ مَعَهُ أَكْثَرَ الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ

او ویلی دی امام محمدؒ که دی سری وینوی د امام سره اکثره حصه د دوهم رکعت بناء د

بَنٰى عَلَيْهِ الْجُمُعَةَ وَإِنْ أَدْرَكَ مَعَهُ أَقَلَّهَا بَنٰى عَلَيْهَا الظُّهْرَ

جمعې دی پر وکړی او کی کم حصه د دوهم رکعت وینول بناء د ماپښین دی پر وکړی (یعنی څلور رکعته دی وکړی)

فائده: مراد د اکثره څخه د دوهم رکعت دادی چه یا د څخه ته رکوع ورورسیږی یا په رکوع کی ۔ او اقل نی دا دی چه امام په سجده کی وی ۔ فتوی مذهب د شیخینؒ معمول دی ۔

وَإِذَا خَرَجَ الْإِمَامُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ تَرَكَ النَّاسُ الصَّلٰوةَ وَالْكَلَامَ

او چه کله راووزی امام د حجری څخه په ورځ د جمعې پری دی بدی خلک لمونځ او خبری ۔

که د حجری څخه په نیت د خطبې او یا د محراب څخه راولاړ سو هم په نیت د خطبې نکه نه موږ په پښتنو کی چه امام ته خطبې څخکی په محراب کی سنت کوی ۔

مسئله: مراد د صلوٰة څخه نفل دی او قضائی لمونځ روا دی ۔ کوکب دری صلا

حَتّٰى يَفْرُغَ مِنْ خُطْبَتِهِ وَقَالَا لَا بَأْسَ بِأَنْ يَتَكَلَّمَ

تر هغو چه د خطبې څخه فارغ کیږی ۔ او یاران وائی چه خبری په وانه لری ۔

مَا لَمْ يَبْدَأْ بِالْخُطْبَةِ

تر څو چه امام په خطبه شروع نه وی کړی ۔ که څه هم د حجری څخه راوتلی وی ۔

مسئله: د امام اعظمؒ په نزد په دغه وخت کی قرائت د قرآن او د سلام اچول یا سلام

بیا کول هم مکروه دي. او د غه رنګه مکروه دي اجابت د مؤذن. او د غه رنګه مکروه
دي سنت کول یا تحیة المسجد. او په نزد د امام شافعي سنت قبلي یا تحیة المسجد یا رد
د سلام روا دي مکروه نه دي. د عبدالله بن عمر رضي الله عنه روایت دی. چه یو سړي و بل
ته وویل د خطبي په وخت کی چه کله قافله ورغی. هغه بل سړي وره ته وویل بنغ مه کوه
چپ شه. څه وخت چه لمونځ خلاص شو نو ابن عمر رض وهغه د وهم سړي ته وویل
چه ستا د جمعي د لمانځه ثواب نشته. او وې ویل چه لمونځ خلاص شو چه ستا ملګري
یعنی اول سړي خوځنده ی.

فائده: څه وخت چه امام په مابین کی د دوو خطبو کښینی د اوخت د اجابت دی
هر سړي دي یوه مختصره دعا کوي.

## وَإِذَا أَذَّنَ الْمُؤَذِّنُوْنَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ الْأَذَانَ الْأَوَّلَ تَرَكَ

او څه وخت چه اذان وکړي مؤذنانو په ورځ د جمعي اول اذان (چه په منبر یا په لاوډ سپیکر کی کیږي)

## النَّاسُ الْبَيْعَ وَالشِّرَاءَ وَتَوَجَّهُوْا إِلَى الْجُمُعَةِ

نو پرینږدي دي خلک بیع وشرا او روان دي شي د جمعي لمانځه ته، لقوله تعالى فاسعوا الى ذكر الله و ذروا البيع

مسئله: په دغه وخت کی هر کار چه د لمانځه نه سړي مشغوله کوي حرام دي یعنی لکه خوراک څښاک وغیره

## فَإِذَا صَعِدَ الْإِمَامُ الْمِنْبَرَ جَلَسَ وَأَذَّنَ الْمُؤَذِّنُ بَيْنَ

پس څه وخت چه وخیژي امام منبر ته کښینی به. او اذان دي وکړي مؤذن په نزد د منبر

## يَدَيِ الْمِنْبَرِ ثُمَّ يَخْطُبُ الْإِمَامُ فَإِذَا فَرَغَ مِنْ خُطْبَتِهِ

د امام مخامخ ته. او بیا دي امام خطبه ووائي. څه وخت چه د خطبي څخه امام

## أَقَامُوا الصَّلٰوةَ

فارغ شي نو دي او خلک دي لمانځه ودریږي

اللهم اغفر لكاتبه ولمؤلفه ولوالديهما ولاساتذهما ولتلامذهما ولجميع المؤمنين.

# بَابُ صَلٰوةِ الْعِيْدَيْنِ

باب دی په بیان د دواړو اخترو د لمانځه کی

مسئله: د دواړو اخترو لمونځ واجب دی. وهو الاصح.

**يُسْتَحَبُّ يَوْمَ الْفِطْرِ اَنْ يَّطْعَمَ الْاِنْسَانُ شَيْئًا قَبْلَ الْخُرُوْجِ**

مستحب دی په ورځ د کوچنی اختر چه خوړی به انسان یو شی د مخه تر وتلو

مسئله: آنحضرت صلی الله علیه وسلم به تاک دانی خرماوی خوړلې.

**اِلَى الْمُصَلّٰى وَيَغْتَسِلُ وَيَتَطَيَّبُ وَيَلْبَسُ اَحْسَنَ ثِيَابِهٖ**

وعیدګاه ته. او غسل به کوی او خوشبوئی به لګوی او اغوندی به ښه کالی چیل که نوی وی او که

**وَيُخْرِجُ صَدَقَةَ الْفِطْرِ ثُمَّ يَتَوَجَّهُ اِلَى الْمُصَلّٰى وَلَا**

پرېولی وی. او ودی باسی سرسایه. بیا دی روان سی و عیدګاه ته. او نه دی وائی

**يُكَبِّرُ فِيْ طَرِيْقِ الْمُصَلّٰى عِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ وَيُكَبِّرُ عِنْدَهُمَا**

تکبیر په لاره کی د عیدګاه او دا هم په نزد د امام اعظمؒ. او یارانؒ وائی چه الله اکبر دی پر لاره ای

**وَلَا يَتَنَفَّلُ فِي الْمُصَلّٰى قَبْلَ صَلٰوةِ الْعِيْدِ فَاِذَا حَلَّتِ**

وائی. او نفل دی نه کوی په عیدګاه کی د مخه تر لمانځه د اختر. پس څه وخت چه لمونځ روا سو

**الصَّلٰوةُ بِارْتِفَاعِ الشَّمْسِ دَخَلَ وَقْتُهَا اِلَى الزَّوَالِ**

په راپورته کیدو د لمر (دوی نیزی قدر) داخل سو وخت د اختر د لمانځه ترنه واله پورې د لمر

مسئله: نفل دی د مخه تر عیدګاه په کور کی هم نه کوی. کوکب دری.

او وروسته تر لمانځه د عید کاه په عیدګاه کی مکروه او په کور کی پروا نه لری.

## فَإِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ خَرَجَ وَقْتُهَا

پس کله چه ملر نه زوال وکړي نو خارج سو وخت دا ختر د لمانځه

## وَيُصَلِّي الْإِمَامُ بِالنَّاسِ رَكْعَتَيْنِ

او لمونځ دی وکړي امام په خلکو سره دوه رکعته په نیت د واجبو

مسئله! دا ختر په لمانځه کی نه اذان سته او نه اقامت۔ په حدیث شریف کی هم دغسی راغلی دی۔ او پر دغه اتفاق دامت هم دئ۔

## وَيُكَبِّرُ فِي الْأُولَى تَكْبِيرَةَ الْإِحْرَامِ وَثَلَاثًا بَعْدَهَا

او تکبیر دی ووائي په اول رکعت کی یو د تحریمي تکبیر (لکه په نورو لمونځو کی) او دری تکبیره نور وروسته

مسئله! اول چه نیت ئې وکړې اول تکبیر به ووائي۔ او بیا به سبحانك اللّٰهم تر پایه پورې ووائي۔ او بیا به لاس ترغوږو پورې پورته یوسی او الله اکبر دی ووائي۔ او بیا به لاس نه دخانه سره ایله و نیسی۔ او په قدر د دره وتسبیحو به ساکت اوسی۔ او بیا به لاس ترغوږو یوسی بل الله اکبر به ووائي۔ او دغه شان به لاس ایله و نیسی۔ پر دریم تکبیر دی لاس تر نامه لاندی و نیسی او الحمد لله شریف دی شروع کړي۔

پوښتنه! چه دا کیفیت منقول دئ د عبدالله بن مسعود رض او د حذیفه رض او د ابوموسی اشعری رض او نورو صحابه کرامو رض۔ او هم دغه روایت معتبر دی په نزد د احنافو۔ او نور کیفیات هم راغلی دی۔

## ثُمَّ يَقْرَءُ فَاتِحَةَ الْكِتَابِ وَسُوْرَةً مَعَهَا

پس امام دی قرائت وکړي د الحمد لله شریفي او یو سورت سره د الحمد لله

مسئله! هر سورة چه ووائي روا دی۔ لکن مستحب دا دی چه په اول رکعت کے دی سبح اسم ربك الاعلى، ووائي او په دوهم رکعت کی دی سورة الغاشيه۔

## ثُمَّ يُكَبِّرُ تَكْبِيرَةً يَرْكَعُ بِهَا

پس ودی دی امام الله اکبر ووائي او د دغه الله اکبر سره دی رکوع وکړي۔

فائده! باقي رکعت لکه د نورو لمونځو رکعت دا سې دې۔

## ثُمَّ يَبْتَدِئُ فِي الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ بِالْقِرَاءَةِ فَإِذَا فَرَغَ مِنَ

او بیا دې شروع د دوهم رکعت په قراءت سره وکړي (الحمد لله او یو سورت دې و وائي) او بیا چه امام فارغ شي

## الْقِرَاءَةِ كَبَّرَ ثَلٰثَ تَكْبِيرَاتٍ وَكَبَّرَ تَكْبِيرَةً رَابِعَةً يَرْكَعُ بِهَا

د قراءت نه درې الله اکبره دې و وائي۔ او بیا دې څلورم تکبیر و وائي او په هغه تکبیر دې رکوع وکړي

مسئله! په مابین کې د تکبیرو د اختر دې لاسونه د ځانه سره ایله نیسي۔ او د دوهم رکعت د درېم تکبیر وروسته دې لاسونه د ځانه سره ایله ونیسي۔ او چه رکوع ته ځي نو دې پرېنه نکلنو و نیسي۔

## وَيَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي تَكْبِيرَاتِ الْعِيدَيْنِ

او لاسونه دې ترغوږونو پورې پورته کوي په تکبیرو کې د دواړو اخترو۔

فائده! پورته کول د لاسو د اختر و په تکبیرو کې په بخاري او مشکوٰة او نورو کتابو کې د حدیثو راغلی دی۔

## ثُمَّ يَخْطُبُ بَعْدَ الصَّلٰوةِ خُطْبَتَيْنِ

او بیا دې امام پس له لمانځه نه دوې خطبې و وائي۔

مسئله! دا دوې خطبې د اختر و سنت دي۔ کوکب دري ص۱۱

## يُعَلِّمُ النَّاسَ فِيهِمَا صَدَقَةَ الْفِطْرِ وَأَحْكَامَهَا

او ور دې ښئي په دې خطبو کې سر سایه او احکام د سرسائي وخلکو ته۔

پوښتنه! چه احکام پنځه دي۔ پر چا واجب ده؟ پر هغه چا چه حروي مسلمان وي مالک د یو نصاب وي د نصابو نه د نه کوه۔ بالا به وي تر حاجت اصلي د ده۔

فائده! بعضي امامان د خلکو په خیال داسي وه کوي۔ چه سر سایه پر نفس مسلمان سته که فقیر وي فقر کوي حتی چه په تجربه ثابته ده چه بعضي کسان رونړانه مزدوري کوي نه سرائي لري نه د کور کافي سامان لري۔ بلکه پور وړي وي لکن سر سایه وملا صاحب ته ور کوي۔ او ملا صاحب تر هغه ډیر موړ وي۔ ملا صاحب ئې هم و اخلي۔ او دا

مسئله: (۱) سرسايه به چا د خوا څخه ورکوي؟ د خپل ځان د خوا او د کوچنی عیالو د خوا ئې ورکوي. د ماښې او بالغو عیالو سرسایه پر سړي نه ده واجبه.

(۲) وچا ته دې ورکوي؟ وفقیرانو او مسکین ته دې ورکوي. بعضې امامان که څه هم غیلان وي که یو چا سرسایه ویو بل بیچاره مسکین ته ورکړه ملا صاحب ته ئې ور نه کړه نو ملا صاحب سخته خوا بدئ کیږي. او وائي چه لمونځونه او تراویح زه درکوم او سرسایه بل ته ورکوئ.

(۳) اوکله واجبیږي؟ په راختو سره د سپیده د کوچنی اختر د ورځې واجبیږي. که یو سړي کرده میاشت د روژې ئې روژه نه ده نیولې او د اختر په شپه مړ سو سرسایه ئې نه ده واجبه او که یو کوچنی د اختر په شپه پیدا سو سرسایه ئې پر پلار لازمه ده.

(۴) او د سرسائی مقدار څو دئ؟ نیم کاسه د غنمو او یا یوه کاسه د جوارو و یا اوربشو یا خرما. یا قیمت د دغو شیانو. نیم کاسه د دوه کیلو ده.

(۵) او د کومو کومو شیانو څخه دې ورکوي؟ هغه غنم. اوربشې. خرما. وچکي. او د نورو شیانو څخه نه ده روا مګر په قیمت د دغو غلو.

وَمَنْ فَاتَتْهُ صَلٰوةُ الْعِيْدِ مَعَ الْإِمَامِ لَمْ يَقْضِهَا

اوکه د چا څخه فوت سو د اختر لمونځ سره د امام پس هغه قضاء نسته (یعنی یواځې ئې نه کوي)

فَإِنْ غُمَّ الْهِلَالُ عَنِ النَّاسِ وَشَهِدُوْا عِنْدَ الْإِمَامِ بِرُؤْيَةِ

اوکه چیرې وریځ او پټه سوه میاشت د خلکو څخه او بیا خلکو شاهدي اداء کړه په حضور د قاضي په

الْهِلَالِ بَعْدَ الزَّوَالِ صَلَّى الْعِيْدَ مِنَ الْغَدِ فَإِنْ

لیدو سره د میاشتې پس له زواله (یعنی شاهدي ئې تر زواله وروسته اداء کړه) نو د اختر لمونځ دې صبا وکړي. او که

حَدَثَ عُذْرٌ يَمْنَعُ النَّاسَ مِنَ الصَّلٰوةِ فِي الْيَوْمِ الثَّانِيْ

عذر ور پیښ سو چه منعه کولې ئې خلک د لمانځه څخه په دوهمه ورځ دم. نو نه دې کذا ئې

لَمْ يُصَلِّهَا بَعْدَهٗ وَيُسْتَحَبُّ فِيْ يَوْمِ الْأَضْحٰى أَنْ يَغْتَسِلَ

د اختر لمونځ وروسته تر دغه (یعنی په دریمه ورځ) او مستحب دي په ورځ کي د لوئ اختر چه غسل وکړي

وَيَتَطَيَّبُ وَيَلْبَسُ أَحْسَنَ ثِيَابِهٖ وَيُؤَخِّرُ الْأَكْلَ حَتّٰى

او خوشبوئي وکړي او ښې جامې دې واغوندي - او وروسته دې کړي خوړل تر هغو چې فارغ

يَفْرُغَ مِنَ الصَّلٰوةِ ثُمَّ يَتَوَجَّهُ إِلَى الْمُصَلّٰى وَهُوَ يُكَبِّرُ

کيږي د لمانځه - وروسته دې روان شي د عيدګاه په خوا - او دا سړی دې تکبير وائي

فِي الطَّرِيْقِ جَهْرًا وَيُصَلِّي الْإِمَامُ بِالنَّاسِ يَوْمَ الْأَضْحٰى

په لاره په زوره - او لمونځ دې وکړي امام په خلکو سره د لوی اختر دوه

رَكْعَتَيْنِ كَصَلٰوةِ الْفِطْرِ وَيَخْطُبُ بَعْدَهَا خُطْبَتَيْنِ

رکعته لکه د کوچنی اختر لمونځ - او خطبې دې وائي وروسته تر لمانځه دوې خطبې

يُعَلِّمُ النَّاسَ فِيْهِمَا الْأُضْحِيَّةَ وَأَحْكَامَهَا وَتَكْبِيْرَاتِ التَّشْرِيْقِ

او وروښئي دې خلکو ته په دې خطبو کې اختري او حکمونه د اختري او تکبيرونه د تشريق.

فَإِنْ حَدَثَ عُذْرٌ مَنَعَ النَّاسَ مِنَ الصَّلٰوةِ يَوْمَ الْأَضْحٰى

او که پيښ شو عذر چې منعه ئې کړه خلک د لمانځه څخه په ورځ د لوی اختر - نو وکړي دې دا

صَلّٰهَا مِنَ الْغَدِ وَبَعْدَ الْغَدِ وَلَا يُصَلِّيْهَا بَعْدَ ذٰلِكَ

لمونځ د اختر د سبا څخه او پس له سبا (يعنی د دوهم او دريم ورځ) او نه دې کوي دا لمونځ پس له دغ

وَتَكْبِيْرَاتُ التَّشْرِيْقِ أَوَّلُهٗ عَقِيْبَ صَلٰوةِ الْفَجْرِ مِنْ يَوْمِ

رځو - او تکبيرونه د تشريق اول ئې شروع کيږي وروسته تر لمانځه د سحار د ورځې د عرفات.

عَرَفَةَ وَاٰخِرُهٗ عَقِيْبَ صَلٰوةِ الْعَصْرِ مِنْ يَوْمِ النَّحْرِ

او آخير ئې وروسته تر لمانځه د ماز ديګر دی د ورځې څخه د اختر.

## عِنْدَ اَبِیْ حَنِیْفَةَ وَ قَالَ اَبُوْ یُوْسُفُ وَ مُحَمَّدٌ اِلٰی

دا په نزد د امام اعظمؒ - او ویلی دی امام ابو یوسفؒ او امام محمدؒ چه تکبیرونه

## صَلٰوةِ الْعَصْرِ مِنْ اٰخِرِ اَیَّامِ التَّشْرِیْقِ

دی وائی تر وروسته پوری د مانځه د ماسپښین د ماښام د اخیری ورځی څخه د ورځو د تشریق -

یوه مسئله ده چه عدد د لمونځو د تکبیر و په نزد د امام اعظمؒ اته لمونځونه دی او په نزد د یارانو دریویشت لمونځونه دی -

مسئله! په مذهب د امام صاحبؒ تکبیرونه د تشریق په کلی والا باندی نشته او په مسافر هم نشته - او په ښځه هم نشته - او چه بی جماعت لمونځ وکړی په هغه هم نشته - او په نزد د یارانو تکبیرونه د تشریق په هر لمونځ کذاره واجب دی - یعنی که نر وی او ښځه که مقیم وی او که مسافر - که ښاری والا وی که صحرا والا وی - که لمونځ په جماعت وکړی که یوازی -

مسئله! در مختار - فتح القدیر - کوکب دری او نورو ډیرو شرحو او فتاوو په مذهب د یارانو فتوی کړی ده او د فقیه هم د غه فتوی ده -

مسئله! که د امام تکبیر هیر سی مقتدیان د ی و وائی چه د امام هم په یاد سی -

مسئله! تکبیرونه د تشریق دی تول په جهر سره و وائی -

مسئله! تکبیرونه تر فرضی لمونځو وروسته و یل کیږی و بس -

## وَ تَکْبِیْرَاتُ التَّشْرِیْقِ عَقِیْبَ الصَّلَوٰاتِ الْمَفْرُوْضَاتِ اَللّٰهُ اَکْبَرُ

او تکبیرونه د تشریق وروسته تر فرضی لمونځو دا دی چه مصنفؒ ذکر کړی دی - خدای لوی

## اَللّٰهُ اَکْبَرُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ اَکْبَرُ اَللّٰهُ اَکْبَرُ

خدای لوی دی - نشته لائق د عبادت بیله خدایه - او خدای لوی دی - او خدای لوی دی

## وَ لِلّٰهِ الْحَمْدُ

او خدای لره ثناء ده

# بَابُ صَلٰوةِ الْكُسُوْفِ

باب دې په بیان کې د لمانځه د تندرو د لمر یا د سپوږمۍ۔

**إِذَا انْكَسَفَتِ الشَّمْسُ صَلَّى الْإِمَامُ بِالنَّاسِ رَكْعَتَيْنِ**

کله تندرې ونیوئ لمونځ دې وکړي امام په خلقو سره دوه رکعته

**كَهَيْئَةِ النَّافِلَةِ فِيْ كُلِّ رَكْعَةٍ رُكُوْعٌ وَّاحِدٌ**

په دول د نفلو - او په هر رکعت کې دې یو رکوع کوي۔

یوه مسئله! چه دا مذهب د حنفیانو دی او څوک په یوه رکعت دوه او څوک درې رکوعې وائي

**وَيُطَوِّلُ الْقِرَاءَةَ فِيْهِمَا وَيُخْفِيْ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَقَالَ**

او دې اوږدې دې وائي قرائت په دواړو رکعتو کې۔ او کراره دې وائي قرائت په نزد د امام اعظمؒ او ویلي دي

**أَبُوْ يُوْسُفَ وَمُحَمَّدٌ يَجْهَرُ ثُمَّ يَدْعُوْا بَعْدَهَا حَتّٰى تَنْجَلِيَ الشَّمْسُ**

یارانو چه قرائت دې په جهر سره وائي او بیا دې دعا کوي په اجتماع سره وروسته تر لمانځه تر څو چه لمر روښانه شي

مسئله! بعضې عوام وائي چه د لمر یا د سپوږمۍ د تندرې سبب د بندګانو ګناهونه دي خو دا غلط مفکوره ده - په حدیث شریف کې راغلي دي چه لمر او سپوږمۍ 'آيَتَانِ مِنْ آيَاتِ اللهِ' نه تورېږي د وجې په سبب د مرګ د چا یا د ژوند د چا لکه د اهل جاهلیت چه عقیده وه۔ بلکه خدای پاک په عالم علوي کې په دې تغییر خپل د قدرت یوه نخښه ظاهروي۔

**وَيُصَلِّيْ بِهِمُ الْإِمَامُ الَّذِيْ يُصَلِّيْ بِهِمُ الْجُمُعَةَ فَإِنْ لَّمْ يَحْضُرِ الْإِمَامُ**

او لمونځ د کسوف دې ورکوي ته هغه امام ورکوي چه د وي ته د جمعې لمونځ ورکوي او که امام د جمعې نه وو

**صَلَّاهَا النَّاسُ فُرَادٰى وَلَيْسَ فِيْ خُسُوْفِ الْقَمَرِ جَمَاعَةٌ وَإِنَّمَا**

حاضر هر سړی دې نفل وکړي یوازې۔ او نشته په تورولی کې د سپوږمۍ جماعت بلکه هر سړی دې

**يُصَلِّيْ كُلُّ وَاحِدٍ بِنَفْسِهٖ وَلَيْسَ فِي الْكُسُوْفِ خُطْبَةٌ**

وخان ته جلا جلا لمونځ کوي۔ او نشته په کسوف کې د لمر خطبه ویل۔

# بَابُ صَلٰوةِ الْاِسْتِسْقَاءِ

باب دی په بیان کی د لمانځه د طلب د باران

قَالَ اَبُوْحَنِيْفَةَ لَيْسَ فِي الْاِسْتِسْقَاءِ صَلٰوةٌ مَسْنُوْنَةٌ بِالْجَمَاعَةِ

ویلی دی امام اعظمؒ چه نشته په استسقاء کی لمونځ چه سنت ئې جماعت وی.

فَاِنْ صَلَّى النَّاسُ وُحْدَانًا جَازَ وَاِنَّمَا الْاِسْتِسْقَاءُ الدُّعَاءُ

نو که هر سړی خان ته لمونځ وکړی نو روا دی. او نه دی په نزد د امام اعظمؒ استسقاء مګر دُعا غوښت

وَالْاِسْتِغْفَارُ وَقَالَ اَبُوْيُوْسُفَ وَمُحَمَّدٌ يُصَلِّى الْاِمَامُ رَكْعَتَيْنِ

او استغفار دی یعنی طلب د بخښنې د ګناه دی. او وائی یاران چه امام دی دوه رکعته لمونځ وکړی.

وَيَجْهَرُ فِيْهِمَا بِالْقِرَاءَةِ ثُمَّ يَخْطُبُ وَيَسْتَقْبِلُ الْقِبْلَةَ بِالدُّعَاءِ

او په زوره دی وائی قرائت په دواړو رکعتونو کی. او بیا دی خطبه ووائی یعنی خلکو ته دی نصیحت وکړی چه د ګناهونو نه توبه وکاږی. نو به خدای باران وکړی او مخامخ کیږی دی قبلې ته په دعا سره.

وَيُقَلِّبُ الْاِمَامُ رِدَاءَهٗ وَلَا يُقَلِّبُ الْقَوْمُ اَرْدِيَتَهُمْ

او واړه دی روی امام چادر خپل او نه دی اړوی مقتدیان خپل چادرونه.

یوه مسئله: چه اړول د چادر په طور د تیک بالیږ کیږی. کوکب دری په صفحه ۲۲ کی وائی د قلب په بیان کی. که چیرې چادر څلورکنجه وی لوړ دی کښته او کښته دی لوړ کړی. او که ګرد وی ښی اړخ طرف دی چپ او چپ ... ښی اړخ طرف دی وړاسته او به ډیره ته واړه وی. لکن در ولیش وائی چه د حدیثو په شرحو کی چه د قلب معنی راغلی ده هغه د دغه کیفیت نه خلاف ده.

وَلَا يَحْضُرُ اَهْلُ الذِّمَّةِ الْاِسْتِسْقَاءَ

او نه دی حاضرېږی اهل ذمه د کفارو استسقاء ته.

# بَابُ قِيَامِ شَهْرِ رَمَضَانَ

باب دئ په بيان کې د قيامي د رمضان د شپې يعنې تراويح

يو سوال! چه د روژې مياشت په دې سبب رمضان بولي چه رمض سوځنک ته وائي او دا مياشت د مسلمانانو ګناهونه سوځي۔ کوکب دری ص۲۳

وَيُسْتَحَبُّ اَنْ يَّجْتَمِعَ النَّاسُ فِيْ شَهْرِ رَمَضَانَ بَعْدَ

او مستحب دا چه سره جمع دې سې خلک په مياشت کې د روژې پس له ماسختن د لمانځه

الْعِشَاءِ فَيُصَلِّيْ بِهِمْ اِمَامُهُمْ خَمْسَ تَرْوِيْحَاتٍ

نو ودې کذارې په دوې سره امام د دوئ پنځه ترويحې (ترويحه څلور رکعته ته وائي)

فِيْ كُلِّ تَرْوِيْحَةٍ تَسْلِيْمَتَانِ

او په هره ترويحه کې دوه سلامه دې۔

مسئله! په يوه سلام څلور رکعته کول مکروه دی۔ مولوي عبدالحی۔

وَيَجْلِسُ بَيْنَ كُلِّ تَرْوِيْحَتَيْنِ مِقْدَارَ تَرْوِيْحَةٍ

او کښيني دې په مابين کې د هرو دوو ترويحو په اندازه د يوې ترويحې۔

يو سوال! چه په دغه مسئله هيڅوک عمل نه کوي۔ نه د ختم په تراويحو کې او نه د الم ترکيف په تراويحو کې۔ يعنې په مقدار د يوې ترويحې نه کښيني۔ او ودې جرم په ملايا نو دئ

مسئله! دغه د مابين په ناسته کې که څوک تسبيح وائي او که درود وائي او که نفل کوي اختيار لري۔ اما بعضي امامان تسبيح په زوره وائي او مقتديا نو غوږ ورته نيولې وي۔ په دې عقيده چه سامع لکه تالي په ثواب کې سره برابر دی۔ لکن دا خبره غلطه ده۔ د فقهي شريفې په کتابو کې وائي چه سامع لکه تالي په ثواب کې يوازې د قرآن مبارک خاصه ده۔ نو سنه دا ده چه ټول خلک جلا جلا يوشي کراړ کراړ

و وائی ۔ دا پرته او ملامتیا پر اماما نو ده وَلِس ۔

## ثُمَّ يُوتِرُ بِهِمْ وَلَا يُصَلِّى الْوِتْرَ بِجَمَاعَةٍ فِي غَيْرِ رَمَضَانَ

او بیا دی ملا وتر وکړی په مقتدیا نو سره ( یعنی وتر دی هم په جماعت وکړی) او نه دی کوی وتر په جماعت سره بیله میاشتی د روژې ۔

مسئله ! قدوری تراویح مستحب وګڼلی او دا یو ضعیف روایت دی او صحیح روایت او مذهب دا دی ۔ چه مختار د لویو فقهاؤ حنفیانو دی چه تراویح سنت مؤکد دی ۔ او دغه رنګ کول د دی ونو وته په جماعت سره هم سنت مؤکد دی ۔ او دغه شل رکعته هم سنت مؤکد دی ۔

سوال ! سنت مؤکد خو هغه دی چه رسول کریم صلی الله علیه وسلم پر هغه مواظبت کړی وی مَعَ التَّرْكِ اَحْيَانًا ۔ او سره د دې چه تراویح په جماعت سره صرف آنحضرت صلی الله علیه وسلم درې شپې کړی دی ۔ لکه په بخاری شریف ۔ مسلم شریف ۔ مشکوٰة شریف او نورو حدیثو په کتابو کے چه راغلی دی ۔ نو څرنګه تراویح او جماعت ئی سنت مؤکد بللکیږی ؟

جواب ! مواظبت یو حقیقی او ظاهری دی ۔ او بل حکمی مواظبت دی ۔ حقیقی خو ښکاره دی ۔ او حکمی دا دی چه آنحضرت صلی الله علیه وسلم د عذر په سبب مواظبت ترک کړی وی ۔ او د تراویحو مواظبت پریښودل په سبب د عذر و و ۔ ولے چه په تولو حدیثو مبارکو کے راغلی دی ۔ چه آنحضرت صلی الله علیه وسلم وائی چه زه بیریږم چه دا لمونځ یعنی تراویح به پر تاسی فرض شی ۔ نو په دې سبب زه همیشه توب نه پر کوم ۔ نو ګویا رسول کریم صلی الله علیه وسلم حکمًا مواظبت پر کړی دی ۔ کوکب دری ص۴۳

او د شل رکعت والے دلیل ئے دا دی ! چه په زمانه کے د عمر رض او عثمان رض او علی رض او ورو وسته صحابه رضی الله تعالی عنهم هم دغه شل رکعته تراویح کیدلے ۔ او دا سنت په دې سبب بولو چه آنحضرت صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی " عَلَيْكُمْ بِسُنَّتِي وَسُنَّةِ الْخُلَفَاءِ

الرّا بشدیدٍ - هدایه - کوکب دری -

پوښتنه! بعضی وخت یو څو کسه مشوره سره وکړی چه په یوه کوټه کی تراویح په حافظ القرآن پسی کوی - په دی سبب چه په مسجد کی د الم ترکیف تراویح کیږی - او یا په مسجد کی ختم القرآن کیږی لکن حافظ ډیر خطا ورځی او یا د تصحیح الحروف مراعات نه کوی - او یا فاسق وی نو د دغو خلکو تراویح صحیح دی که څنګه؟

جواب! هو صحیح دی په بحر الرائق او نورو کتابونو کی چه مکروه تحریمی دی نو دا په هغه صورت کی دی چه په مسجد کی تراویح بالکل پریښودل شی او ټول خلک دی په کورونو کی کوی - کما یدل علیه عبارة الکتب المذکورة -

مسئله! بعضی امامان په اووه ویشتم[27] د روژی د میاشتی تراویح پرین دی دا بالکل غلط کار دی - بلکه د ټولی میاشتی تراویح سنت دی -

مسئله! ښځو له په کورونو کی بیله جماعته تراویح کول په کار دی -

مسئله! بعضی امامان په روژه کی خلک بلکه ښځی د صلوة التسبیح د پاره په جماعت سره دعوت کوی - بلکه په لاؤډ سپیکر کی اعلان ورته کوی - او صلوة التسبیح هم په لاؤډ سپیکر کی اداء کوی - تا چی ښځی په کورونو کی اقتداء پسی وکړی - دا کار غلط او بی بنیاده او د غلو او مذهبو څخه خارج کار او بدعت دی ۔

---

مسئله! په تراویحو کی جماعت سنت دی دا خو د متونو خبره ده - لکن صاحب هدایه وائی چه جماعت په تراویحو کی سنت کفائی دی - او دا هم مذهب د اکثرو مشائخو دی حتی که یوه محله والا په اتفاق سره تراویح په کورونو کی اداء کوی په مسجد کی هیڅ څوک جماعت کوی نو ټوله اهل محله ګناه کاره دی او که بعضی اهل محله والا په مسجد کی په جماعت تراویح کولی او نورو په کورونو کی اداء کولی نو ټوله محله والی ګناه کار نه دی البته هغه کسان چه په کورونو کی اداء کوی د فضیلت د جماعت محروم دی - هدایه ص ۱۳۴ -

# بَابُ صَلٰوةِ الْخَوْفِ

باب دئ په بیان کې د هغه لمانځه چه په شرط د ویرې د دښمن کیږي

پوه سه! چه د صلوٰة الخوف په حدیثو کې مختلفې طریقې راغلي دي. او هر یو ئې روا دی لیکن مختار کیفیت ئې دا دی چه قدوري وائي.

## إِذَا اشْتَدَّ الْخَوْفُ جَعَلَ الْإِمَامُ النَّاسَ طَائِفَتَيْنِ

هغه وخت چه سخته شي ویره د دښمن مثلاً یا درنده یا نور نو ودې کړي مشر د لښکر خلک دوه ډلې.

پوه سه! چه شرط والی د اشتداد محض اتفاقي دئ. حکم چه نه موږ په نزد لفس نژدې والی د دښمن د صلوٰة خوف د پاره کافي دئ.

## طَائِفَةً إِلَى وَجْهِ الْعَدُوِّ وَطَائِفَةً خَلْفَهُ فَيُصَلِّي

یوه ډله وړاندې د دښمن او یوه ډله وخپله شاته. نو ادا دې کړي

## بِهٰذِهِ الطَّائِفَةِ رَكْعَةً وَسَجْدَتَيْنِ

په دغه ډله سره یو رکعت او دوې سجدې.

پوه سه! چه دا په هغه صورت کې دئ چه امام او قوم مسافر وي.

## فَإِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ السَّجْدَةِ الثَّانِيَةِ مَضَتْ هٰذِهِ الطَّائِفَةُ

پس چه سر راپورته کړي امام د دوهمې سجدې څخه ولاړه دې شي دغه ډله چه یو

## إِلَى وَجْهِ الْعَدُوِّ وَجَاءَتْ تِلْكَ الطَّائِفَةُ

رکعت ئې کړې دی وړاندې د دښمن او راشي هغه بله ډله چه د دښمن مخته ولاړه وه.

پوه سه! چه دوئ چونکه په لمانځه کې دي ځکه نو خبرې یا خوړک وغیره به نه کوي.

## فَيُصَلِّي بِهِمُ الْإِمَامُ رَكْعَةً وَسُجْدَتَيْنِ وَتَشَهَّدَ وَسَلَّمَ وَلَمْ يُسَلِّمُوْا

نو ادا دې کړي په دوی سره امام یو رکعت او دوې سجدې او امام دې التحیات ووائي او سلام دې وګرځوي ولې چه دا امام لوغ خو پوره سوا وخلک به سلام نه ګرځوي ولې چه د هغوی یو رکعت پاته دی۔

## وَذَهَبُوْا إِلَى وَجْهِ الْعَدُوِّ وَجَاءَتِ الطَّائِفَةُ الْأُوْلَى

او ولاړ دې سي دغه خلک وغاړه د دښمن۔ او راد دې سي اوله ډله۔

## فَيُصَلُّوْنَ وُحْدَانًا رَكْعَةً وَسُجْدَتَيْنِ بِغَيْرِ قِرَاءَةٍ

نو دې ادا کړي دوی یو رکعت او دوې سجدې بیله قرائته۔ ولې چه دوی حکمًا په امام پسې دي۔ نکه دا چه حکم د لاحق دی۔

## وَتَشَهَّدُوْا وَسَلَّمُوْا وَمَضَوْا إِلَى وَجْهِ الْعَدُوِّ

او التحیات دې ووائي او سلام دې وګرځوي۔ ولې چه د دوی لمونځ هم پوره سوا و ولاړ دې مخه

## وَجَاءَتِ الطَّائِفَةُ الْأُخْرَى وَصَلَّوْا رَكْعَةً وَسُجْدَتَيْنِ بِقِرَاءَةٍ

د دښمن او راد دې سي هغه بله ډله او یو رکعت او دوې سجدې دې وکړي۔ لکن په قرائت سره ولې چه دوی مسبوقین دي یعنې اول د لمانځه څخه پاتې سوي دي نو د امام څخه علاقه د دوی قطع ده۔

## وَتَشَهَّدُوْا وَسَلَّمُوْا

او التحیات دې ووائي او سلام دې وګرځوي۔

پوه سه! چه دا بالا کیفیت ابو داؤد د ابن مسعود رض څخه روایت کړی دی۔ او امام اعظم دا کیفیت مختار کړی دی۔ ولې چه سند ئې ډیر قوی دی او د دغه روایت ته ابن عبد البر ترجیح ورکړې ده۔ او همدغه کیفیت امام اوزاعی او امام اشهب مختار کړی دی۔ رد محتار۔

## فَإِنْ كَانَ الْإِمَامُ مُقِيْمًا صَلَّى بِالطَّائِفَةِ الْأُوْلَى رَكْعَتَيْنِ وَبِالثَّانِيَةِ رَكْعَتَيْنِ

او که چیری امام مقیم وو ادا دې کړي په اوله ډله سره دوه رکعته او په دوهمه سره هم دوه رکعته

پوښتنه: چه قوم په اقامت او سفر کښې تابع د امام یعنی سرلښکر دی۔

**وَيُصَلِّي بِالطَّائِفَةِ الْأُولَىٰ رَكْعَتَيْنِ مِنَ الْمَغْرِبِ وَبِالثَّانِيَةِ رَكْعَةً**

او اداء کوي دې امام په اوله ډله سره دوه رکعته د ماښام د لمانځه او په دوهمه ډله یو رکعت د ماښام په لمانځه کښې سفر او اقامت فرق نه لري۔ ولې چه درې رکعته نیمې کیږي۔

**وَلَا يُقَاتِلُونَ فِي حَالِ الصَّلٰوةِ فَإِنْ فَعَلُوا ذَالِكَ بَطَلَتْ صَلٰوتُهُمْ**

او جنګ به نه کوي په حال کښې د لمانځه او که ئې جنګ وکړو لمونځ ئې باطل شو ولې چه جنګ عمل کثیر دی او د اعمالو څخه د لمانځه نه دی۔

**وَإِنِ اشْتَدَّ الْخَوْفُ صَلَّوْا رُكْبَانًا وُحْدَانًا يُوْمُوْنَ بِالرُّكُوْعِ**

او که چیرې سخته شوه ویره د دښمن لمونځونه دې کوي پر آسانو سپاره یوانې یوانې او اشاره دې کوي

**وَالسُّجُوْدِ إِلَى أَيِّ جِهَةٍ شَاءُوْا إِذَا لَمْ يَقْدِرُوْا عَلَى التَّوَجُّهِ إِلَى الْقِبْلَةِ**

په رکوع او سجده سره و هر طرف ته چه خوښ ئې وي کله چه ئې چیرې قدرت پر مخ راوړلو د قبلې نه درلودې لقوله تعالیٰ فَإِنْ خِفْتُمْ فَرِجَالًا أَوْ رُكْبَانًا۔

تنبیه: مسلمان باید فکر وکړي چه لمونځ څومره مهم عبادت دی چه په داسې حال کښې لا هم د قضا کولو اجازه ئې نشته۔ نو افسوس پر هغه مسلمان چه سره د صحت لمونځ نه کوي او یا ئې قضا کوي۔

زموږ د معاشرې عام طبقه خصوصًا خوانان خو د سحار لمونځ بیخي قضاء کوي او ترغرمې بیده وي۔ او نه پوهیږي چه په آخرت به د دې بد فعل جواب څه وي؟

روز محشر که جان گداز بود | اولین پرسش نماز بود

پوښتنه: چه د خوف د لمانځه په باره کښې په احادیثو مبارکه وکښې ډیر ډولونه راغلي دي۔ لکن د احادیثو مبارکه و شارحان وائي چه دا اختلاف په افضلیت کښې د کوم کیفیت دی روا ټول ډولونه دي۔

# بَابُ الْجَنَائِز

باب دى په بيان کے د جنازو

پوښتنه! چه جنازه په څوک دجيم نوم د مړي دی او په ز بر دجيم نوم د هغه چار پائى يا کټ دی چه مړی پر وړی. ياد هغه تختې نوم دی چه مړی ته غسل پر ورکوى.

فائده! چونکه اکثره او غالبه مړی نه مونږ په حضور کې د قريبانو او خلکو مری نو حکه قدوری په بيان کے د دغو مړو داسی وائی.

## إِذَا احْتُضِرَ الرَّجُلُ وُجِّهَ إِلَى الْقِبْلَةِ عَلَى شِقِّهِ الْأَيْمَنِ

چه حاضر کړه سی سړی (يعنی مرګ ئی حاضر سی. يا ملائکة الموت ورته حاضر سی) نو مخ د دی کړه سی يعنی خلګ دې وقبله ته مخ کړی پر استه اړخ باندی.

فائده! قيد د رجل اتفاقی دی ولې چه د ښځې هم دغه حکم دی.

مسئله! پر اړخ پرېږدل ئې قياس پر وضع د قبر کړی دی لکن مختار او معتاد او مفتی به دا دی چه ستنی ستغ دی پرېږدی باسی. ولې چه په داسی پرې ايستو کې روح دانسان خيژی. کو بته ړو

پوښتنه! چه غالبه علامه د نزع کندن دا ده چه پښې سره ايله سی او پزه ئې کږه سی او تيکو نئي تو ره سی وغيره.

## وَلُقِّنَ الشَّهَادَتَيْنِ

او تلقين دی وړ ته کوی حاضرين وهری ته دوې کلمي د شهادت

صورة التلقين! حاضرين دی وائی، اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللّٰهِ" په داسی آواز چه دی ئی اوری. او په دې دی امر ورته کوی چه کلمه د شهادت ووايه. ولې چه حال د نزع کندن ډير سخت دی نه بايده چه ددی منع ونه کړی. نعوذ بالله من ذالك.

اللهم انا نسئلك حسن الخاتمة. ونعوذ بك من سوء الخاتمة. آمين.

## وَإِذَا مَاتَ شَدُّوْا لِحْيَاهُ وَغَمَّضُوْا عَيْنَيْهِ

او چه مړ سی نو حاضرین دی وتړی زنی د ده په یوه ټکره او سترګی دی وړانچی کړی.

د دې سره دا دئ چه د مړی خوله چه وازه وي او سترګی ئې رونې وي کتو نکو ته بد معلومیږی.

مسئله! هغه سړی چه زنی ورتړی دا سی دی وائی. بِسْمِ اللهِ وَعَلٰى مِلَّةِ رَسُوْلِ اللهِ اَللّٰهُمَّ يَسِّرْ عَلَيْهِ اَمْرَهٗ وَسَهِّلْ عَلَيْهِ مَا بَعْدَهٗ وَاَسْعِدْهُ بِلِقَائِكَ وَاجْعَلْ مَاخَرَجَ اِلَيْهِ خَيْرًا مِّمَّا خَرَجَ عَنْهُ"

فائده! د عالم حاضری ومړی ته دغه فائده لری چه دعا وکړی.

مسئله! ادنه کندن په وخت د سورة یٰسین شریف ویل په نزد ورثاهم مستحب کار دئ.

## فَإِذَا اَرَادُوْا غُسْلَهٗ وَضَعُوْهُ عَلٰى سَرِيْرٍ

هر کله چه اراده وکړی دوئ د غسل د مړی. نو ایږدی دی مړی پر یوه تخته باندی.

یوه مسئله! چه او به به ئې کښته تو یږی.

## وَجَعَلُوْا عَلٰى عَوْرَتِهٖ خِرْقَةً وَنَزَعُوْا ثِيَابَهٗ

او واږدی چوی پر عورت د ده یو پاک ټکره. او وباسی دی کالی د ده.

یوه مسئله! مراد د عورة څخه عورة غلیظه دی وبس. کذا فی الهدایه.

## وَوَضَّئُوْهُ وَلَا يُمَضْمِضُ وَلَا يَسْتَنْشِقُ ثُمَّ يُفِيْضُوْنَ

او اودس دی ورتازه کړی مګر په خوله او پزه کی دی او به نه وراچوی. او بیا دی او به توی کړی پر

## الْمَاءَ عَلَيْهِ وَيُجَمِّرُوْا سَرِيْرَهٗ وِتْرًا

مړی باندی. او خوشبو یه دی کړی تخته د مړی تاک (یعنی یو وار یا دری واره یا پنځه واره)

کیفیت ئې دا دئ چه هغه شی چه عود پکښی لګیږی یو وار یا دری واره پر تخته شا و خوا را ګرځوی. که عود نه وو او دا نور عادی خوشبویکانی وی. نو یو وار یا دری واره دی یو یو څاڅکی پر تخته شا و خوا توئ کړی.

## وَ يُغْلِي الْمَاءَ بِالسِّدْرِ أَوْ بِالْحُرُضِ

او ودی ایشوی او به په سدر (یعنی بلکونړ د ونې) یا په حرض (یعنی غاسول) کې ... چه هغې ته په پاکستان او هندوستان کې بیره وائی - او میوه ئې په بازار وکې په موسم خرڅیږی) او یا په بوټی (چه دمسکنت په دوران

## فَإِنْ لَمْ يَكُنْ فَالْمَاءُ الْقَرَاحُ

کی په هغی ځنګو کالی پریولی چه میده کړی دی) اوکه دا دوړه نه وی په خالص او یودی پریولی -

پوښتنه : چه سدر او حرض د پاره د نظافت او بنی پاک استعمالیږی -

تنبیه : بعض بی علمه اماما نو به د سدر معنی په کل سدر طالب ته کوله او دا بی ورته وویل چه سدر د خوشبویه کل نوم دی -

### تردی عجبه

یو امام د قرآن شریف ترجمه کوله د آیة "اغلی" "وَطَلْحٍ" مترجم ورته وویل "طلح" تاک یعنی دانګور درخته بولی او جاهل نه پوهیده چه طلح د کیلی درخته بولی -

### دخندا خبره

یوه اعلم وطالبانو ته د "یمین غموص" ترجمه داسې وکړه چه یمین غموص هغه دی چه سړی ته در دورسی او قسم واخلی - او دی جاهل نه پوهیدی چه ودې ته څوک په عرب یمین فورس وائی - او یمین غموص هغه دی چه پرتیر سوی کار په دروغو په قصد قسم واخلی

### هدایت

په حدیث شریف کی راغلی دی "رُبَّ تَالٍ لِلْقُرْآنِ وَالْقُرْآنُ يَلْعَنُهُ" یعنی د ډیر تلاوت کونکی د قرآن - قرآن مبارک لعنت پر وائی - په دغه حدیث کی دغسی خود ایه ترجمه کونکی د قرآن مبارک هم داخل دی بلکه په طریق اولیٰ - او په بل حدیث مبارک کی راغلی دی چه آنحضرت صلی الله علیه وسلم وائی "مَنْ كَذَبَ عَلَيَّ مُتَعَمِّدًا فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ" ترجمه : کچادر واغ وویل پر ما باندی په قصد سره نوجوړ دی کړی خپل ځای په اور کی - لفظ د حدیث امر دی او په معنی د اخبار دی یعنی ځای ئی په دوزخ کی جوړ کړی -

نو تاسی فکر وکړی چه پر علیه السلام دروغ ویل دا ئی جزاء ده - نو هغه امام چه پر خدائ پاک باندی دروغ وائی یعنی چه ترجمه د قرآن مبارک غلط کوی د هغه به

خه جزاء وی ۔ نعوذ باللہ من الجرئۃ والکذب علی اللہ ورسولہ ۔

سبب د د اسی غلطی ترجمې او پر پاک خدای او پر رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم د د رواغو ویلو خه دی ۔ هغه دا دی چه د غه جاهل امام یوه لویه ملائی یا امامت کیږ ی وی ۔ نو دپاره د اظهار دد چه زه یو عالم مترجم یم او د هغو علماؤ سره چه یه صحیح توګه د قران مبارک ترجمه کوی او یا حدیث د ر سوی برابر یم ۔ نو دی هم پر دغو د رواغو پر خدای او پر رسول صلعم دلاوره سی ۔ مطلب دا چه د پارہ د دنیا پر خدای او پر رسول صلعم دروغ وائی ۔ العیاذ باللہ من جمیع المال والمتاع بمثل هذه الا کاذیب المردیۃ ۔

برادران گرامی ! د اتوحنبری په توګه د جمُل معترضه راغلې او س اصلی مطلب ته څو ۔

مسئلہ ! تاسی پوهیږی چه غرض د استعمال د سدر یا د بیر وغو څخه نظافت یا پاکی د مسلمان مړی وی او وه ۔ نو چونکه په نظافت کی صابون تر هغو دو بالا دی ۔ نو که هغه د وه نه وه نکه په نننی زمانه کی خصوصًا په ښار و کے نو لس صابون دی په او بو کے وا یشوی ۔

مسئلہ ! عادت د اسی دی چه اول وار او دوهم وار مړی په ساده او بو منځی او بیا د رییمه پلا کے سدر یا حرض استعمالوی ۔ لکن مسئله دا ده چه د رو سره وار و کے د غه د و استعمال کړی چه بنه نظافت راسی ۔

---

## وَيَغْسِلُ رَأْسَهُ وَلِحْيَتَهُ بِالْخِطْمِيِّ

او وریږی دی منځی سر او ږیره د مړی په خطمی چه د یو مشهور بوټی نوم دی ۔

فائده ! د د ې نه دا معلومیږی چه مسلمان باید ږیره ولری ۔

---

## ثُمَّ يُضْجِعُ عَلٰى شِقِّهِ الْاَيْسَرِ فَيُغْسَلُ بِالْمَاءِ وَالسِّدْرِ

او بیا دی پریږی باسی مړی پر چپه بغل باندې ۔ او بیا دی مینځی مړی په او بو او په سدر

---

## حَتّٰى يُرٰى اَنَّ الْمَاءَ قَدْ وَصَلَ اِلٰى مَا يَلِي التَّخْتَ مِنْهُ

تر هغو چه دا معلومه سی چه او به ورسیدې و هغه طرف ته د مړی چه په تخته پو ری دی ۔

## ثُمَّ يُضْجَعُ عَلٰى شِقِّهِ الْاَيْمَنِ فَيُغْسَلُ بِالْمَاءِ وَالسِّدْرِ

او بیا دې پرې ایستل سي مړی پر ښی استه بغل او پرې دې مخل سي په اوبو او سدر، سره تر هغو

## حَتّٰى يُرٰى اَنَّ الْمَاءَ قَدْ وَصَلَ اِلٰى مَا يَلِي التَّخْتَ مِنْهُ

چې دا معلومېږي چه اوبه ورسېدې وهغه طرف ته د مړي چه په تخته پورې دی.

## ثُمَّ يُجْلِسُهُ وَيُسْنِدُهُ اِلَيْهِ وَيَمْسَحُ بَطْنَهُ مَسْحًا رَفِيْقًا

او بیا دې کښېنوي مړی او تکیه دې کړي غاسل وځان ته او لاس دې تېر کړي پر نس د مړي په نرمي

## فَاِنْ خَرَجَ مِنْهُ شَيْءٌ غَسَلَهُ وَلَا يُعِيْدُ غُسْلَهُ

سو که نو که راووتی د نس څخه د مړي یو څه شی (مردار) هغه دې پرې مینځي او غسل دې نه راګرځوي

## مسائل

نر به و نر ته غسل ورکوي او ښځه به وښځې ته. او د ښځې غسل و نر ته یا د نر غسل وښځه ته نه دی روا. او که چیرې مړی نر او کوچنی وي چه اشتها نه وي نو کېدل ښځې غسل ورکولای سي. وهکذا که مړه ښځه وه او ډېره کوچنۍ وه چه اشتها نه وه نو کېدل نر غسل ورکولای سي. او په ضرورت کې ماینه مېړه ته غسل ورکولای سي. او مېړه وماینې ته غسل نه سي ورکولای. او مېړه ته یې مسه کول هم نا روا دي. او ورته کتل روا دي په اصح روایت کې. کوکب دري ص [illegible]

## ثُمَّ يُنَشِّفُهُ بِثَوْبٍ وَيَجْعَلُهُ فِيْ اَكْفَانِهِ

او بیا دې وچ کړي په یوه ټکره سره (چه کفنونه یې لانده نه سي) او بیا دې وپېچل سي مړی په کفنو کې.

## وَيُجْعَلُ الْحَنُوْطُ عَلٰى رَأْسِهِ وَلِحْيَتِهِ وَالْكَافُوْرُ عَلٰى مَسَاجِدِهِ

او ودې ګرځول سي (ودې مښي) حنوط (چه یو مرکب خوشبويي ده) پر سر
(چه هم خوشبويي ده) د سجدې پر ځایو ور ومښي.

د سجدې ځایونه تندی، پزه، زنګنونه او ورغوي دي.

وَالسُّنَّةُ اَنْ يُّكَفَّنَ الرَّجُلُ فِيْ ثَلٰثَةِ اَثْوَابٍ اِزَارٌ وَّ

او سنت طریقه د کفن دا ده چه کفن ورکول سی نارینه په درو جامو کي چه ازار او قمیص

قَمِيْصٌ وَّلِفَافَةٌ فَاِنِ اقْتَصَرُوْا عَلٰى ثَوْبَيْنِ جَازَ

او لفافه دی- او که چیری خلکو بس والی وکړی پر دوو جامو هم روا دی-

دلیل د دي دا دی! چه په بخاری شریف او نورو کتابو د حدیثو کی دا الفاظ راغلی دی چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم کفن دری سپینی جامي د پنبي جوړي سوي وو، یو ځای سره! چه دلیسته په وخت کی یوه جامه هم بس ده- ولی چه د مصعب بن عمیر رض کفن یوه شړی چه هغه هم سر تر پښو نه رسیدله- نو علیه السلام امر وکړی چه سر پټ کړی او پر پښو ئی دا اذخر واښه ور واچوئ- کذا فی البخاری وغیره-

وَاِذَا اَرَادُوْا لَفَّ اللِّفَافَةِ عَلَيْهِ ابْتَدَؤُا بِالْجَانِبِ

او څه وخت چه اراده وکړی خلک د پیچلو د لفافي پر مړی نو شروع دی وکړي په چپه

الْاَيْسَرِ فَلَفُّوْهُ عَلَيْهِ ثُمَّ بِالْاَيْمَنِ

طرف او پر مړی دی واچوی او وروسته نه راسته طرف دی پر واچوی چه راسته بالاسی-

## طریقه د کفن

اول دی پر یو ځای لفافه وغوړوی- او وروسته دی ازار پر وغوړوی- بیا دی په مړی قمیص واغوندی او پر ازار دي کښنین دی- او د ازار چپه طرف اول راسته طرف دی وروسته پر راواړوی- او لفافه دی وروسته هم پر هغه کیفیت راواړوی-

فَاِنْ خَافُوْا اَنْ يَّنْتَشِرَ الْكَفَنُ عَنْهُ عَقَدُوْهُ بِخِرْقَةٍ

او که ویریدل خلک چه کفن به د مړی څخه واوړی نو و دی تړي په یوه ر سنکی نه ۲-

وَتُكَفَّنُ الْمَرْاَةُ فِيْ خَمْسَةِ اَثْوَابٍ اِزَارٌ وَّ قَمِيْصٌ

او کفن دی کړه سی ښځه په پنځو جامو کي- هغه دا- ازار- قمیص-

وَخِمَارٌ وَخِرْقَةٌ تُرْبَطُ بِهَا ثَدْيُهَا وَلِفَافَةٌ فَإِنْ

اوپوړنۍ - او یو ټکړ چه په هغه ئې تی وړ وتړي - او بله لفافه ده - او که ئې چیرې

اِقْتَصَرُوْا عَلَى ثَلٰثَةِ اَثْوَابٍ جَازَ

بس والې وکړې د ښځې په کفن کې پر درې جامو باندې روا دي -

فائده! ودې ته کفن کفایت وائي - او دا درې جامې به ازار - لفافه او خمار وي -

ترتیب د کفنونو ښځې دا دی - (۱) ازار (۲) خرقه (۳) قمیص (۴) خمار (۵) لفافه - لکه چه وائي -

وَيَكُوْنُ الْخِمَارُ فَوْقَ الْقَمِيْصِ وَتَحْتَ اللِّفَافَةِ وَ

او وي دې پوړنۍ پر قمیص لوړ او تر لفافې لاندې - او وادې چوي

يُجْعَلُ شَعْرُهَا عَلٰى صَدْرِهَا وَلَا يُسَرَّحُ شَعْرُ الْمَيِّتِ

ویښتان د ښځې پر حینګر باندې - او نه دې ږ موښوي ویښتان د مړي که نروي او که ښځه

وَلَا لِحْيَتُهٗ وَلَا يُقَصُّ ظُفْرُهٗ وَلَا شَعْرُهٗ

او نه دې ږ موښوي ږیره د ده - او نه دې پرې کوي نوکان د مړي (که څه هم لوی وي) او نه دې

ویښتان ورېږي کوي - (ولې چه دا جزء د انسان دی او د انسان جزء پس له مرګه پرېکول

ناروا دي - لکه ناسنت کوچنی چه سنت نه وي -)

وَتُجَمَّرُ الْاَكْفَانُ قَبْلَ اَنْ يُّدْرَجَ فِيْهَا وِتْرًا

او خوشبوئي دې کړي کفنونه د هغه تر دې چه پیچل کیږي مړي په هغو کې لګن تاک -

ولې چه آنحضرت صلی الله علیه وسلم د خپلې مړې لور په کفنونو کې داغسې امر وکړی -

فَاِذَا فَرَغُوْا مِنْهُ صَلَّوْا عَلَيْهِ

پس چه فارغ سي د غسل او د کفن څخه نو بیا دې د جنازې لمونځ ور کړي -

## مسائل

د جنازې لمونځ فرض کفایه دی. لکه تکفین. تجهیز چه د اتوله په اجماع د امت ثابت دی. او منکر ئې کافر دی. درمختار. او شرطونه ئې شپږ دی!

(۱) اسلام د مړي دی. و کافر ته د جنازې لمونځ نه دی روا.

(۲) پاکوالی د مړي دی. نو تر غسل د مخه د جنازې لمونځ نه دی روا.

(۳) حضور د مړي دی. نو غائب ته د جنازې لمونځ نه دی روا.

سوال! آنحضرت صلعم و نجاشی ته غائبانه لمونځ وکړی. کما في البخاري ومسلم وغيرهما.

جواب! هغه د آنحضرت صلعم خاصه ده کما في العيني وفيض الباري.

(۴) په مخکښې پروت وي یا پر ډیره کښېنه چارپائی. نو که مړي پر دابه و و یا په موټر کې و و. د جنازې لمونځ ئې نه دی روا.

(۵) لوی حصه د مړي به د امام و مخ ته وي. نو که مړی ګرده ترشا وي د جنازې لمونځ ئې نه دی روا.

(۶) مړي به د قبلې و خوا ته وي او د جنازې په لمانځه کې څلور تکبیره فرض دی او رکن دی. او بل په و الارې به ئې اداء کوي. حتی چه بیله عذره په ناستی نه دی روا.

### او سنت ئې دا دي!

تر اول تکبیر وروسته "سبحانك اللهم الخ" تر دوهم تکبیر وروسته درود پر علیه السلام با ندی. تر دریم تکبیر وروسته دعا د مړي "اللهم اغفر لحينا الخ" او که دا نه وه نو دعاء "اللهم ربنا الخ" دی ووائی. او تر څلورم تکبیر وروسته دی سلام وګرځوی. قنية / زاهدي. در

# وَأَوْلَى النَّاسِ بِالْإِمَامَةِ عَلَى الْمَيِّتِ السُّلْطَانُ إِنْ حَضَرَ فَإِنْ لَمْ يَحْضُرْ فَنَائِبُهُ

او ښه د خلکو په امامت سره پر جنازه باندی باچا دی که حاضر وو که باچا نه وو حاضر بیا نائب دده دی

مسئله! قاضی د محکمی یا والی د ولایت په حکم کې د سلطان دی.

# فَإِنْ لَمْ يَحْضُرْ فَيُسْتَحَبُّ تَقْدِيمُ إِمَامِ الْحَيِّ ثُمَّ الْوَلِيُّ

که باچا حاضر نه وو نو مستحب ده چی د کلی د مسجد ملا دی د مخه کړي او که هغه هم نه وو نو بیا د ئې قریب دی لمونځ ورکړي.

# فَإِنْ صَلَّى عَلَيْهِ غَيْرُ الْوَلِيِّ وَالسُّلْطَانِ أَعَادَ الْوَلِيُّ

او که لمونځ ورکړه غیر د ولی او باچا لمونځ دی بیرته ولی او ګرځوی. که خوښه وه لازمه نه ده چه حتماً ئې راګرځوی

وَاِنْ صَلّٰى عَلَيْهِ الْوَلِيُّ لَمْ يَجُزْ اَنْ يُّصَلِّيَ عَلَيْهِ اَحَدٌ بَعْدَهٗ

او که لمونځ وکړی د جنازې قريب تر ټولو دی نو بيا چه لمونځ وکړی ورپسې ته هيڅوک پس له قريبه

فَاِنْ دُفِنَ وَلَمْ يُصَلِّ عَلَيْهِ صُلِّيَ عَلٰى قَبْرِهٖ اِلٰى ثَلٰثَةِ

او که مړی ښخ شو او چا لمونځ نه وه کړی۔ نو و قبر ته د ده دی لمونځ وکړی تر درې

اَيَّامٍ وَلَا يُصَلّٰى بَعْدَ ذٰلِكَ

ورځو پورې۔ او پس له درو ورځو دی د جنازې لمونځ نه وه کوی۔

وَيَقُوْمُ الْمُصَلِّيْ بِحِذَاءِ صَدْرِ الْمَيِّتِ

او ودی درېږی لمونځ وکوونکی يعنی امام پر برابر د ځيګر د مړی که سړی وی او که ښځه۔

او امام شافعیؒ وائی چه د نر د ځيګر پر برابر او د ښځې د فرج پر برابر دی درېږی۔
موږ وايو چه په ځيګر کې زړه دی او په زړه کې نور د ايمان دی او د جنازې لمونځ د ايمان
د شفاعت د پاره دی۔

وَالصَّلٰوةُ عَلَى الْجَنَازَةِ اَنْ يُّكَبِّرَ تَكْبِيْرَةً يَّحْمَدُ اللّٰهَ عَقِيْبَهَا

کيفيت د جنازې د لمانځه دادی چه الله اکبر دی ووائی يو واره او حمد د خدای پاک دی و وائی پس له هغه (يعنی سبحانک اللّٰهم

مسئله ! زموږ په مذهب کی د جنازې په لمانځه کې قرائت د قرآن نشته۔ حتی
" الحمد لله " آيات دی هم نه وائی۔ مګر په نيت د حمد او تسبيح۔

ثُمَّ يُكَبِّرُ تَكْبِيْرَةً ثَانِيَةً وَيُصَلِّيْ عَلَى النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ

او بيا دی دوهم تکبير ووائی۔ او درود دی ووائی پر نبی عليه الصلوٰة والسلام

ثُمَّ يُكَبِّرُ تَكْبِيْرَةً ثَالِثَةً يَدْعُوْ فِيْهَا لِنَفْسِهٖ وَلِلْمَيِّتِ وَلِلْمُسْلِمِيْنَ

او بيا دی دريم تکبير ووائی او دعا دی وکړی په هغه کی وځان ته او ومړی ته او ټولو مسلمانانو ته
هغه دا ده ! اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِحَيِّنَا وَمَيِّتِنَا وَشَاهِدِنَا وَغَائِبِنَا وَذَكَرِنَا وَاُنْثَانَا

وصغيرنا وكبيرنا۔ اللّٰهمّ من احييته منا فاحيه على الاسلام ومن توفيته منا فتوفه على الايمان،

## ثمّ يكبّر تكبيرة رابعة ويسلّم عقيبها ولا يرفع يديه الا في تكبيرة الاولى

وروسته دې تکبير وائي څلرم تکبير او سلام دې وګرځوي وروسته تر تکبير او نه دې پورته کوي لاسونه مګر په اول تکبير کې۔

## ولا يصلّى على الميّت في مسجد جماعة

او لمونځ دې نه کوي پر مړي باندې په مسجد جماعت کې (چه پنځه وخته لمونځ پکښې کيږي)

مسئله! په مسجد کې د مړي لمونځ روا نه دې که مړې او خلک دواړه په مسجد کې وي۔ او که مړې په مسجد کې وي او خلک د باندې وي۔ او که مړې د باندې او خلک په مسجد کې وي۔

## فاذا حملوه على سريره اخذوا بقوائمه الاربع

چه خلک واخلي مړې پر چارپائي باندې۔ نو ودې نيسي خلک څلور پښې د چارپائي

## ويمشون به مسرعين دون الخبب

او وعادې تګ دې کوي لکن لږ چابک۔ تر ځاستې کم۔

په حديث کې راغلي دي چه آنحضرت صلى الله عليه وسلم وويل، عجّلوا موتاكم فان يك خيرا قدّمتموه اليه وان يك شرّا القيتموه عن اعناقكم"

مسئله! جنازه په موټر کې وړل په نن زمانه کې روا دي۔ په سبب د عذر د لیرې والي د قبرستان۔

مسئله! د احنافو په نزد خلک به تر جنازې وروسته ځي او دا افضله طريقه ده که څه هم وړاندې والې د جنازې هم روا دي۔ کوکب دري ص۲۵

مسئله! که جنازه پر پښو روانه وه د خلکو په موټر انو کې سپر تيا متصل په جنازه پسې مکروه دي نو سپاره خلک دې يو څه فاصله وروسته پسې روان وي۔ عيني۔

## فَإِذَا بَلَغُوا إِلَى قَبْرِهِ كُرِهَ لِلنَّاسِ أَنْ يَّجْلِسُوا

او چه ورسیږي خلک وقبرته د مړي نو بد کار دی خلکو لره چه کښیني

## قَبْلَ أَنْ تُوضَعَ عَنْ أَعْنَاقِ الرِّجَالِ

دمخه تر دې چه جنازه کښیښته کیږي دغاړو څخه د خلکو۔

ولې چه ضرورت وخلکوته پیدا نه سي په ایښودلو کې د جنازې۔ د جنازې د اخستلو طریقه دا ده چه اول دي د مخ پښه د چارپائي پرخپله راسته اوږه کښیږدي۔ او بیا دي د چارپائي وروسته پښه پر راسته اوږه کښیږدي۔ او بیا دي د چارپائي د مخه پښه پرخپله چپه اوږه کښیږدي۔ او بیا دي وروسته پښه پرخپله چپه اوږه کښیږدي۔ چه په حدیث شریف کې راغلي دي که چا څلور واره د مړي جنازه واخستله د مړي حق ئې ورپرځای کړی۔

## وَيُحْفَرُ الْقَبْرُ وَيُلْحَدُ وَيُدْخَلُ الْمَيِّتُ مِمَّا يَلِي الْقِبْلَةَ

او ودې کښل سي قبر او لحد دي ورکړل سي او داخل دي کړل سي مړی د طرفه څخه د قبلې۔

مسئله! ښه دا ده چه قبر دې د مخه تر لحد د سړي په قده د نیم قامت غاړ کړي۔ او که ئې تر د غه زیات غار کړي ډیر به ښه وي۔

مسئله! لحد سنت دی آنحضرت صلی الله علیه وسلم وائي ”اَللَّحد لَنَا وَالشَّقُّ لِغَيْرِنَا“ یعنی لحد زموږ مسلمانانو دی او شق د نورو خلکو دی۔ لکن دا هلته چه ځمکه لحد منی یعنی ډیره مړه او ښه نه وي چه د ستي و نړیږي۔

مسئله! شافعیان و غیرهم مړي پر تخته ایږدي او و قبر ته د پښو د خوا ور ښویوي۔ موږ وایو چه دا د مسلمان اهانت او سپکاوی دی۔

## فَإِذَا وُضِعَ فِي لَحْدِهِ قَالَ الَّذِي يَضَعُهُ بِسْمِ اللهِ وَ

او چه ایږدي مړئ په لحد کې وائي دي هغه څوک چه مړی ایږدي دا کلمه ”بسم الله الخ“ یعنی ابتداء

## عَلَى مِلَّةِ رَسُولِ اللهِ وَيُوَجَّهُ إِلَى الْقِبْلَةِ

په نامه د خدای کوم او پر ملت د علیه السلام تا این دم په قبر کې۔ او مخ د مړي دي د قبلې خواته مائل کړي

## وَيُحِلُّ الْعُقْدَةَ وَيُسَوِّي اللَّبِنَ عَلَيْهِ وَيُكْرَهُ الْآجُرُّ وَالْخَشَبُ

او خلاصه دی کړی هغه غوټی د کفن (ولی چه اوس ضرورت ورته نشته) او سمی دی کړی خښتی ولحد ته او مکروه دی پخی خښتی او لرګی (ولی چه پخی خښتی او ر مسح کړی دی او لرګی د عمارت د پاره دی)

مسئله! بعضی ځایونه چه او می خښتی نه وی نو که په اکثرو بنار وکی د پاکستان نو بیا دی پخی استعمال کړی۔ **خو د ضرورت د کبله کراهت نه لری لان الضرورة تبیح المحظور**

## وَلَا بَأْسَ بِالْقَصَبِ

او پر وانسته د نلانو په اچولو سره یعنی پر خښتو سر بیره۔

په جامع صغیر کی راغلی دی چه علیه السلام په قبر کی یوه عین نلان واچول شوه۔

## ثُمَّ يُهَالُ التُّرَابُ عَلَيْهِ وَيُسَنَّمُ الْقَبْرُ وَلَا يُسَطَّحُ

او بیا دی په ارام سره خاوری ر واچوی قبر ته۔ او بو کندار دی کړی قبر او د کا نچه کوی دی ئی نه۔

ابراهیم نخعیؒ روایت کوی چه ما ته وویل هغه چا چه ده قبر د نبی علیه السلام او د ابوبکرؓ او عمرؓ لیدلی وو۔ چه هغه د ری سره مسنم وه۔

مسئله! دیر جګول د قبر مکروه دی۔ سنت طریقه دا ده چه لمن د قبر دی په اندازه د یوی لوېشتی ر اولی او پر ما بین د ی مسنم کړی۔

مسئله! په ګچو یا په سیمیټو جوړول د قبر اتناقا مکروه دی۔ البته متأخرینو په ختو جوړول د قبر اجازه کړی ده۔

مسئله! پر قبر دی خونه نه جوړ وی۔ ولی چه علیه السلام وائی، لَا تُجَصِّصُوا الْقُبُوْرَ وَلَا تَبْنُوْا عَلَيْهَا وَلَا تَقْعُدُوْا عَلَيْهَا، ترجمه! تاسی په ګچو مه سموئ قبرونه او بنا مه کوی پر قبر و بنا ندی او مه کښینئ پر قبرو۔

## افسوس صد افسوس

چه په نننۍ زمانه کی د بنار تول ګړه او مردار ی په ادیره کی اچول کیږی او بیا چه هغه ګړه حکومت لیری کړی او قبرو نه آواره سی خدا نا ترسه کسان پر هغه ځائ او به رااېله کړی چه قبرونه ونړیږی او بیا هغه نار وا سړی [۲] د هغو قبرو په مابین کی کندکاو نولی کوی۔ او سپی پکښی جنګوی او ادیره په اوس وخت کی د چرسیانو او هیروینانو اډه وی۔

هغو قبرو سرای جوړ کړی یا دوکانونه بلکه اکثرو هدیروته نژدی کوڅ و وام

او پایلوچان په ادیره کې خیل نږ او ښځه سره معلومېږي. دا ټول کارونه د اسلامیت او انسانیت څخه خلاف دي. اسلامي حکومت ته لازم دی چه ددې کارونو مخنیوی وکړي. او د مسلمانانو ادیرې د دیوال په ذریعه محفوظ کړي. لکن هیهات.

مسئله! د قبرو سره لویه ډبره یا د بري شنخته د پاره د معلومولو د قبرو اقرباو ته د مړي روا ده. لکن د قران شریف سورة یا آیة پرلیکل په اجماع د امتِ مرحومه د علماؤ ناروا ده.

## وَمَنْ اِسْتَهَلَّ بَعْدَ الْوِلَادَةِ سُمِّيَ وَغُسِّلَ وَكُفِّنَ وَصُلِّيَ عَلَيْهِ

او که یو کوچنی پس له زیږیدو آواز وکړي (یعنې ویې ژړل) نوم دې پرکښیښودل شي او غسل دې ورکړل شي او کفن دې ورکړل شي. او لمونځ د جنازې دې ورکړل شي.

پوره مسئله! چه شرط دا نه دی چه ژړا دې وي بلکه د ژوند هره علامه چه پرښکاره شي لکه لاس یا پښه سنبوړول یا بل د غسې کار کول. وهغه ته غسل او لمونځ باید ورکړل شي. او نوم دې هم پرکښیږدي.

## وَاِنْ لَّمْ يَسْتَهِلَّ اُدْرِجَ فِيْ خِرْقَةٍ وَدُفِنَ وَلَمْ يُصَلَّ عَلَيْهِ

او که ئې آواز ونه کړي نو په ټکره کې دې ونغښتي او ښخ دې کړي او لمونځ دې نه ورکوي.

مسئله! په غسل ورکولو کې دداسې کوچني دوه روایته راغلي دي. صحیح دا ده چه غسل دې ورکړل شي. لکن په هدایه کې وائي چه غسل دې ورکړي. وهو المختار والله اعلم بالصَّواب.

مسئله! چونکه په نني زمانه کې د سلطان اعظم حضور وجنازې ته تقریبا د بین تللی دی او نائب د هغه چه په اصطلاح والي ئې بولي یا کومېدان یو فاسق او فاجر سړي وي په اکثرو ممالک اسلامي کې. نو اوس قاضي د ولایت یا د ولسوالۍ احق بالامامت دی. درویش.

مسئله! ولي به هغه ولي د جنازې لمونځ ورکوي چه مړي ته په نسب نژدې دی ثم الاقرب فالاقرب او که په درجه کې د قرابت سره برابر وو نو هغه مشر دی د مخه شي. عیني.

# بَابُ الشَّهِيْدِ

باب دی په بیان کی د احکامو د شهید

## اَلشَّهِيْدُ مَنْ قَتَلَهُ الْمُشْرِكُوْنَ

شهید هغه څوک دی چه مړ ئې کړی مشرکان ۔

یوه مسئله! چه مراد د مشرک څخه دلته مطلق کافر دی ۔ که مشرک وی لکه هندو ۔ یا یهودی وی یا نصرانی وی ۔ یا دهری وی لکه روسان ۔

فائده! هغه څوک چه باغیان یا د لارې غله مړ کړی هغه په حکم کی د وژل سوی د کافر دی ۔

## اَوْ وُجِدَ فِي الْمَعْرَكَةِ وَبِهِ اَثَرُ الْجِرَاحَةِ

او یا پیدا کړل سی په میدان کی د جنګ مړ او په بدن ئې تاثیر د تپ وی

## اَوْ قَتَلَهُ الْمُسْلِمُوْنَ ظُلْمًا وَلَمْ يَجِبْ بِقَتْلِهِ الدِّيَةُ

او یائې مړ کړی مسلمانان ناحقه او نه وی واجب په وژلو د ده سره دیت بلکه قصاص واجب وی

حاصل دا چه په قصد ئې په آله د قتل مړ کړی که چا سنګار و یشتی یا ئې نېزان ویشتی ۔ یا یوه سړی بل په لغته وهلی او هغه مړ سو ۔ په دې قتل کی دیت ستر قصاص نستر ۔ نو هغه ته شهید په شرع شریف کی نه وائی ۔

فائده! ننن صبا په دنیا کی مسلمانان یو د بله سره وژنی خصوصًا په افغانستان کی ۔ نو کوم څوک شهید دی او مقتول ظلمًا دی ۔ نو واوره! چه په تولو کتابو کی د تفسیرو او حدیثو او د فقه د خلورو مذهبو وائی چه د دې وژنی په حق دی او نور ی وژنی تولی ناحقه او ظلم دی ۔

(۱) چه یو مسلمان د اسلام څخه و بل دین ته واوړی (العیاذ بالله) (۲) وژل د هغه سړی چه ناحقه ئې مسلمان یا اهلِ ذمه وژلی وی ۔ چه دې ته قصاص په شرع کی وائی (۳) چه ما ینه لری او زنا و کړی او شاهدان خلور نفره پر تیر سی ۔ چه دې ته رجم وائی ۔

سوال! پلار چه زوی په قصد مړ کړی پلار نه پر قصاص کیږی نو دا زوی ئې شهید نه دی؟

جواب! ابتداءً په دغه قتل سره خو قصاص پر پلار واجب دی ۔ لکن وروسته شرع شریف

قصاص حتی ساقط کړی په سبب [illegible] فت او د حق د پلار کلوی او دیت ئی پر لازم کړی.
نو نه وی ئی شرعا شهید دی - زاد فی رد المختار والهدایه والکوکب.

**فَيُكَفَّنُ وَيُصَلَّى عَلَيْهِ وَلَا يُغَسَّلُ وَإِذَا اسْتُشْهِدَ**

نو کفن دی ورکړه سی و دغه شهید ته. او لمونځ د جنازې دی ورکړه سی او غسل دی نه ورکول کیږی (دا مسئله اتفاقی ده)

**الْجُنُبُ غُسِّلَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَكَذَٰلِكَ الصَّبِيُّ**

او که چیری شهید کړه سو هغه څوک چه د هغه جنب و غسل دی ورکړه سی د جنابت له سببه په
نزد د امام اعظم ابی حنیفة رح او همدغسی دی حکم د نا بالغ (یعنی غسل دی ورکړه سی)

**وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ لَا يُغَسَّلَانِ وَلَا يُغْسَلُ عَنِ الشَّهِيدِ**

او ویلی دی امام ابو یوسف رح او امام محمد رح چه غسل دی نه ورکول کیږی شهید جنب او کوچنی شهید ته. او نه دی مینځی

**دَمُهُ وَلَا يُنْزَعُ عَنْهُ ثِيَابُهُ وَيُنْزَعُ عَنْهُ الْفَرْوُ وَالْحَشْوُ**

د شهید څخه وینی د ده. او نه دی کالی د شهید څخه جامې د بدن د ده او کالی به د شهید څخه پوستین د ده

**وَالْخُفُّ وَالسِّلَاحُ وَمَنِ ارْتُثَّ غُسِّلَ وَالْارْتِثَاثُ أَنْ يَأْكُلَ**

او چینه او موزې او دغه رنګه بولتونه یا چنبل یا مچنی او کالی به د ده څخه د وسله یعنی توره یا توپک کلاشنکوف
وغیره. کرچا پس له تپی کید و څخه د ژوند نښه او حرکت وکړی نو دی غسل ورکړه سی. او ارتثاث دادی چه خوراک وکړی

**أَوْ يَشْرَبَ أَوْ يُدَاوَى أَوْ يَبْقَى حَيًّا حَتَّى يَمْضِيَ عَلَيْهِ وَقْتُ صَلَاةٍ**

یا څښاک وکړی یا دوا وکړی یا باقی ژوندی وی چه پر ده تیر سی وخت د لمانځه او دی په سد کی وی پوهیږی. او یا

**أَوْ يُنْقَلَ مِنَ الْمَعْرَكَةِ حَيًّا وَمَنْ قُتِلَ فِي حَدٍّ أَوْ قِصَاصٍ غُسِّلَ وَصُلِّيَ**

واېستل سی د جنګ د میدان څخه ژوندی. او څوک و وژل سو په حد (لکه رجم) یا په قصاص کی غسل دی ورکړی او لمونځ د جنازې دی

**عَلَيْهِ وَمَنْ قُتِلَ مِنَ الْبُغَاةِ وَقُطَّاعِ الطَّرِيقِ لَمْ يُصَلَّ عَلَيْهِ**

وکړی او که څوک د باغیانو څخه و وژل سو او یا د لاره وهونکو څخه نو لمونځ دی نه ورکول کیږی ورته.

# بَابُ الصَّلٰوةِ فِى الْكَعْبَةِ

باب دئ په بیان کې د لمانځه په خونه کې د کعبې مکرمې

## اَلصَّلٰوةُ فِى الْكَعْبَةِ جَائِزَةٌ فَرْضُهَا وَنَفْلُهَا

لمونځ په خونه کې د کعبې شریفې روا دئ فرض ئې او نفل ئې۔

داهم زمونږ مذهب دئ۔ او امام شافعيؒ وائي چه هیڅ لمونځ په خونه کې د کعبې شریفې نه دئ روا۔ په صحیح حدیث کې چه روایت ئې امام بخاريؒ او نورو کتابو کړئ دئ۔ راغلی دی چه آنحضرت صلی الله علیه وسلم په کال د فتحې د مکې شریفې داخل سو و مکه معظمه ته او دوه رکعته نفل ئې پکښې وکړه۔ نو دا که څه هم نفل وه لکن فرض لمونځ پر قیاس دئ

## فَاِنْ صَلَّى الْاِمَامُ فِيْهَا بِجَمَاعَةٍ فَجَعَلَ بَعْضُهُمْ

نو که امام لمونځ کاوه په خونه کې د کعبې شریفې په جماعت سره نو وګرځول بعضو مقتدیا نو

## ظَهْرَهٗ اِلٰى ظَهْرِ الْاِمَامِ جَازَ

شا خپله و شا ته د امام نو روا دئ۔ (ولې چه امام او دغه مقتدیان ټول مخامخ ویو دیوال ته د کعبې دی

## وَمَنْ جَعَلَ وَجْهَهٗ مِنْهُمْ اِلٰى وَجْهِ الْاِمَامِ جَازَ وَيُكْرَهُ

او دغه قدر کافی دی) او که چا وګرځاوه مخ خپل د مقتدیانو څخه وخ ته د امام لمونځ ئې روا دئ (ولې چه د مقتدی مخ هم ویوه دیوال ته کعبې شریفې دئ) لکن مکروه دئ۔

## وَمَنْ جَعَلَ مِنْهُمْ ظَهْرَهٗ اِلٰى وَجْهِ الْاِمَامِ لَمْ تَجُزْ صَلٰوتُهٗ

او که چا وګرځول د مقتدیانو څخه شا خپله وخ ته د امام د هغو مقتدیانو لمونځ نه دئ روا (ولې چه تر امام مخکې د امام

## وَاِذَا صَلَّى الْاِمَامُ فِى الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ تَحَلَّقَ النَّاسُ

په جهت کې ولاړ دی) او که امام لمونځ کاوه په مسجد حرام کې یعنې په مسجد کې د کعبې شریفې نو شاوخوا دی راوګرځي

## حَوْلَ الْكَعْبَةِ وَصَلَّوْا بِصَلٰوةِ الْاِمَامِ

خلک پر کعبه شریفه اولمونځ دی کوی د غه خلق په لمانځه دامام سره (یعنی په جماعت سره)

## فَمَنْ كَانَ مِنْهُمْ اَقْرَبُ اِلَى الْكَعْبَةِ مِنَ الْاِمَامِ

پس هغه سړی چه وی د مقتدیانو څخه نژدې وکعبې شریفې ته تر امام لمونځ ئې روادی۔ که چیرې

## جَازَتْ صَلٰوتُهٗ اِذَا لَمْ يَكُنْ فِىْ جَانِبِ الْاِمَامِ

په طرف کی د امام نه وو ولی چه د امام په طرف کی چه وی خو تر امام د غه سوالی د اروانه دی)

## وَمَنْ صَلّٰى عَلٰى ظَهْرِ الْكَعْبَةِ جَازَتْ صَلٰوتُهٗ

او که چا لمونځ وکړی پر بام د کعبې شریفې نو لمونځ ئې روادی۔

پوهه سره! چه په دې مسئله کی امام شافعیؒ مخالف دی هغه وائی چه دغه سړی لمونځ نه دی روا۔ د دې اختلاف سبب دا دی چه قبله د امام شافعیؒ په مذهب کی فقط دا خونه مبارکه ده۔ او زموږ په نزد قبله دغه میدان دی چه خونه پکښې ده تر آسمانه پورې نو د غه سړی لمونځ هم وکعبه ته دی۔ زموږ د مذهب دلیل دا دی چه خونه د کعبې په زمانه د عبدالله بن الزبیرؓ او په زمانه کی د حجاج بن یوسف د ما بین څخه ولاړه۔ او خلکو لمونځونه وهواته د کعبې کوله۔ او بل دا چه جبل ابی قبیس چه کعبې شریفې ته نژدې غر دی۔ او تر خونه د کعبې شریفې ډیر لوړ دی۔ پر دې غره بالا لمونځ په اتفاق روادی۔ سره د دې چه خونه ئې مخ ته نشته۔

مسئله! د فقهې شریفې کتابونه وائی چه دا لمونځ اگرچه رواخو دی لکن مکروه دی۔ ولی چه په دې کی ترک د تعظیم د بیت الله شریف دی او په صحیح حدیث کی هم منع ځنې راغلې ده۔

فائده! د نورو مسجدو حکم د کعبې نه دې۔ د هغو پر بام لمونځ بې کراهته روا دی۔

---

اللهم اغفر لکاتبه و لمؤلفه ولوالدیهما ولاهلهما ولعیالهما ولاقربائهما ولجمیع المؤمنین والمؤمنات۔ آمین

کتبه محمد عبدالباری غفرله الباری

# كِتَابُ الزَّكٰوةِ

داکتاب دزکوٰة په بیان کی دی

**فائده:** زکوٰة ئې په لغت کې پورې جفت کړې. ولې چه په قرآن مبارک کی دوه ایتا ځایه "اَقِيمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ" راغلی دی. او په مشهوره حدیث کی چه روایت ئې تولو کتابونو دحدیثو کړی هم داسی راغلی دی "وَاِقَامُ الصَّلٰوةِ وَاِيْتَاءُ الزَّكٰوةِ"

**مسئله:** زکوٰة په دوهم کال دهجرت تر روژې دمخه فرض شوې دی.

## اَلزَّكٰوةُ وَاجِبَةٌ عَلَى الْحُرِّ الْمُسْلِمِ الْبَالِغِ الْعَاقِلِ

زکوٰة واجب دی په هغه ازاد سړي چه مسلمان وی بالغ وی کوچنی نه وی عاقل وی لیونی نه وی.

پوهه ستونزه: چه واجب په اصلاح کی دفقهاؤ هغه عمل ته وائی چه کول ئې سبب دثواب وی او نه کول ئې سبب ددوزخ وی. او منکر ئې کافر نه کېږل کیږی لکه اضحیه، سر سایه دوتر لموځ وغیرها. او فرض هغه عمل دی چه منکر ئې کافر بلل کیږی. نو بناءً علی هذا چونکه زکوٰة فرض عین دی او منکر ئې کافر دی. نو مراد دمصنف دواجب څخه فرض دی چه دا اصطلاح هم په فقه او اصولو کی سته. نو زکوٰة فرض دی په قرآن او حدیث او اجماع دامت او منکر ئې کافر دی.

پوهه ستونزه: چه زکوٰة په لغت کی نما ته وائی لکه چه په دې محاوره کی "زَكَى الزَّرْعُ" یعنی نما او زیاتوب وکړې کښت. نو زکوٰة شرعی ته په دې سبب زکوٰة وائی چه اداکول ئې سبب دزیاتوالی دمال دی په عوض کی په دې دنیا او په ثواب کی دآخرت. قَالَ اللهُ تعالیٰ "وَمَا اَنْفَقْتُمْ مِنْ شَيْءٍ فَهُوَ يُخْلِفُهُ" یعنی هغه شي چه تاسی نفقه کړئ یعنی وچاته ئې ورکړئ دهغه خدای پاک عوض درکوی او زکوٰة طهارت ته هم وائی لکه په دې آیة کی "خُذْ مِنْ اَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً تُطَهِّرُهُمْ وَتُزَكِّيهِمْ" یعنی اخله دمالو څخه دمسلمانانو زکوٰة او پاکوه دوی په هغو سره. نو زکوٰة شرعی په دې زکوٰة بولی چه مزکی د بخله او مال دخبث پاکوی. او بله زکوٰة وبرکت ته هم وائی نو زکوٰة شرعی سبب دبرکت د مال دی. او ثنا ته هم وائی دمزکی هر سړی ثنا وائی او په شرعه شریفه کی زکوٰة په ملک ورکول دی دیوې حصې دمال خپل چه خدای معینه کړې ده دپاره دخالص رضا دخدای ومسلمان فقیر ته.

مسئله: که چا مسکین ته د استوګنې سرای یا دوکان ورکړی او بیا کرایه کې ئې نیت د زکوٰة وو نو زکوٰة ئې نه خیږي. ولې چه د زکوٰة د مال جزء نه دی. د روا کید و صورت ئې دا دی چه په اندازه د کرایه د سرای یا دوکان دې هغه مسکین ته زکوٰة ورکړي او بیرته دې په کرایه کې حیني واخلي. طحطاوي. رد محتار.

مسئله: که ئې بزګر یا باغوان ته زکوٰة ددې د پاره ورکاوه چه بزګري یا باغواني ښه اوکړي نو زکوٰة ئې نه دی روا ولې چه د خدای د رضا د پاره نه دی.

مسئله: که ئې د مسجد ملا یا مؤذن ته یا معلم ته په تړون یا بې تړونه زکوٰة ورکړی نو که دوی مسکینان وو نو په اتفاق ئې زکوٰة روا دی. او که غنیان وو د معلم په زکوٰة کې اختلاف دی لکه چه ورسته به راسي او امام مسجد او مؤذن ته ناروا دی.

## إِذَا مَلَكَ نِصَابًا كَامِلًا مِلْكًا تَامًّا وَحَالَ عَلَيْهِ الْحَوْلُ

چه مالک وګرځي د نصاب کامل په پوره ملک سره او تیر سي پرې کال پوره د نصابو بیان به په تفصیل راسي.

## وَلَيْسَ عَلَى صَبِيٍّ وَلَا مَجْنُونٍ وَلَا مُكَاتَبٍ زَكٰوةٌ

او نسته په کوچني نابالغه او په لیوني او په مکاتب باندې زکوٰة

فائده: مکاتب هغه مریی دی چه بادار ورته ووائي چه په خوګټنه دومره روپۍ مثلاً راکړه نو ته آزاد ئې. نو مکاتب چه څومره روپۍ که څه نصاب وي برابرې کړي په هغه کې زکوٰة نسته.

مسئله: په لیوني کوچني زکوٰة نسته ولې چه دوی په عبادت مکلف نه دی. او تاوان د حقوقو د بندګانو او صدقۀ فطر او عشر په دوی باندې سته. رد محتار.

## وَمَنْ كَانَ عَلَيْهِ دَيْنٌ مُحِيطٌ بِمَالِهٖ فَلَا زَكٰوةَ عَلَيْهِ

او که چیرې په چا پور باندې وي داسې پور چه احاطه ئې د ده په مال کړې وي نو په هغه سړي زکوٰة نسته

مسئله: چه مراد هغه پور دی چه طلب ئې بندګان کوي. کوکب دری ص۲۷. نو پور د کفاراتو چه په سړي باندې وي مانع د زکوٰة نه دی.

## وَإِنْ كَانَ مَالُهُ أَكْثَرَ مِنَ الدَّيْنِ زَكَّى الْفَاضِلَ إِذَا بَلَغَ نِصَابًا

او که چیرې مال تر پور ډیر وو زکوٰة دې ورکړي د هغه بالا بوده مال که چیرې هغه بالا بوده مال ئې نصاب ته رسیدلی.

## وَلَيْسَ فِيْ دُوْرِ السُّكْنٰى وَثِيَابِ الْبَدَنِ وَاَثَاثِ الْمَنْزِلِ

او نشته زکوة په سرایو کې د اوسیدو۔ او په کالو کې د بدن۔ او په اسبابو کې د کور او په

## وَدَوَابِّ الرُّكُوْبِ وَعَبِيْدِ الْخِدْمَةِ وَسِلَاحِ الْاِسْتِعْمَالِ زَكٰوةٌ

حیوانانو کې د سپرلیا او په مریانو کې د خدمت او په سلاح کې د استعمال (یعنې په دې ټولو کې زکوة نشته ولې چه مال نامي نه دی)

فائده: مال مطالب د بندګانو د خوا دغه پوروته دی۔ قرض حسن۔ د مبیع ثمن۔ د بل د مال د تلف کولو تاوان۔ د ټپ تاوان۔ ولور د ښځې۔ بدل د صلح د خون په قصد۔ او پور عام دی که سره زر او سپین زر وي۔ او که مکیل او موزون وي لکه غنم، جوار، وریجې وغیره او که کالي وي۔ کفایه ص۱۲۸

مسئله: د ولور پور که ښځه کوچنۍ وي او د واده نه وي یا لوی وي لکن میړه ئې د ولور د ورکولو اراده نه لري۔ هغه پور مانع د زکوة نه دی۔ ذکره الامام البزدوي في جامعه۔

مسئله: پور که وعده پر باندې وو او وعده ئې نه وه رسیدلې۔ بعض علماء وائي چه مانع د زکوة دی او بعض وائي نه۔ طریقة الشهید۔

قاعده کلیه: که چا ځمکه د کښت یا باغونه د حاصلاتو د پاره لوده چه قیمت د قبې د هغو په لکو روپې جوړیدی په هغو روپو کې زکوة نشته۔ البته په حاصلاتو کې عشر یا خراج سته۔

جزئیه: که چا د اوسیدو د پاره سرائې کوټې بنګله جوړه کړه چې قیمت ئې په لکو روپو وي په قیمت کې ئې زکوة نشته۔ جزئیه: که چا کتابونه ډیر د پاره لوده چه د لکو روپو وه خواه دی اهل وي او که نه۔ چې د تجارت نیت نه وي په هغو روپو کې زکوة سته۔

سوال: په هدایه کې وائي "وعلی هذا کتب العلم لاهلها" نو هدایه اهل د کتابو شرط کړې دی د زکوة په نه واجبیدو کې۔ جواب: په فتح القدیر او په عنایه کې ص۱۲۰/۲ وائي چه دا قید اتفاقي دی۔ "فانها لو کانت لمن لیس من اهلها وهي تساوي نصبا لا تجب فیها الزکوة الا ان یکون اعدها للتجارة" اه

## الفرق بین اهل العلم وغیرهم

د غیر اهل علم سره چه کتابونه وي چه نصاب ته رسیږي وهغه ته د بل چا د زکوة اخستل ناروا دي۔ او که سړی اهل علم وو او په هغو کتابو چه د ده سره دي یا په درس یا مطالعه پوهیدی نو هغه ته د بل چا زکوة روا دی که څه هم د هغو کتابو قیمت نصاب ته رسیږي یا بالا وي۔

ملائي حیله: یو ملا چه د کنز یا قدوري یا د شمني ملا وي هغه د احادیثو د غټو شرحو یا د لویو لویو کتابو د تفاسیرو او یا د فقهي د لویو فتاوو وچه په هغو دې نه پوهیږي خریداري

کوي په دې نیت چه ما ته د بل چا زکوة رارسي هغه ته زکوة اخستل ناروا دي. ولې چه دی ئې اهل نه دئ. ډیر ملایان امامان په دې حیله ځانونه فقیرانوي چه د خلکو څخه زکوة واخلي خو دا حیله ئې بنه نه ده او زکوة اخستل ورته حرام دي.

## دکتابو په باره کی تحقیق

په فتح القدیر ص۱۲۰ ج۲ کی داسې راغلي دي چه اهل علم یعني مدرس ملایان کوم چیری محتاجه وي هغه کتابونه چې د دوئ ته موجود وي احتیاج یا د درس دپاره یا د مطالعې دپاره یا د مشکلاتو دحل لو نو کتابو دحل دپاره یا وخلکو ته د فتوی ورکولو دپاره یا د تبلیغ او نصیحت دپاره هغه عالم فقیر دی که څه هم د هغو کتابو چه دده سره دی قیمت ئې تر نصاب بالا وی. ولې دا کتابونه په حاجت اصلي مشغول دي.

مسئله: فتح القدیر ص۱۲۰ ج۲ د عالم دپاره د حاجت کتابونه د تفسیر القرآن، احادیث نبویه، فقه، عقائد، سیرة النبي کتابونه دي. او د ادبو کتابونه، د طبو کتابونه، د نحو کتابونه، د صرفو کتابونه، د عروضو کتابونه، د تاریخ کتابونه د منطقو کتابونه، د ریاضی کتابونه، د حکمت کتابونه وغیره هاکه ئې چیری قیمت نصاب ته رسیدی هغه ملا غني دی. د بل زکوة ورته حرام دی. اګرچه د دغو کتابو په قیمت کی زکوة نشته چه د تجارت دپاره نه وی.

مسئله: هغه کتابونه چه زکوة اخستل ورسره روا دی لکه چه ذکر سوله بعض فقهاء وائی چه د هر کتاب دوې نسخې روا نه لری. لکن فتح القدیر وائی چه یوه یوه نسخه روا ده فرق نه کړی دیری نسخې دیوه کتاب وکیبه قیمت ئې نصاب ته رسیدی وهغه ملا ته زکوة حرام دئ. فتح القدیر ص۱۲۰ ج۲

جزئیه: که چا د سپرتیا دپاره موټر سائیکل یا موټر په ډیر ورو قیمت چه تر نصاب تیر وي لکه په اوس زمانه چه یو موټر د سپرتیا په لکونو وي دی را نیولئ وود قیمت په ورباندی زکوة نشته.

مسئله: که یو چا سروایس، بس، لاری او وغیره په ډیرو روپو رانیولی وه د کرایه دپاره یعني د مزدورۍ دپاره او د عیال د نفقې دپاره د هغه د قیمت په روپو کی زکوة نشته. البته کې د مزدورۍ روپۍ و نصاب ته ورسیدې او کال پرتیر سو په هغه کښې زکوة سته.

جزئیه: که د چا په کورکی قیمتي غالۍ او اری وې که څه هم پالتو او اری وی د تجارت دپاره نه وي د هغو په قیمت کی زکوة نشته که څه هم نصاب ته رسیږی. البته که د پالتو غالیو قیمت نصاب ته رسیدی وهغه مالک ته ئې د بل زکوة حرام دئ.

مسئله: که یوه سړي کرم کرم پوستینان او کرم پټوان چه قیمتونه ئې تر نصاب تیر وه

د ر لوده د هغو په قیمت کې زکوة نشته - البته ترپوې کې چې کیږي که پوستین وي او که بل شی وي چه بالاوي او قیمت ئې نصاب ته رسیږي وهغه ته زکوة حرام دی -

مسئله: که د چا په کور کې یخچال یا د گنډلو مشین یا د خامک د وېړی مشین یا د کالو وینځلو مشین وي او قیمتونه ئې نصابو ته رسیږي په هغه سړي د قیمتونو زکات نشته - البته که د غه شیان د ملا صاحب په کوره کې وي احتمال لري چه د وخت په تناسب دی د حاجت اصلي نه وي او مانع د زکات اخستلو دې نه وي - د غه رنگه د جیب یا لاس قیمتي ساعت " وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِعَيْنِهٖ "

سوال: په رد محتار کې وائي چه طالب علم ته چه مدرس هم په دې کې داخل دی یعني هغه هم په طلب د علم کې دی که څه هم ډېر غني وي زکوة روا دی د اخبره صحیح او که نه ده حتی امیان وائي چه ملا صاحب که څه هم د سرونه د و په حیځ کې سپوره وي هم زکوة ورته روا دی -

جواب: اول دا یو ضعیف روایت دی مفتی بها نه دی - او که صحیح هم وي نو په محض نامه طالب العلم او ملا صاحب نه دی مراد بلکه هغه طالب العلم یا مدرس ملا مراد دی چه څومره وخت چه مزدوري کاره د ورځی په مزدوري کې تیر وي د غه طالب العلم یا ملا صاحب ئې په هغه مقدار د سبق په وینا یا مطالعه کې تیر وي ولې -

مسئله: که یو سړی خیاط وي یا نجار وي او یا بل کسبکار وي چه شاگردان ئې ډېر د ر لوده چه هغوته ئې د کالو مشینان یا د نجارۍ مکرر اسباب رانیولي وه د هغو په قیمت کې زکوة نشته لکن د بل زکوة اخستل ورته حرام دی -

مسئله: که یو چا بالتي سرائ د ر لودی او هغه ئې چاته په کرایه ورکړی وي د هغه سرائ په قیمت کې زکوة نشته لکن د بل چا زکوة ورته حرام دی - ولې چه دا سرائ تر حاجت اصلي زائد دی

مسئله: په نني زمانه کې تو پنګچه یا توفنګ یا کلاشنکوف د حاجت اصلي څخه کمل کیږي او د زکوة مانع نه کیږي -

## وَلَا يَجُوْزُ اَدَاءُ الزَّكٰوةِ اِلَّا بِنِيَّةٍ مُقَارِنَةٍ لِلْاَدَاءِ

او نه ده روا ورکړه د زکوة مګر په نیت چه جفت د ورکړې سره وي اداء ورکولو په وخت کې نیت وکي

## اَوْ مُقَارِنَةٍ لِعَزْلِ مِقْدَارِ الْوَاجِبِ

او یا نیت جفت وي د هغه وخت سره چه د زکوة مال ورکوي

نیت ولې غواړي؟ ولې زکوة خو عبادت دی په عبادت کې نیت شرط دی که څه هم د مخه

ته عبادت وي نکه د روشي نيت د پيشلمي شخه. يعني د زکوة مال جلا کړي چه د زکات دي نو بيا که تر وخت د وړکړي کي نيت نه وي پروا نه لري.

مسئله: د زکوة په ورکړه کي د زکوة د خولي وينا نه غواړي بلکه د زړه نيت اعتبار لري. البته د خولي وينا دا فائده کوي که څه سړي غني وي يا سيد وي نو بيا وائي چه ما زکوة نه کيږي يعني زه د اهل دا خستلو نه يم.

مسئله: زکوتونه، عشرونه، خراجونه د اسلامي حکومت حق دي چه تول ئي کړي او بيا حکومت د علماؤ، مدرسينو، قاريانو، موذنانو او طالبانو ته د هغه مال څخه تنخواه په قدر د ما يکفي ورکوي. او که چيري اسلامي حکومت نه وي يا ملايانو وغيرهم ته ئي تنخواه نه ورکوله نو په دې صورت کي دي مالکان پخپله خپل زکوة وعشر و فقراؤ و مساکينو ته ورکوي.

## وَمَنْ تَصَدَّقَ بِجَمِيعِ مَالِهِ وَلَمْ يَنْوِ الزَّكٰوةَ سَقَطَ فَرْضُهَا عَنْهُ

که يو چا خيرات کړي تول مال خپل او نيت ئي د زکات نه وو کړي ساقط سو د ده څخه فرض د زکات (او زکات پري نسته)

# بَابُ زَكٰوةِ الْإِبِلِ

باب دي په بيان کي د زکوة د اوښانو

## لَيْسَ فِي اَقَلِّ مِنْ خَمْسٍ ذُوْدٍ مِّنَ الْإِبِلِ صَدَقَةٌ فَاِذَا

نسته په کمه کي تر پنځه اوښه د اوښانو څخه زکوة. پس چه وه سيږي اوښان

## بَلَغَتْ خَمْسًا سَائِمَةً وَحَالَ عَلَيْهَا الْحَوْلُ فَفِيهَا شَاةٌ

پنځه ته چه پخپله خوله ئي څرکاوه او تير سو په هغو اوښانو کال نو په هغو کي زکوة يو پسه کيږي.

پوه سه: په داوښانو څر پخپله خوله اکثر کي د کال معتبر دي. که يو ه يا دوه مياشتي پر کور وابنه وغواړي په هغو کي زکوة سته. البته که تول کال يا اکثر کال پر کور نفقه غواړي په هغو کي نسته.

مسئله: د کريه کبني په اوښانو کي زکات نسته.

مسئله: که چيري يو چا اوښان د تجارت د پاره ساتلي وه په هغو کي که څه هم پخپله خوله

څخه کوي زکات د اوبنانو نشته. بلکه زکات د نغدو وړو پسو ستره. کوکب دري ص۴۸

إِلَى تِسْعٍ فَإِذَا بَلَغَتْ عَشْرًا فَفِيهَا شَاتَانِ إِلَى أَرْبَعَ عَشْرَةَ

بیا تر نوو اوبنانو پورې (یعنې یو پسه دی) پس چه اوبنان لس ته ورسیده نو په هغوکي دوه پسونه کیږي تر څوارلس پورې. یعنې تر څوارلس اوبنانو پورې هغه دوه پسونه زکات دی.

فَإِذَا كَانَتْ خَمْسَ عَشْرَةَ فَفِيهَا ثَلَاثُ شِيَاهٍ إِلَى تِسْعَ عَشْرَةَ

پس چه پوره سوه پنځلس اوبنان نو په هغوکي زکات درې پسونه دي تر نولس پورې.

فَإِذَا كَانَتْ عِشْرِينَ فَفِيهَا أَرْبَعُ شِيَاهٍ إِلَى أَرْبَعٍ وَعِشْرِينَ

پس چه سول اوبنان شل نو په هغوکي زکات څلور پسونه دي بیا تر څلیرویشت پورې دا څلور پسونه دي.

فَإِذَا بَلَغَتْ خَمْسًا وَعِشْرِينَ فَفِيهَا بِنْتُ مَخَاضٍ إِلَى خَمْسٍ وَثَلَاثِينَ

پس چه ورسیدې اوبنان پنځویشت ته نو په هغوکي زکات یوه جونګړه ده چه یو کال ئې پوره سوی وي او دوهم کال ته داخله سوې وي. بیا تر پنځه دیرش پورې دغه یوه جونګړه ده.

مسئله: د اوبنانو په زکات کی خاصا به ښځه وړه کوي چه نسل وکړي.

فَإِذَا بَلَغَتْ سِتًّا وَثَلَاثِينَ فَفِيهَا بِنْتُ لَبُونٍ إِلَى خَمْسٍ

پس چه ورسیدې اوبنان شپږدیرش ته نو په هغوکي یوه دوه کالو جونګړه ده (چه دریم کال ته داخله سوې وي) بیا تر پنځه

وَأَرْبَعِينَ فَإِذَا بَلَغَتْ سِتًّا وَأَرْبَعِينَ فَفِيهَا حِقَّةٌ إِلَى سِتِّينَ

څلویښت پورې پس چه ورسیدې اوبنان شپږڅلویښت ته نو په هغوکي زکات یوه درې کالو جونګړه ده (چه څلورم کال ته داخله سوې وي) بیا تر شپیتو پورې دغه یوه جونګړه زکات دی.

فَإِذَا بَلَغَتْ إِحْدَى وَسِتِّينَ فَفِيهَا جَذَعَةٌ إِلَى خَمْسٍ وَسَبْعِينَ

پس چه ورسیده اوبنان ویو شپیته ته نو په هغوکي زکات د څلورو کالو اوښه ده (چه په پنځم کال کی داخله وي) بیا تر پنځه اویا پورې دغه یوه جذعه ده.

فَإِذَا بَلَغَتْ سِتًّا وَّ سَبْعِيْنَ فَفِيْهَا بِنْتَا لَبُوْنٍ إِلٰى تِسْعِيْنَ

پس چې پوره سي شپږ اويا نو په هغو کې زکات دوې دوه کالوجونګې دي بيا ترنوي پورې

وَإِذَا كَانَتْ إِحْدٰى وَتِسْعِيْنَ فَفِيْهَا حِقَّتَانِ إِلٰى مِائَةٍ وَعِشْرِيْنَ

که سوه او بنان يو نوي پس زکوة يې دوې د دره کالو جونګې دي بيا تر يو سل او شلو پورې

پوه سه! چه په بخاري شريف او تولو کتابو کې داحاديث مبارکو راغلي دي چه په دغه ترتيب سره حساب رسول الله صلى الله عليه وسلم وخپلو عاملانو ته مکتوب نه استولی دی. او بيا په زمانه کې دخلفاء راشدينو هم دغه حکم وو. ثم و ثم الى يومنا هذا بل الى يوم القيامة.

ثُمَّ تَسْتَأْنِفُ الْفَرِيْضَةَ فَيَكُوْنُ فِي الْخَمْسِ شَاةٌ مَعَ الْحِقَّتَيْنِ

دروسته تر يو سل و شلو دي د سره راوګرځوي فرض (يعني زکات) يعني تر يو سل او شلو چې اوبنان بالاسي يعني يو سل او پنځه ويشت سي) نو په هغو کې زکوة يو پسه سره د دوه حقو دی.

وَفِي الْعَشْرِ شَاتَانِ وَفِي خَمْسَ عَشَرَةَ ثَلٰثُ شِيَاهٍ وَفِي عِشْرِيْنَ

او په لسو کې دوه پسونه دي او په پنځلسو کې درې پسونه دی او په شلو کې څلور پسونه دی

پوه سه: چې پنځه بالاسي نو (۱۲۵) کيږي او چه لس بالاسي نو (۱۳۰) کيږي او چه پنځلس بالاسي نو (۱۳۵) کيږي او چه شل بالاسي نو (۱۴۰) کيږي.

أَرْبَعُ شِيَاهٍ وَفِي خَمْسٍ وَعِشْرِيْنَ بِنْتُ مَخَاضٍ

او په پنځويشت کې ديوه کال جونګې ده سره د دوه حقو. چه مجموع اوبنان (۱۴۵) سي نو دوې حقې يوه بنت مخاض يې زکوة کيږي.

إِلٰى مِائَةٍ وَخَمْسِيْنَ فَيَكُوْنُ فِيْهَا ثَلٰثُ حِقَاقٍ ثُمَّ تَسْتَأْنِفُ

بيا تر سل و پنځوس پورې او په (۱۵۰) کې درې حقې زکوة دی. او بيا دي د سره راوګرځوي

الْفَرِيْضَةَ فَفِي الْخَمْسِ شَاةٌ وَفِي الْعَشْرِ شَاتَانِ وَفِي

زکات نو پنځه اوبنانو کې يو پسه دی سره د هغه مخکنی زکات او په لسو کې دوه پسونه دی. او په

خَمْسَ عَشَرَ ثَلٰثُ شِيَاهٍ وَفِى الْعِشْرِيْنَ اَرْبَعُ شِيَاهٍ وَفِى

پنځلسو کې درې پسونه دي. او په شلو اوښانو کې څلور پسونه زکوة کیږي او په پنځویشت

خَمْسٍ وَّعِشْرِيْنَ بِنْتُ مَخَاضٍ وَفِى سِتٍّ وَّثَلٰثِيْنَ بِنْتُ لَبُوْنٍ

اوښانو کې یوه دیوه کال جونګړه او په شپږدیرش اوښانو کې یوه دوه کالو جونګړه زکات کیږي.

فَاِذَا بَلَغَتْ مِائَةً وَّسِتًّا وَّتِسْعِيْنَ فَفِيْهَا اَرْبَعُ حِقَاقٍ اِلٰى مِائَتَيْنِ

پس چه ورسیږي اوښان یو سل و شپږنوي ته نو په هغو څلور حقې دي بیا تر دوه سوه پورې

ثُمَّ تُسْتَاْنَفُ الْفَرِيْضَةُ اَبَدًا كَمَا تُسْتَاْنَفُ فِى الْخَمْسِيْنَ

او بیا دې د سره او ګرځولی شي زکات همیشه لکه چه سر اګرځولی کیږي په پنځوس کې لکه چې

الَّتِىْ بَعْدَ الْمِائَةِ وَالْخَمْسِيْنَ وَالْبُخْتُ وَالْعَرَبِىُّ سَوَاءٌ

وروسته تر یو سل و پنځوس نه سر اګرځول کیږي. بختي او عربي اوښان په زکوة کې سره برابر دي.

بخت جمع د بختي او هغه اوښ دی چه عربي او عجمي اوښان سره یوځای کړي یعنې نر يې عربي او ښځه يې عجمي وي او بالعکس چونکه دا کار اول بخت نصر کړی وو نو ځکه يې ورته منسوب کړي او عربي هغه اوښ دی چه مور او پلار دواړه يې عربي وي.

# بَابُ صَدَقَةِ الْبَقَرِ

باب دی په بیان د زکات د غویانو او غواوو. د بقر لفظ اسم جنس دی نر او ښځې دواړو ته ویل کیږي.

لَيْسَ فِىْ اَقَلَّ مِنْ ثَلٰثِيْنَ مِنَ الْبَقَرِ السَّائِمَةِ صَدَقَةٌ فَاِذَا

نشته په کمې تر دیرشو غویو چه څرځوونکي وي زکات. پس چه سوه

كَانَتْ ثَلٰثِيْنَ سَائِمَةً وَحَالَ عَلَيْهَا الْحَوْلُ فَفِيْهَا

غوایي دیرش چه بشپړ کال پر تیر شي او څرېږي نو په دوی کې یو تبیع یا تبیعه واجب دي

تَبِيْعٌ اَوْ تَبِيْعَةٌ وَفِيْ اَرْبَعِيْنَ مُسِنٌّ اَوْ مُسِنَّةٌ

یوه کال کلکی دی (چه کال ئې پوره وي او په دوهم کال کې داخل وي) او په څلویښتو کې د دوه کالو نر یا ښځه کلکی ده۔

فَاِذَا زَادَتْ عَلَى الْاَرْبَعِيْنَ وَجَبَ فِي الزِّيَادَةِ

پس که زیاتې شوې غوایي تر څلویښت نو واجب دي زکات په هغه زائدې کې په قدر

بِقَدْرِ ذٰلِكَ اِلٰى سِتِّيْنَ عِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ فَفِي الْوَاحِدَةِ رُبْعُ عُشْرِ مُسِنَّةٍ

د هغه زائدې تر شپیتو پورې او دا په نزد د ابو حنیفة نو که یو غوایي زیاتې شي په هغې کې زکات د لسمې حصې څلورمه حصه د مسنه

مثلاً قیمت د مسنه (۴۰) روپۍ وي لسمه حصه ئې (۴) روپۍ کیږي او د (۴) څلورمه حصه یوه روپۍ ده نو یوه روپۍ زکات دی۔ پر دغه قیاس که قیمت بالا یا کم وي۔

وَفِي الْاِثْنَيْنِ نِصْفُ عُشْرِ مُسِنَّةٍ

او که دوه غوایي بالا وه نو په هغو کې د لسمې حصې د قیمت د مسنې نیمه حصه کیږي۔
مثلاً په مذکوره صورت کې د دوو غویو زکات دوې روپۍ دي۔ وعلى هذا القياس۔

وَفِي الثَّلٰثَةِ ثَلٰثَةُ اَرْبَاعِ عُشْرِ مُسِنَّةٍ

او په دریو کې د درې څلرمې د قیمت د مسنې زکات دی۔

وَقَالَ اَبُوْ يُوْسُفَ وَمُحَمَّدٌ لَا شَيْءَ فِي الزِّيَادَةِ حَتّٰى

او وائي امام ابو یوسف او امام محمد چه په زیاتي غویو کې هیڅ زکات نشته تر څو چه رسیږي

تَبْلُغَ سِتِّيْنَ فَيَكُوْنُ فِيْهَا تَبِيْعَانِ اَوْ تَبِيْعَتَانِ وَفِيْ

تر شپیتو پورې نو د دې زکات په شپیتو کې دوه دي یو یو کال کلکیان یا کلکیانې۔ او په

سَبعِينَ مُسِنَّةٌ وَتَبِيعٌ وَفِي ثَمَانِينَ مُسِنَّتَانِ وَفِي تِسْعِينَ

اویا کی یو د دوو کالو اویل دیوه کال کلکیان نریا ښځه زکات دی۔ او په اتیا کی دوې مسنې کیږي او په نوي کی

ثَلٰثَةُ اَتْبِعَةٍ وَفِي مِائَةٍ تَبِيعَتَانِ وَمُسِنَّةٌ وَعَلٰى

درې تبیع زکات دی او په سلو کی دوې تبیع او یوه مسنه کیږی او پر دغه دول تغیر کوی فرض د زکات

هٰذَا يَتَغَيَّرُ الْفَرْضُ فِي كُلِّ عَشْرٍ مِنْ تَبِيعٍ

چه بالا سی په هر لس کی د تبیع څخه و مسنه ته یعنی بالا کیږی او لو یږی دیوه کال د کلکی څخه د دوو کالو

اِلٰى مُسِنَّةٍ وَالْجَوَامِيسُ وَالْبَقَرُ سَوَاءٌ ۞

کلکی ته) او کامیښی نر یا ښځی او غوایی سره برابر دی۔

## بَابُ صَدَقَةِ الْغَنَمِ

باب دی په بیان کی د زکات د پسو یا بزو

فائده: دغنم لفظ پسه نر یا ښځه او بزه نر یا ښځه تولو ته وائی او فنا پسه او میږی ته وائی او معز بو نه ای او وزه کړی ته وائی۔

لَيْسَ فِي اَقَلِّ مِنْ اَرْبَعِينَ شَاةً صَدَقَةٌ فَاِذَا كَانَتْ

نشته په کم کی تر څلویښتو پسو زکات۔ پس چه وه سیده پسونه

اَرْبَعِينَ شَاةً سَائِمَةً وَحَالَ عَلَيْهَا الْحَوْلُ فَفِيهَا شَاةٌ

څلویښت ته چه پخپله خوله ئی څر کاوه او پر دوی کال تیر سو نو په هغو کی یو پسه زکات دی

اِلٰى مِائَةٍ وَعِشْرِينَ فَاِذَا زَادَتْ وَاحِدَةٌ فَفِيهَا شَاتَانِ

بیا تر یو سل وشلو پوری دغه یو پسه دی بیا که پسه زیات سو نو په هغو کی دوه پسونه زکات کیږی

إِلَىٰ مِائَتَيْنِ فَإِذَا زَادَتْ وَاحِدَةٌ فَفِيهَا ثَلٰثُ شِيَاهٍ فَإِذَا

یا تر دوه سوه پورې (دغه دوه پسونه زکات دی) بیا چه زیات شی تر دوه سوه یو پسه نو په هغوکی درې پسونه زکات دی پس

بَلَغَتْ اَرْبَعَ مِائَةٍ فَفِيهَا اَرْبَعُ شِيَاهٍ ثُمَّ فِي كُلِّ مِائَةٍ شَاةٌ

چه ورسیږي پسونه څلور سوه ته نو په هغوکی څلور پسونه زکات دی وروسته په هر سل کی یو پسه زکات کیږی

مثلاً که پسونه پنځه سوه داني وي پنځه پسونه ئې زکات دی. او که اووه سوه وي په هغوکی اووه پسونه زکات دی. همدا رنګه اته سوه بیا تر پایه پورې.

وَالضَّانُ وَالْمَعْزُ سَوَاءٌ

او د پسه جنس او د بزو جنس سره برابر دی په زکات کی

یعنی د یوه نصاب په بل پوره کیږی. او که یوازی هر یو وی نصاب او زکات ئې هغه دی چه ذکر شو.

# بَابُ زَكٰوةِ الْخَيْلِ

باب دی په بیان کی د زکات د آسانو

إِذَا كَانَتِ الْخَيْلُ ذُكُورًا وَّإِنَاثًا وَحَالَ عَلَيْهَا الْحَوْلُ

که چیرې وي آسان نر او ښځې که او تیر شو پر هغو باندی کال

فَصَاحِبُهَا بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ اَعْطٰى مِنْ كُلِّ فَرَسٍ دِينَارًا

پس مالک د آسانو اختیار لری که ئې خوښه وي ورکړې دې کړي د هر آس پر سر باندی یو دینار په کال کی

إِنْ شَاءَ قَوَّمَهَا فَاَعْطٰى مِنْ كُلِّ مِائَتَيْ دِرْهَمٍ خَمْسَةَ دَرَاهِمَ

او که ئې خوښه وي آسان دې قیمت کړي نو دې ورکړي په هرو دوو سوو درهمو کی پنځه دراهم

## وَلَيْسَ فِي ذُكُوْرِهَا مُنْفَرِدَةً عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ زَكٰوةٌ وَقَالَ

او نشته په نرو آسانوکي يوازې (چه ښځې نه وي ورسره) په نزد د امام صاحبؒ زکات۔ او وائي

## أَبُو يُوْسُفَ وَمُحَمَّدٌ لَا زَكٰوةَ فِي الْخَيْلِ وَلَا شَيْءَ فِي الْبِغَالِ

امام ابو يوسفؒ او امام محمدؒ چه هيڅ زکوٰة نشته په آسانو کې۔ او هيڅ شې نشته په غاترو

## وَالْحَمِيْرِ إِلَّا أَنْ تَكُوْنَ لِلتِّجَارَةِ وَلَيْسَ فِي الْفُصْلَانِ وَالْحُمْلَانِ وَالْعَجَاجِيْلِ

او خروکې مګر هغه وخت چه د تجارت د پاره وي۔ او نشته زکوٰت په جونګيانو او وريانو او کلګيانو کې۔

فُصْلَان جمع د فصيل ده هغه جونګی ته وائي چه د وهم کال ته نه وي رسيدلی۔ حُمْلَان جمع د حمل ده هغه وري ته وائي چه د يو ره کال نه وي۔ عجاجيل جمع د عجل ده هغه کلګی ته وائي چه کال ئې نه وي پوره سوی۔

## زَكٰوةٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ إِلَّا أَنْ تَكُوْنَ مَعَهَا كِبَارٌ

يعنې نشته په دغو شيانو کې په مذهب د امام صاحبؒ او امام محمدؒ زکات مګر هغه وخت که وه د دغو سره لويان دوې يعنې که لويان او کوچنيان ګډ وه بيا تو له حساب کيږي او په تولو کې زکات فرض دی۔

## وَقَالَ أَبُوْ يُوْسُفَ تَجِبُ فِيْهَا وَاحِدَةٌ مِنْهَا

او ويلي دي امام يوسفؒ چه په دغو کوچنيانو کې هم زکوٰة شته يو د وی څخه يو به کوي (فتوی پر قول دوی ده۔ کذا في التحفة)

## وَمَنْ وَجَبَ عَلَيْهِ مُسِنٌّ فَلَمْ يُوْجَدْ أَخَذَ الْمُصَدِّقُ أَعْلٰى مِنْهَا

او که پر چا واجب وه مسن او هغه نه پيدا کيدې (د مالک سره نه وي) زکوٰة اخستونکی دې ترمسن لوی څني و اخلی يعنې خامخا مالک نه دی مکلف چه مسن به پيدا کوي۔

دَفْعُ الْقِيَمِ فِي الزَّكَاتِ وَلَيْسَ فِي الْعَوَامِلِ وَالْحَوَامِلِ وَالْعَلُوفَةِ زَكَاتٌ

او ورکړه د قیمتونو د غو حیواناتو په زکوة کې۔ او نشته په هغه غویو کې چې یوي او غوبل په کوي او په هغه اوښانو کې چې کرایه کښې په کوي او په هغه حیواناتو کې چې پرکور واښه ورته اچوي (په خوله څرنه کوي) زکوة نشته۔

مسئله: په نزد د امام اعظم صاحب په عشر کې په سرسایه کې په نذر کې په کفارات کې هم ورکړه د قیمت روادار کوکب دری منه۔ وهکذا فی الهدایه ورد المحتار وغیرها عند ابی حنیفة۔

وَلَيْسَ لِلْمُصَدِّقِ أَخْذُ خِيَارِ الْمَالِ وَلَا رُذَالَتُهُ وَ

او نشته یعنی نه دی روا مصدق ته اخستل د بنو د غو مالو په زکات کې او نه هم هغه بیکاره د غو مالو بلکه میانه

يَأْخُذُ الْوَسَطُ وَمَنْ كَانَ لَهُ نِصَابٌ فَاسْتَفَادَ فِي إِثْنَاءِ

دی خني واخلی (یعنی چې یو تاوان نه رسي) او که یو چا نصاب درلودی دهره ماله چوي پس وي کاټي په ما بین کې د کال

الْحَوْلِ مِنْ جِنْسِهِ ضَمَّهُ إِلَى مَالِهِ وَزَكَّاهُ بِهِ

د هغه جنس څخه د نصاب نوي مال نو هغه نوي مال ته ور هم وزاړه مال ته ور جوت کړي او د ټول مال زکوة دی ورکړي

یعنی پر نوي مال چه ده کټلی دی د کال تیریدل شرط نه دی۔

مسئله: کړسړي اوښانی یا میږي یا غواوي درلودي او دهغه په شید و یا شلومبو یا کوچوټی روپی وکټلي هغه روپه جلا کال تیریده غواړي۔

وَالسَّائِمَةُ هِيَ الَّتِي تَكْتَفِي بِالرَّعْيِ فِي أَكْثَرِ الْحَوْلِ فَإِنْ

او سائمه هغه مال ته وائي چه گذاره کوي په اکثره کال کې په پوولو او څرسره۔ کړ ئ چیرې

عَلَفَهَا فِي نِصْفِ الْحَوْلِ أَوْ أَكْثَرِهَا فَلَا زَكٰوةَ فِيهَا ثُمَّ

واښه ورا چول پر کوره په نیم کال کې یا بالا تر نیم کال نو په هغه مال کې زکات نشته۔ پس

الزَّكٰوةُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ فِي النِّصَابِ

زکات په نزد د امام اعظم او ابویوسف په نصاب کې دی۔

## دُوْنَ الْعَفْوِ وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ وَزُفَرَ تَجِبُ فِيْهِمَا

نہ پہ هغه مال کی چه هغه عفو دی - او په نزد د امام محمدؒ او زفرؒ زکات په نصاب او عفو دواړو کی دی۔

د دې اختلاف فائده: کړیوه سړی او وه اوښان درلوده پنځه ئې نصاب او دوه ئې عفو دی او په هغه سړی یو پسه زکات کیږی۔ بیا کړ دوه اوښان ئې مړه سوه یا ئې خرڅ کړه پس د کال تیریدو څخه او څخه د زکات ورکولو نو په نزد د امام اعظمؒ او ابو یوسفؒ هغه یو پسه زکات به ورکوی ولی چه زکات په نصاب کی دی او نه اب باقی دی۔ او په نزد د امام محمدؒ او زفرؒ پوره پسه نه کیږی بلکه یو پسه دی قیمت کړی او بیا او وه دې تقسیم کړی پنځه برخی د قیمت دی زکات ورکړی نو هم په دغه قیاس کړه۔

## وَإِذَا هَلَكَ الْمَالُ بَعْدَ وُجُوْبِ الزَّكَاةِ سَقَطَتْ

او که هلاک سو مال (هر مال چه وی) پس له واجبیدو څخه د زکات ساقط سو زکات۔

یعنی زکات هم هلاک سو ولی چه واجب جزء د مال دی جزء مړ ع د کل: دی چه کل ولاړ جزء ئې هم ولاړ ی۔

## وَإِنْ قَدَّمَ الزَّكٰوةَ عَلَى الْحَوْلِ وَهُوَ مَالِكُ النِّصَابِ جَازَ

کړ یوه سړی د څخه ورکړی زکات تر کال تیریدو او دی مالک د نصاب وی روا دی۔

مسئله: چه څوک مالک د نصاب وی د هر مال څخه چه وی او له دغه تر کال تیریدو دیوه کال یا دوو کالو زکات ورکړی غاړی ئې خلاصی دی۔ او بیا نوی زکات نسته۔

مسئله: کړ چا نصاب نه درلودی او وپه ئې و خلکو ته ورکولی په دې نیت کړ چیری زکات مالک د نصاب سوم نو زکات به می ورکړی وی هغه زکات نه دی بلکه خیرات دی کړ مالک د نصاب سو او کال پر تیر سو نوی زکات به ورکوی:

# بَابُ زَكٰوةِ الْفِضَّةِ

باب دی په بیان کی د زکات د سپینو زرو

مسئله: په مینځ و جوړو ولو کی چه په تیرا نزیده کی روا ج دی چه هغوته نو تونه وائی چه د

سپينو روپو مقابل کې هم جوړې سوې دي لکه په افغانستان، پاکستان، ايران، عربستان او نورو دغسې ملکونو کې. او د سرو زرو روپو مقابل کې هم جوړې سوې دي لکه ډالر د امريکا، دينار د کويټ او د عراق او نورو دغسې ملکونو. په دې نوټونو کې اختلاف دی. بعضي علماء وائي چه دا نوټونه پرځای د سرو زرو او يا سپينو زرو ولاړ دي. لکه چه پر تولو هم داغه نوشته دی او صحيح هم دغه مذهب دی. نو بناءً پر دغه مذهب په نوټونو کې سود ناروا دی. او په وينه کولو کې يعنې يو قسم نوټونه په بل قسم نوټونو بدلولو کې پوره نارواده. بلکه لاس په لاس به وي. نو بناءً پر دې د تجارانو معاملې ډېرې مشکلې دي. ولې چه مثلاً يو سړی او س کالداري ورکړي او هغه بل طرف يوه يا دوې مياشتې وروسته افغاني ورکوي. يا يو سړی کالداري په پاکستان کې ورکړي او هغه بل طرف افغاني په افغانستان کې وروسته ورکوي يا عکس د دې. او دغه رنګه تجاران په کالداري او ډالرو کې دا معاملې کوي دا ټولې حرامې دي. ولې چه په حديث شريف کې چه روايت ئې بخاري او مسلم او نورو کتابونو کړی آنحضرت صلی الله عليه وسلم داسې فرمائي "الفضة بالفضة ربوا الا هاء و هاء والذهب بالذهب ربوا الا هاءَ و هاءَ" ترجمه سپين زر په سپينو زرو بدلول سود دی مګر هغه وخت چه طرفين وائي واخله واخله. يعنې لاس په لاس. او سره زر په سرو زرو سود دی مګر وائي چه واخله واخله.

او دغه رنګه کالداره په ډالر بدلول که تفاضل ئې روا دی لکن لاس په لاس والی شرط دی. او کالداري او افغاني که څه هم دواړه د سپينو زرو په ځای کې دي تفاضل ئې روا دی ولې چه مقدار د کالداري غټ دی لکن لاس په لاس والی ئې ضروري دی. د دغو مسئلو د پاره د حل او د صحت لاسته. تجاران دي ملايانو ته رجوع وکړي او هغه لاره دې نه ده کړي.

## نادره خبره

يو لوی سرمايه دار سړی چه د وقت کاروبار کوي. او لوم اخستل ئې پر کار نه دي. ويوچا ته ويلي وه چه پر ما زکات نسته ولې زما روپه پر قانون شرعي د وقت نه دي برابري. نو ټولې روپې زما حرامې دي او مردار دي او په حرام او مردار مال کې زکات نسته. افسوس: چه دغه سړي په دغو روپو کلي کوي زځان وعيال ته او بيا په هغو کالو لمونځ کوي. او کله هم دې خيرات په نيت د ثواب هم کوي.

او دا مسئله ده چه په حرام کې نيت د ثواب کول که کفر نه وي ګناه کبيره خو ده او دغه سړي ته خلک وائي ډېر ښه سړی دی. او دا جمله معترضه وه او س بيرته د نوټو مسئلې ته کرځم.

او بعض علماء وائي چه نوټونه حکم د عروضو لري. يعنې لکه کمبلي ټوکران کاغذونه وغيره. که څيره دا خبره صحيح وي هغه مشکلات لوله پوره ته کيږي. لکن په هر صورت کې زکات ئې هغه دی چه را به سي.

لَيْسَ فِيمَا دُونَ مِائَتَيْ دِرْهَمٍ صَدَقَةٌ فَإِذَا كَانَتْ مِائَتَيْ

نشته په کم کې تر دوه سوه روپو زکات بیا چه دوه سوه درهم

دِرْهَمٍ وَحَالَ عَلَيْهَا الْحَوْلُ فَفِيهَا خَمْسَةُ دَرَاهِمَ وَلَا

پوره شي او پر دوی کال تیر شي. نو په هغو کې پنځه درهمه زکات دی. او هیڅ

شَيْءَ فِي الزِّيَادَةِ حَتَّى تَبْلُغَ أَرْبَعِينَ دِرْهَمًا فَيَكُونَ فِيهَا

شی نشته په زیاتوالي کې تر دوه سوه تر څو چه رسیږي و څلویښت درهمو ته. نو په څلویښت کې یو

دِرْهَمٌ ثُمَّ فِي كُلِّ أَرْبَعِينَ دِرْهَمًا دِرْهَمٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ

درهم دی. او بیا په هر څلویښت کې یو درهم زکات دی. په نزد د امام صاحب

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ مَا زَادَ عَلَى الْمِائَتَيْنِ

او وائي ابو یوسف او محمد چه هغه چه تر دوه سوه زیات شي زکات ئې په حساب د دوه

فَزَكَاتُهُ بِحِسَابِهِ وَإِذَا كَانَ الْغَالِبُ عَلَى الْوَرِقِ فِضَّةً

سوه دی (مثلاً کړه دوه سوه او شل روپۍ شي زکات ئې پنځه او نیمه روپۍ دی) کوم چیرې چه دی په سکه دار روپو کې سپین زر

فَهُوَ فِي حُكْمِ الْفِضَّةِ وَإِذَا كَانَ الْغَالِبُ عَلَيْهِ الْغِشُّ

نو هغه حکم د سپینو زرو لري یعنی وزن ته ئې اعتبار دی او که چه غالب په روپو کې کوټ وي پس هغه په حکم کې د

فَهُوَ فِي حُكْمِ الْعُرُوضِ وَيُعْتَبَرُ أَنْ تَبْلُغَ قِيمَتُهَا نِصَابًا

عروضو دی او اعتبار د هغه وخت لري (یعنی زکات پرې کیږي) چه قیمت ئې نصاب ته رسیږي.
یعنی مقدار ته ئې اعتبار نشته.

مسئله: په ننني زمانه کې چه نقدي روپۍ سراسر کوټ دی نو د هغوی قیمت ته اعتبار ورکړ شي نه وزن ته.

یو کار سکه: چه درهم او دینار عددي شیان نه دي بلکه په شرعه شریفه کې د وار وزني

یعنې د تول شیان دي پس فقیه لره د دوارو وزن پېژندل پکار دي. حاصل دا چه داسې
نږده چه د هر وطن مروجه سکه درهم دی یا دینار. مثلاً د افغانستان افغاني، د پاکستان کلدار
د ایران ریال، د عربستان ریال. وهکذا. یا د امریکا ډالر، د عراق دینار، د کویت دینار.
وهکذا نورې سکې د دنیا د مملکتو. نو لوړه چه په هدایه ج۱ ص۱۷۷ کې داسې عبارت دی.
والمعتبر في الدراهم وزن سبعة وهو ان تكون العشرة منها وزن سبعة مثاقيل بذالك جرى
التقدير في ديوان عمر رض واستقر الامر عليه. ترجمه: معتبر په درهمو کې تول دا دی وزن دی او هغه
دا چه لس درهمه وزن دا د اوو مثقالو وي په دغه سره جاري شوې ده اندازه په دفتر کې د عمر رض
او قرار ونیوه امر د اسلام په دغه تقدیر. او په کوکب دري ص۱۵ او په عیني شرح هدایه ص۱۱ کې
وائي چه درهم څوارلس قیراط وزن دی آه مثقال وهرچا ته معلوم دی.

د خلاصة الحساب په ص۲۹ کې وائي چه دینار (۶) دانق دی. او دانق (۲) حبة دی.
او حبة (۲) اوربشې دي. او اوربشه (۲) خردله ده. او خردل (۱۲) فلس ده. او فلوس (۶) فتیله
دی. او فتیله (۶) نقیره ده. او نقیر (۶) قطمیر دی. او قطمیر (۱۲) ذرې دي.

مسئله: د زکات او د سرقې په نصاب کې هم دغه مقدار د درهمو او دینارو معتبر دی.

مسئله: که یوې ښځې د سرو زرو امیل یا کوټۍ یا بنګړي درلوده یا نور شیان
نو که هغه شل مثقاله ته رسیدل یا بالا وه په هغه ښځه باندې هر کال زکوة، سرسایه او اختري سته.
او د بل چا زکوة ور ته روا دی. او که تر شل مثقاله کم وه که څه هم په قیمت کې ډیر ارزښت وي
په اعتبار د صنعت د زرګر په هغې زکات نشته نه سرسایه وغیره. مطلب دا چه صنعت ته اعتبار
نشته په سرو زرو او سپینو زرو کې. بلکه اعتبار وزن لره دی.

مسئله: هر شی چه ښځه د پلار د کوره یو سي کله د دې په ولوار اخستي سوي وي
یا پلار د خپله ماله ورکړي وي هغه شیان د ښځې ملک دي میړه کار نه پورې لري او زکات
و سرسایه وغیره په ښځه پورې اړه لري. نو که د دغې ښځې میړه مسکین وي د بل چا څخه
زکات ورته اخستل روا دي.

مسئله: که مایني ته میړه پسله واده د سرو زرو شیان ورکړه د دې د ښائست د پاره
او ور هبه نه کړه د هغو شیانو زکات وغیره په میړه پورې اړه لري. نه په ماینه پورې
او ښځه په هغه سره ګنهکاره نه ده. دا وو د درهم او دینار په باره تحقیق.

اللهم اغفر لكاتبه ولمؤلفه ولوالديهما.

# بَابُ زَكٰوةِ الذَّهَبِ

باب دی په بیان کی د زکوة د سرو زرو

لَيْسَ فِيْمَا دُوْنَ عِشْرِيْنَ مِثْقَالًا مِنَ الذَّهَبِ صَدَقَ

نشته په کم کی تر شل مثقاله د سرو زرو زکات (او دا د سرو زرو نصاب دی)

فَاِذَا كَانَتْ عِشْرِيْنَ مِثْقَالًا وَحَالَ عَلَيْهَا الْحَوْلُ فَفِيْهَا

پس چه سول سره شل مثقاله او تیر سو پر هغو کال نو په هغو کی نیم مثقال زکوة دی

نِصْفُ مِثْقَالٍ ثُمَّ فِيْ كُلِّ اَرْبَعَةِ مَثَاقِيْلَ قِيْرَاطَانِ

پس په هر څلورو مثقالو کی دوه قیراطه زکات دی۔

وَلَيْسَ فِيْمَا دُوْنَ اَرْبَعَةِ مَثَاقِيْلَ صَدَقَةٌ

او نشته په کم کی تر څلورو مثقالو زکات (یعنی چه تر نصاب د وږ یا د سر ي مثقاله بالاسی په هغه بالا بود کی زکات نشته

وَقَالَا مَا زَادَ عَلَى الْعِشْرِيْنَ فَزَكَاتُهٗ بِحِسَابِهٖ

او یاران وائی چه تر شل مثقاله بالاسی په حساب د شلو مثقالو به زکات وه کوی۔

وَفِيْ تِبْرِ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ وَحُلِيِّهِمَا وَالْاٰنِيَةِ

او په بی سکه سرو زرو او سپینو زرو کی او په زیوراتو کی د دی دواړو او په لوښو کی

مِنْهُمَا الزَّكٰوةُ

د دی دواړو زکوة شته۔

# بَابُ زَكٰوةِ الْعُرُوْضِ

باب دی په بیان کی د زکوٰة د عروضو یعنی ما سوا د سپینو زرو او د سرو زرو دا ټول عروض بولی

## اَلزَّكٰوةُ وَاجِبَةٌ فِىْ عُرُوْضِ التِّجَارَةِ كَائِنَةً مَّا كَانَتْ

زکوٰة واجب دی یعنی فرض دی په عروضو کی د تجارت چه وی دا عروض هر شی چه وی۔

یعنی که غالی وی که کمبلی که موټر که چائی که بوره او نور د غسی شیان حتی د کانونه د تجارت سرایونه د تجارت او بنان د تجارت پسونه د تجارت غوائی د تجارت مشینان د تجارت۔

مسئله: مصنف د تجارت قید حکه وایه چه که چیری بعض د غه شیان د خپل استعمال دپاره وی په هغوی زکات نشته که څه هم هر څو قیمت دیروی یعنی تر نصاب بالا وی۔ حتی یو موټر چه قیمت ئی په لکو روپیه وی که د سپرلیا دپاره وی زکوٰة پکښی نشته۔ او یو موټر چه د هغه قیمت کم وی لکن نصاب ته رسیږی خو د سپرلیا دپاره نه وی زکات باندی شته او پر د غه قیاس کړه نور شیان لکه غالی بنګله وغیره۔

## اِذَا بَلَغَتْ قِيْمَتُهَا نِصَابًا مِّنَ الْوَرِقِ اَوِ الذَّهَبِ يُقَوِّمُهَا

که چیری ورسیږی قیمت د هغو نصاب ته د سرو یا سپینو زرو بیا نو زکات پکښی شته۔ او قیمت دی

## بِمَا هُوَ اَنْفَعُ لِلْفُقَرَاءِ وَالْمَسَاكِيْنِ مِنْهُمَا

کړی د غه عروض په هغه مال چه پکښی دیره فائده وی د فقیرانو او د مسکینانو د غو سپینو یا سرو زرو

## وَقَالَ اَبُوْ يُوْسُفَ يُقَوِّمُهَا بِمَا اشْتَرَاهُ بِهٖ

او امام ابو یوسف وائی په هغه مال دی قیمت کړی چه د غه سړی د غه عروض په هغه مال را اخیستی وی یعنی که ئی په سرو زرو را اخیستی وی په سرو زرو دی ئی قیمت کړی او که ئی په سپینو زرو را اخیستی وی نو په سپینو زرو دی ئی قیمت کړی۔

**فَاِنْ اشْتَرَاهُ بِغَيْرِ الثَّمَنِ يُقَوِّمُ بِالنَّقْدِ الْغَالِبِ**

او که یې په ثمن نه وه راینولی یعنی په سرو زرو یا سپینو زرو یې نه وه راینوی بلکه په عروض یې راینولی وو، نو دا

**فِي الْمِصْرِ وَقَالَ مُحَمَّدٌ بِغَالِبِ النَّقْدِ فِي الْمِصْرِ**

قیمت کړي په هغه رواج چه ډیر چلیږي په ښار کې. او ویلي دي امام محمد رح چه قیمت دې کړي د غه عروض په غالب

**عَلٰى كُلِّ حَالٍ وَاِذَا كَانَ النِّصَابُ كَامِلًا فِي**

رواج د ښار پر هر حال (که په نقد وه راینولی وي که په رواج)، او که وو نصاب پوره په سر او پای کې د کال

**طَرَفَيِ الْحَوْلِ فَنُقْصَانُهُ فِيمَا بَيْنَ ذَالِكَ لَا تَسْقُطُ الزَّكٰوةَ**

نو نقصان ئې تر نصاب په مابین کې د کال زکوة نه ساقطوي، یعنی زکوة پرې فرض دی،

مسئله: که نصاب په سر کې د کال پوره وو او په پای کې د کال کم شو زکات ئې نشته.

**وَيُضَمُّ قِيمَةُ الْعُرُوضِ اِلَى الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ**

او جمع به کول کیږي قیمت د عروضو سره د سرو زرو او سپینو زرو سره.

**وَكَذَالِكَ يُضَمُّ الذَّهَبُ اِلَى الْفِضَّةِ**

او همدارنګه ضمیمه کیږي سره زر د سپینو زرو سره په قیمت سره

**بِالْقِيمَةِ حَتّٰى يَتِمَّ النِّصَابُ عِنْدَ اَبِي حَنِيفَةَ رح**

حتی چې پوره شي نصاب او دا هم په نزد د امام صاحب رح.

مثلاً: یو سړي سل درهمه درلوده او عروض ئې هم درلوده چې د هغې قیمت سل درهمه کیدی نو دې دواړه سره ضم کړي. او د دوه سوو درهمو زکات دې ورکړي. یا یو سړي لس مثقاله سره زر درلوده او نور ئې عروض درلوده یا سپین زر چې د هغې عروضو یا سپینو زرو قیمت لس مثقاله کیدی نو دواړه دې سره ضم کړي او د شلو مثقالو زکوة دې ورکړي.

## وَقَالَا يُضَمُّ الذَّهَبُ إِلَى الْفِضَّةِ بِالْأَجْزَاءِ

او یاران وائی چه ضموی دی سره زر و سپینو زرو ته په اجزاء سره.

حتی که یوه سره سل درهمه لوده او پنځه مثقال سره زر چه قیمت ئی سل درهمه وی نو په نزد د امام اعظمؒ زکوة د دوو سوو درهمو کیږی یاران وائی چه زکوة باندی نشته. ولی سپین زر که څه هم نیم نصاب دی خو سره زر نیم نصاب نه دی ولی چه د سرو زرو نیم نصاب لس مثقال دی. نو اجزاء ئی برابر نه دی. او یا داسی صورت وو چه یوه سره لس دیناره درلوده چه قیمت ئی پنځوس درهمه کیدی او سل ئی درهمه درلوده نو په نزد د یاران زکات پرکیږی. ولی چه اجزاء ئی برابر دی. ولی چه د شلو مثقالو چه نصاب د سرو زرو دی. نیم ئی چه لس مثقاله دی موجود دی. او د دوه سوو درهمو چه نصاب د سپینو زرو دی. هم ئی نیمی ستا چه سل درهمه دی. او د امام اعظمؒ په نزد زکات نشته ولی چه مجموع سره او سپین زر یو نیم سل روپی کیږی نو نصاب یعنی دوه سوه درهمه نه سو پوره کړ. وعلى هذا فقس غيرهما من الصور المحتملة.

## بَابُ زَكٰوةِ الزُّرُوْعِ وَالثِّمَارِ

باب دی په بیان کی د زکات د کښتو او د میوو.

**فائده!** مراد د مصنف د زکات څخه د لته عشر دی. او فرق په مابین د زکات او عشر دادی چه په زکات کی نصاب شرط دی که ترنصاب کم وی زکات ئی نشته. او په عشر کی په مذهب د امام اعظمؒ نصاب شرط نه دی بلکه په لږ حاصلاتو کی او په ډیرو کی عشر لازم دی.

## قَالَ اَبُوْحَنِيْفَةَ فِيْ قَلِيْلِ مَا اَخْرَجَتْهُ الْاَرْضُ وَكَثِيْرِهِ الْعُشْرُ وَاجِبٌ

ویلی دی امام اعظمؒ چه په لږ کی د هغه چه حکمکی ئی راوباسی او په ډیر کی د هغه لسم حصه زکوة واجب او فرض دی لقوله علیه الصلوٰة والسلام، مَا اَخْرَجَتْهُ الْاَرْضُ فَفِيْهِ الْعُشْرُ، او د قلیل او کثیر فرق ئی نه دی کړی.

**مسئله:** د قلیل اندازه څوک وائی یوه کاسه ده او څوک وائی نیمه کاسه ده نو تر هغه په کم کی هیڅ شی نشته. کوکب دری ص۵۳.

## سَوَاءٌ سُقِيَ سَيْحًا اَوْ سَقَتْهُ السَّمَاءُ اِلَّا الْحَطَبَ وَالْقَصَبَ وَالْحَشِيْشَ

خواه هغه کښت په سیح یعنی جارې اوبو اوبېږی او یا ئې اوبوی آسمان چه په اصطلاح کې دیمه کښت بولي. مګر په لرګو او په نلانو او په وښو کې زکات نشته.

مسئله: د لرګو څخه هغه لرګي مراد دی چه مقصود په کښت کولو سره نه وی حتی که ئې هغه کی چنار ان یا نور عمارتی لرګی شنه کړی او دا په هغوی کې عشر نشته. هدایه ص۱۸۴

مسئله: د قصب څخه شکري مراد نه دی بلکه هغه نلان مراد دی چه طبعًا په بعضو ځایو کی پیدا کیږی او مقصود بالذات نه وی کړ چیری داسی نلان وه چه مقصود وه لکه هغه نلان چه خلک ئې پرخونو اچوی په هغوی کې عشر سته. هدایه ص۱۸۴

او که داسی واښه وی چه قصدا ئې ځمکه په مشغوله کړی وی لکه شپیشتی یا شوتل وغیره په هغوی کی زکات سته. هدایه ص۱۸۴

مسئله: د تاک بیرې په تاکانو کی زکات نشته. او د غه رنګه په پراړه کې زکات نشته که څه هم نن ورځ ډیر قیمت لري. ولې چه مقصود په تاکانو کی میوه او په کښت کی دانې دی. هدایه البته که سړی د نغدو روپو نصاب درلودی او تر زکات د غه ئې پس و پلورل کړی دا قیمت و هغه ته په نصاب ته ضمیمه کیږی او ټولو څخه به د نغدو زکات باسی.

## وَقَالَ اَبُوْ يُوْسُفَ وَمُحَمَّدٌ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ لَا يَجِبُ الْعُشْرُ

او ویلی دی امام ابو یوسف او امام محمد رحم دی وکړی پر دوی خدای پاک نه دی واجب عشر

## اِلَّا فِيْمَا لَهُ ثَمَرَةٌ بَاقِيَةٌ اِذَا بَلَغَتْ خَمْسَةَ اَوْسُقٍ

مګر په هغه شی کی چه میوه ئې دوام او بقاء لري چه رسیږی هغه حاصل د ځمکی پنځه وسقه ته

مسئله: په عنایه ص۱۸۳ جلد اول هدایه. اندازه د بقاء دا ده چه هغه حاصل بیله ډیر تکلیفه یو کال پاته کیږی لکه غنم او ربشی جوار ی وریجې. نو د یاره انو په مذهب کی په سبو کی په انارو کی په کیلو کی په لندو انګورو کی په بانجنوکی په رومیانو کی په نیهی کا نو کی په شفتالو کی مالتو کی په نارنج کی په الوبخاراکی په الوو کی په خټکو کی په هندوانو کی په امرتو کی په نوکی په زردالوو کی او نورو د غه قسمه شیانو کی عشر نشته.

## وَالْوَسْقُ سِتُّوْنَ صَاعًا بِصَاعِ النَّبِيِّ عَلَيْهِ السَّلَامُ

او یو وسق شپیته کاسې دی په کاسه سره د نبی علیه الصلوة و السلام -
او دا مذهب د امام شافعیؒ هم دی. غرض دا دی چه یارانو و حاصلاتو د هغې هم نصاب شرط بولی او هغه پنځه وسقه دی.

## وَلَيْسَ فِي الْخَضْرَاوَاتِ عِنْدَهُمَا عُشْرٌ

او نشته په شنو شیانو کې په نزد د یارانو عشر -

مسئله ! خضروات هغه شیان بولی چه په شینوالی خوړل کیږی لکه کندنه، تیرف، تن پچه، شنه مصالح، مرچه، بادرنګ، چمبرخیال، شنه پیاز، او نور د دغه قسم شیان -
نو په دې شیانو کې هم عشر نشته په نزد د یارانو

فائده ! په دغو اختلافی مسئلو کې فتوی پر قول د امام اعظمؒ ده. کذا فی رد المحتار و البدائع -

## وَمَا سُقِيَ بِغَرْبٍ اَوْ دَالِيَةٍ اَوْ سَانِيَةٍ فَفِيْهِ نِصْفُ الْعُشْرِ عَلَى الْقَوْلَيْنِ

او هغه کښت چه اوبه یې په غرب یعنی لویه سولاغه یا په دالیه یعنی هغه سولاغه چه په غویو یې راکاږی یا په سانیه دا هغه اوبه بولی چه اوبه پره راکاږی. نو په دغو حاصلاتو کې د عشر نیمی برخه ده یعنی شلمه حصه په دواړو قولو -

## وَقَالَ اَبُوْ يُوْسُفَ فِيْمَا لَا يُوْسَقُ كَالزَّعْفَرَانِ وَالْقُطْنِ

او وائی امام ابو یوسفؒ چه هغه شیان چه په وسق یې خرید و فروخت نه کیږی لکه زعفران او پنبه بلکه په منو یا سیرو یا په غوټو مثلاً زعفران په سیر وای منو معامله کیږی او پنبه په غوټو وکا تو

## يَجِبُ فِيْهِ الْعُشْرُ اِذَا بَلَغَتْ قِيْمَتُهٗ اَدْنٰى مَا يَدْخُلُ

نو په هغه کې عشر واجب دی چه قیمت د هغه وره سیږی و هغه کم شی ته چه داخلیږی لاندې

## تَحْتَ الْوَسْقِ وَقَالَ مُحَمَّدٌ يَجِبُ الْعُشْرُ اِذَا بَلَغَ الْخَارِجُ

تر وسق او امام محمدؒ وائی چه عشر په دغو شیانو کې هلته واجب دی چه وره سیږی حاصل (لکه جوار یا ماش)

## خَمْسَةَ اَمْثَالٍ مِنْ اَعْلٰى مَا يَتَقَدَّرُ بِهٖ نَوْعُهٗ

ته پنځه مثله تر د هغه اعلی چه اندازه کیږی په هغه سره نوعه د دغو شیانو

فَاعْتَبَرَ فِي الْقُطْنِ خَمْسَةَ أَحْمَالٍ وَفِي الزَّعْفَرَانِ

نو معتبر کړی دی امام محمدؒ په پنبه کی پنځه انړی یعنی کاټ یا غوټه او په زعفران کی پنځه منه یعنی هغه من

خَمْسَةَ أَمْنَاءٍ وَفِي الْعَسَلِ الْعُشْرُ إِذَا أُخِذَ مِنْ

چه دوه سوه او شپیته درهم مقدار وی او په عسلو کی عشر دی چه دا عسل واخستل سی د عشری

أَرْضِ الْعُشْرِ قَلَّ أَوْ كَثُرَ وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ يَجِبُ

ځمکی څخه نو ډیر وی هغه عسل او که لږ وی (دا مذهب د امام صاحب دی) او ویلی دی امام ابویوسفؒ

فِيهِ الْعُشْرُ حِينَ يَبْلُغَ عَشَرَةَ أَزْقَاقٍ وَقَالَ مُحَمَّدٌ

چه زکوة په عسلو کی هغه وخت واجب دی چه لس زقه ته ورسیږی او امام محمدؒ وائی چه

خَمْسَةَ أَفْرَاقٍ وَالْفَرَقُ سِتَّةٌ وَثَلَاثُونَ رِطْلًا

پنځه فرق ته ورسیږی او یو فرق شپږ دیرش رطل کیږی

بِالْعِرَاقِ وَلَيْسَ فِي الْخَارِجِ مِنْ أَرْضِ الْخَرَاجِ عُشْرٌ

په عراق سره او نسته په هغو عسلو کی چه پیدا سی په خراجی ځمکه کی عشر۔

## بَابُ مَنْ يَجُوزُ دَفْعُ الصَّدَقَةِ إِلَيْهِ وَمَنْ لَا يَجُوزُ

باب دی په بیان کی د هغو کسانو چه د زکات ورکړه ورته روا ده او د هغو کسانو چه زکوة ورته ناروا دی۔

فائده! د دې باب د مسائلو زده کړه ډیره مهمه ده۔ ولې چه دنیا ډیره محبوبه ده۔ نو ډیر کسان چه اغنیاء هم وی د بل زکات اخلی خصوصًا بعض ملایان او سره د دی چه دغه زکات ورته حرام شرعی دی۔ او مالک د زکات که په غناء د هغه خبر وی د زکات غاړی ئی نه خلاصیږی۔

مسئله! که د یوه سړی پر بل سړی د مسکین ظن وی نو ئی هغه ته زکوة ورکړی

او هغه هم واخستی او په حقیقت کی هغه سړی غنی وی د زکات ورکوونکی غاړه خلاصه شوه. او اخستونکی ته حرام قطعی دی.

مسئله: زکات په نیت د زړه پوری اسره لری د خولی وینا نه غواړی چه داشی په زکوة کی واخله البته د خولی د وینا ته فائده ده که هغه سړی غنی وی و نو به وائی چه زه ئی نه غواړم ولی چه زه غنی یم.

تکمله: واعظان په مساجدو او محافلو کی د زکات فضائل بیانوی او د مانع الزکات عذابونه د آیات قرآنیه او احادیثو نبویه دلاسری په ډیر شوق او جوش سره بیانوی او هیڅ وخت د مصارفو د زکات تفصیلی او هراړخیز بیان نه کوی. ولی چه دا خبره ئی کړه نه ده مصارفو تفصیل و کړم نو زه د مصارفو څخه ونه بیا ماته څوک زکات نه راکوی بدین عقل و دانش باید گریست. قال الحافظ الشیرازی ؒ

واعظان کین جلوه در محراب و منبر میکنند — چون بخلوت میروند آن کار دیگر میکنند

نو د دغه ضرورت د کبله به زه د دی باب سره تفصیل او تحقیق وکړم. تاچی زکات ورکوونکی هم سعی او کوښښ وکړی چه خپل زکوة په مصرف برابر کړی او زکوة اخستونکی هم صبر وکړی چه د خلکو څخه حرام زکات وانه خلی. ولی خوړی به ئی عیال او غاړی به د ده په بند وی. نو پوره سره چه د زکات د مصارفو بیان خدای پاک په دی آیت کی کړی دی.

**إِنَّمَا الصَّدَقَاتُ لِلْفُقَرَاءِ وَالْمَسَاكِينِ وَالْعَامِلِينَ**

ترجمه: نه دی زکاتونه مگر د هغو کسانو لره دی فقیرانو لره مسکینانو لره او چه را ټولونکی د

**عَلَيْهَا وَالْمُؤَلَّفَةِ قُلُوبُهُمْ وَفِي الرِّقَابِ وَالْغَارِمِينَ**

د زکات دی او هغه کسان چه د دوی د زړه الفت طلب کیږی او په خلاصیدو کی د غاړی د مکاتبو او پوړوړو

**وَفِي سَبِيلِ اللَّهِ وَابْنِ السَّبِيلِ فَرِيضَةً مِنَ اللَّهِ**

او په لاره کی د خدای او مسافر ته او دا فرض دی د جانبه څخه د خدای پاک دی او خدای

**وَاللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ فَهٰذِهٖ ثَمَانِيَةُ أَصْنَافٍ**

پاک غالب دی او صاحب د حکمت او خاوند دی. نو دا مصارف اته قسمونه دی.

**وَقَدْ سَقَطَ مِنْهَا الْمُؤَلَّفَةُ قُلُوْبُهُمْ لِاَنَّ**
په تحقیق ساقط سوه د هغو اتو د لوځه مؤلفة القلوب ولې چه

**اللّٰهَ تَعَالٰی اَعَزَّ الْاِسْلَامَ وَاَغْنٰی عَنْهُمْ**
خدای پاک غالب کړی اسلام او بې پروا وګرځاوی له دوی ځنه.

مؤلفة القلوب هغه ضعیف الایمانه کسان وه چه د ړوپو ورکولو په سبب په
اسلام کې پاته وه او یا هغه کافران وه چه د پیسو په واسطه د دوی زړه و اسلام ته را جلبیږی
په قرآن شریف کې و دوی ته حصه ور کړه سوې ده او د رسول کریم صلی الله علیه وسلم
په زمانه کې هم دوی برابره خپله تنخواه او حصه وړه. څه وخت چه آنحضرت صلعم
وفات سو او ابو بکرؓ خلیفهٔ اسلام سو نو دغه کسان په خپل وخت را غلل او ابوبکرؓ
ته ئې وویل چه زموږ مکتوب را بدل کړه. یعنې ستا و خلافت ته ئې را نقل کړه
ابو بکرؓ و دوی ته نوی مکتوب د تنخوا ور کړی بیا دوی حضرت عمرؓ ته ور غله
چه په هغه هم امضاء وکړي حضرت عمرؓ هغه مکتوب څیری کړی او دوی ته ئې
وویل چه رسول الله صلعم چه تاسی ته تنخواه ورکوله د دې سبب چه ستاسی
زړونه د اسلام سره الفت پیدا کړي او نن ورځ خدای پاک اسلام ته غلبه ور کړه
ستاسی و الفت او کومک ته ضرورت نسته. نو زموږ او ستاسی ترمابین نن ورځ
یا اسلام دی یا توره ده. نو دوی بېرته ابوبکرؓ ته ور غله او ورته وې ویله چه
خلیفه د اسلام ته ئې که عمرؓ ابوبکرؓ ور ته وویل چه دی دی ان شاء الله تعـ.
کذا فی البنایة فی الهدایه ص۱۸۷ ج۱ وعلی ذالك انعقد الاجماع آه - پر دغه مسئله ټول
اصحابو کرامو اتفاق وکړ چه د مؤلفة القلوب حصه به نه وي.

پوه سه! چه حسن بصریؒ او امام زهریؒ او امام احمدؒ او امام شافعیؒ وائی
چه د مؤلفة القلوب حصه نه ده ساقطه اوس ئې هم امام المسلمین ور کوي.
دوی وائی چه د دغو کسانو برخه په قرآن او حدیث سره ثابته ده نو په قول د عمرؓ خو نه
منسوخه کیږی. د دې دلیل په جواب کې زموږ حنفیانؒ ځوک دا وائی چه د قرآن شریف
دغه حصه په اتفاق او اجماع سره منسوخه سوه او دوی وائی چه نسخه د قرآن په اجماع سره وا ده
ولې چه اجماع هم دلیل قطعی او یقینی دی. او دا جواب عینی ضعیف کړی دی. ولې چه

قطعیت او قوت د قرآن مبارک تر قوة د اجماع ډیر دی. بلکه صحیح جواب چه ټوله فقهاء وی ئی پر متفق دی دا دی. چه کله هی یو حکم قرآنی په سبب د انتهاء د هغه د سبب هم وپای ته ورسیږی. یعنی سبب د تنخواه د مؤلفة القلوب ضعف د اسلام وو چه اسلام قوی او مضبوط سو نو هغه سبب د مابینه ولاړی. نو حکم قرآنی هم وپای ته ورسید ئی مثلا جهاد د کفار و سره فرض وی. په ډیرو آیتو د قرآن کریم او د هغه سبب کفر د دوی دی. او اعلاء د کلمة الله ده نو فرضا که د نړیه ټوله کافران مسلمانان سی جهاد اسلامی هم پای ته ورسیږی. والتفصیل فی مطولات کتب الفقه.

## وَالْفَقِيْرُ مَنْ لَهُ اَدْنٰى شَيْءٍ وَّالْمِسْكِيْنُ مَنْ لَّا شَيْءَ لَهُ

او فقیر هغه څوک دئ چه لږ شی لری او مسکین هغه څوک دئ چه هیڅ شی نه لری دلږ شی انداز ه بعض وائی دیوه شپانه روځ خوړه ده او بعض وائی دیوې میاشتی.

فائده! هغه کسان چه وائی زه فقیریم په تنلو کی لس فقیران نه دی.

## وَالْعَامِلُ يُعْطٰى لَهُ الْاِمَامُ اِنْ عَمِلَ بِقَدْرِ عَمَلِهٖ

او عامل یعنی زکوة جمع کوونکی ته دې ورکوی امام کهٔ کار کړی وو په اندازه د د ه د عمل چه په رایه پورې د امام او په تبدل د زمانې پورې اړه لري.

## وَفِى الرِّقَابِ اَنْ يُّعَانَ الْمُكَاتِبُوْنَ فِىْ فَكِّ

او ورکره په رقاب کی دا ده چه کومک وکړه سی د مکاتبو مریانو سره چه دوی د خپلو مالکانو

## رِقَابِهِمْ وَالْغَارِمُ مَنْ لَزِمَهُ الدَّيْنُ

څخه خپل ځانونه خلاص کړي او غارم هغه سړی دی چه پر د ه پور باندی وی که څه هم بعض محکما و باغ لری او فی سبیل الله هغه سړی دی چه په غزا وجهاد کی بیځرته سی که څه هم په وطن کی مالدار وی او ابن سبیل

## وَفِىْ سَبِيْلِ اللّٰهِ مُنْقَطِعُ الْغُزَاةِ وَابْنُ السَّبِيْلِ

## مَنْ كَانَ لَهُ مَالٌ فِىْ وَطَنِهٖ وَهُوَ فِىْ مَكَانٍ

هغه څوک دی چه په خپل وطن کی مال لری لکن دی په داسی ځای کی وی چه هلته شی

لَا شَيْءَ لَهُ فِيْهِ فَهٰذِهٖ جِهَاتُ الزَّكٰوةِ

نه لري. هم دغه دي چه ذکر شوي جهات د زکات دي.
يعنې مصارف او ځايونه د ورکړې د زکات دي يعنې وغيره د دغو ډلو ته زکات ورکول نه دي روا

وَلِلْمَالِكِ اَنْ يَّدْفَعَ اِلٰى كُلِّ وَاحِدٍ مِّنْهُمْ وَلَهٗ اَنْ يَّقْتَصِرَ

او مالک ته د زکوة دا روا ده چې و تولو دغه ډلو ته خپل زکوة ورکړي يعنې هرې ډلې ته څه څه ورکړي او د

عَلٰى صِنْفٍ وَّاحِدٍ وَلَا يَجُوْزُ لَهٗ اَنْ يَّدْفَعَ الزَّكٰوةَ اِلٰى ذِمِّيٍّ

هم روا ده چه پر يوه ډله زکوة ختم کړي. او نه ده روا چه ورکړي زکات و اهل ذمه ته.
يوه مسئله! چه اهل ذمه هغه څوک دي چه په اسلامي مملکت کې په ذمه واري هميشه اوسيږي په مذهب که هندو وي که يهودي وي او که نصاري وي.
مسئله! و اهلِ ذمه ته ما سوا د زکات څخه نور تول خير وخيرات روا دي. کوکب دري

وَلَا يُبْنٰى بِهَا مَسْجِدٌ وَّلَا يُكَفَّنُ بِهَا مَيِّتٌ

او نه دي جوړوي د زکات په روپو مسجد ولې چه قبض شرط دی او کفن دي نه راننسي د زکات په پيسو مړي
البته که قريبان د مړي مسکينان وه هغوته دې زکات ورکړي او هغو کفن په راننوي.

وَلَا يُشْتَرٰى بِهَا رَقَبَةٌ تُعْتَقُ وَلَا تُدْفَعُ اِلٰى غَنِيٍّ

او نه به راننسي د زکوة په پيسو مريی چه آزاد ئي کړي او نه دي ورکول کيږي زکات و غني ته.
مسئله! غني هغه سړي دی چه مالک دي وه نصاب وي د هر مال څخه چه وي او بنا له غوائي وي پسونه وي او که سره زر وي يا سپين زر وي.
مسئله! د اهل علم د پاره يوه يوه نسخه د کتابو د تفاسيرو او احاديثو او د فقهي او د هغه کتاب يوه شرح چه حل د کتاب په کيږي د حاجت اصلي څخه دي غنا په نا بتيږي او زائد تر هغه يا کتابونه د نحو او د صرفو يا د معاني يا د لغت يا د منطق يا د حکمت يا د رياضي يا نور په قيمت سره حساب کيږي. که نصاب ته ورسيږي هغه غني دي زکات نه دي ورته روا. البته د حديثو د لغت لکه مجمع البحار. يا د اعراب القرآن د کتاب

لکه تفسیر اتقان اجازه ستر.

مسئله! بعض کسان دا حیله کوي چه روپۍ او نصاب لري چه کال نژدې سي مخ ته روپۍ و ماینه ته وبخښي او دی ځان مسکین کړي د بل چا د زکوة اخستلو دپاره او بیا ماینه خوئ هم زکوة نه ورکوي ولې چه کال د دی په لاس کې نه دی پوره تېر سوی نو چه د زکات وخت تېر سي بیرته ئې ماینه هغه پیسې میړه ته وبخښي او هر کال دغه معامله جاري وي. نو دا یوه لفظي حیله ده. وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِالصَّوَاب.

فائده! مسائل د زکات اخستلو ډېر ګرانې او پېچیده دي. باید سړی په دې باب کې مفصلو فتاواو ته رجوع وکړي لکه عالمګیریه. رد محتار. بدائع صنائع. بحرالرائق فتح القدیر. او نوره د فقهې شریفې کتابونه.

# وَلَا يَدْفَعُ الزَّكٰوةَ إِلٰى أَبِيهِ وَجَدِّهِ وَإِنْ عَلَا

او نه دی ورکوي زکوة مالک وخپل پلار او نیکه ته که څه هم لوړه وي

# وَلَا إِلٰى وَلَدِهٖ وَوَلَدِ وَلَدِهٖ وَإِنْ سَفَلَ

وَلَدِ ص

او نه دې ورکوي زکات وخپل عیال ته که نر وي او که ښځه په ویش جلا وي او که که څه هم مسکینان وي. او نه دی ورکوي زکات وعیال ته که څه هم کښته وي.

# وَلَا إِلٰى أُمِّهٖ وَجَدَّاتِهٖ وَإِنْ عَلَتْ وَلَا إِلٰى إِمْرَأَتِهٖ

او نه دې ورکوي زکات سړی وخپلې مور ته او انا ته که څه هم لوړه وي او نه دې ورکوي میړه ماینې ته

# وَلَا تَدْفَعُ الْمَرْأَةُ إِلٰى زَوْجِهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ

او نه دی ماینه زکوة ورکوي خپل میړه ته. او دا په نزد د امام اعظمؒ

# وَقَالَا تَدْفَعُ إِلَيْهِ وَلَا يَدْفَعُ إِلٰى مُكَاتَبِهٖ وَلَا إِلٰى

او یاران وائي چه ماینه دی خپل میړه ته زکوة ورکوي یعنې روا دی. او نه دی ورکوي زکات خپل مکاتب ته مکاتب هغه مریی دی چه بادار ورته ووائي زه روپۍ مثلاً په دوه یا درې کالو کې راکړه نو ته آزاد ئې زکات ولې نه دی ورته روا چه دغه مکاتب تر هغو مریی دی چه یوه روپۍ ئې پر ذمه باندې پاته وي.

**مَمْلُوْكِهٖ وَمَمْلُوْكِ غَنِيٍّ وَوَلَدِ غَنِيٍّ اِذَا كَانَ صَغِيْرًا**

او نه دی ورکوی زکوٰة وخپل مریی او د غني مریي ته او نه يې ورکوی وړوکي یالوړ ته د غني چه کوچنی وی.
یعنی بالغ نه وی. د غني نه وړوکي یالوړ ته چه بالغ وی زکات ورکول شی کږ چه هم د پلار سره شریک وی. ردالمحتار

**وَلَا يَدْفَعُ الزَّكٰوةَ اِلٰى بَنِيْ هَاشِمٍ وَهُمْ اٰلُ عَلِيٍّ رض وَاٰلُ**

او نه دی ورکوی زکوٰة اولادته د هاشم. او اولاد د هاشم اولاد د علی رض او اولاد د عباس رض

**عَبَّاسٍ رض وَاٰلُ جَعْفَرٍ رض وَاٰلُ عُقَيْلٍ رض وَاٰلُ حَارِثٍ رض وَمَوَالِيْهِمْ**

اولاد د جعفر رض او اولاد د عقیل رض او اولاد د حارث رض چه هغه وی د عبدالمطلب دی او د دوی مریانوته دی نه ورکوی

فائده! بنی هاشم ته سیدانو عام دی نو سیدانوته هم زکاة اخستل ناروا دی.
لِقَوْلِهٖ عَلَيْهِ السَّلَامُ، يَا بَنِيْ هَاشِمٍ اِنَّ اللّٰهَ حَرَّمَ عَلَيْكُمْ غُسَالَةَ اَمْوَالِ النَّاسِ وَاَوْسَاخَهُمْ وَعَوَّضَكُمْ مِنْهَا خُمُسَ الْخُمُسِ، ترجمه! ای بنی هاشمو په تحقیق سره خدای حرام کړی دی پر تاسی هغه پریولی د مالونو خلکو یعنی زکوٰة او خیری د دوی او عوض ئی درکړی وتاسی ته پنځمه د پنځمی د بیت المال یعنی د غنائمو حصې څخه.

مسئله! د بنی هاشمو او سیدانو په زکات اخستلو کی د فقهاؤ اختلاف دی.
بعضی فقهاء علت د حرمت لره شرافت د نسب د دوی بولي. نو هغه شرافت تریوم القیامته پوری باقی دی. نو زکات ورته حرام دی. او ظاهر د احادیثو هم پر دغه دلالت کوی. او بعضی فقهاء وائی چه سبب د حرمت ئی خمس الخمس دی لکه په مذکور حدیث کی چه راغلی نو چونکه اسلامی ممالکو د غه خمس الخمس د دوی څخه بند کړی دی او نه ئی ورکوی نو زکات اخستل د دوی ته روا دی. وَاللّٰهُ اَعْلَمُ.

**وَقَالَ اَبُوْحَنِيْفَةَ رح وَمُحَمَّدٌ رح اِذَا دَفَعَ الزَّكٰوةَ اِلٰى رَجُلٍ**

او ویلی دی امام اعظم رح او امام محمد رح که ورکړی زکات و سړی ته چه د ده غالب گمان دا

**يَظُنُّهٗ فَقِيْرًا ثُمَّ بَانَ اِنَّهٗ غَنِيٌّ اَوْ هَاشِمِيٌّ اَوْ كَافِرٌ**

وو چه دا سړی فقیر دی پس ظاهره شوه چه دا سړی خو غنی وو. یائی ورکړی زکات و هاشمی یا کافر ته

یعنی دا ته نه وه معلومه چه دا هاشمي یا کافر دی او ورته ویسته ورته معلومه سوه چه هاشمي یا کافر وو هغه سړي چه ما زکات ورکړی۔

## اَوْ دَفَعَ فِیْ ظُلْمَةٍ اِلٰی فَقِیْرٍ ثُمَّ بَانَ اِنَّهٗ اَبُوْهُ اَوْ اِبْنُهٗ

او یا یې ورکړی زکات په تاریکۍ کی د فقیرته او بیا ورته معلومه سوه چه هغه پلار دده وو یا ئې زوی وو۔

فائده! په پلار او زوی کې تاریکه شرط کړه ولې چه ته نا ورته کي پلار و زوی پیژندل کیږي۔ او غني یا هاشمي یا کافر خو په ته نا ورته هم نه پیژندل کیږي۔

## فَلَا اِعَادَةَ عَلَیْهِ وَقَالَ اَبُوْ یُوْسُفَ وَعَلَیْهِ الْاِعَادَةُ

نو په ده باندې لوی صورتو کی ترا اکرول د زکوة په ده نسته (یعنی دوهم وار زکات په ده باندی فرض غاړه ئې خلاصی سوې) او وائی امام ابو یوسف چه په مذکوره په تولو صورتو کی په مالک د زکات اکرول د زکات سته (یعنی په هغه مجګیبی زکات ئې غاړه نه خلاصیږي)

مسئله! ملا صاحب که غني وی او مقتدیانو ته داوائی چه زه مسکین یم او دمقتدیانو هم دغه ګمان وي چه ملا صاحب لکه چه وائی مسکین دی نو زکاتونه ورکوی ملا صاحب ته خو هغه زکات حرام دی او دمقتدیانو غاړه خلاصی دي۔

په نن وخت کی دغسې واقعات ډیر دي۔ ملا صاحب د خلکو زکاتونه اخلي او په بل وطن کی محکی یا باغونه یا سرایونه پیرا ینیسی۔ یائې بل نفرته په مضاربت ورکوی۔ او ملا صاحب اضحیه هم په پټه کوي۔ تاچه مقتدیان په خبر نه سی چه ته هو نه ملا صاحب چه اضحیه کوی نو معلومه داچه غني دی او زکات ورته ناروا دی۔ او بعضی ملایان په خپل وطن کی لوی جائیداد او محکې او باغونه لري۔ خو هغه ئې د ورو نو یا د اکاد زامنو په ده مړي اینبی وی او کال په کال خپل د حاصلاتو برخه د ونه ځنی راوړي چه د زکوة څخه دی مستغني کوي۔ لکن بیا هم دی په بل کوښه وطن کی ملائی کوي او زکاتونه اخلي۔ بلکه تر مسکینانو ملایانو دی د زکات په اخستلو کی حریص وي۔ وَقَدْ عُلِمَ ذَالِكَ بِالتَّجْرِبَةِ۔

## وَلَوْ دَفَعَ اِلٰی شَخْصٍ ثُمَّ عَلِمَ اِنَّهٗ عَبْدُهٗ اَوْ

او که ورکړی زکات یوه سړي ته په ناپوهي کی او بیا ورته معلومه سوه چه هغه خوستا مریی یا

مُكَاتَبَهٗ لَمْ يُجْزِئْ فِيْ قَوْلِهِمْ جَمِيْعًا وَلَا يَجُوْزُ

مکاتب وو زکات ئی نه دی روا یعنی بیا به زکوة ورکوی په قول د درو سرو امامانو اونه دی روا ورکړه

دَفْعُ الزَّكٰوةِ اِلٰی مَنْ یَّمْلِكُ نِصَابًا مِّنْ اَیِّ مَالٍ كَانَ

د زکوة وهغه چاته چه مالک وی د نصاب د هره ماله څخه چه وی

وَيَجُوْزُ دَفْعُهَا اِلٰی مَنْ یَّمْلِكُ اَقَلَّ مِنْ ذٰلِكَ

او روا ده ورکړه د زکات وهغه چاته چه مالک وی د دونی مال چه هغه کم وی تر نصاب

وَاِنْ كَانَ صَحِيْحًا مُكْتَسِبًا وَّيُكْرَهُ نَقْلُ الزَّكٰوةِ

کرچه هم په صورت جوړ وی او پر کسب قادر وی او مکروه دی وړل د زکوة د یوه

مِنْ بَلَدٍ اِلٰی بَلَدٍ اٰخَرَ وَاِنَّمَا يُفَرَّقُ صَدَقَةُ كُلِّ

ښاره څخه و بل ښار ته. بلکه تفریق او تقسیم دې کړی امام زکوة د هر قوم

قَوْمٍ فِيْهِمْ اِلَّا اَنْ يَّحْتَاجَ الْاِنْسَانُ اَنْ يَّنْقُلَهَا

په هغه قوم کی (یعنی و فقیرانو ته د هغه قوم دې ورکړی) مګر هغه وخت که محتاج سو سړی یعنی زکات

اِلٰی قَرَابَتِهٖ اَوْ اِلٰی قَوْمٍ هُمْ اَحْوَجُ اِلَيْهِ مِنْ اَهْلِ بَلَدِهٖ

ور کونکی وډې ته چه یوسی زکات و خپلو خپلوانو ته چه هغه په بل ښار کی وی او یا یوسی زکات و یو داسی خلکو ته چه هغه ډیر محتاج وی مال ته تر خلکو د ښار د ده. یعنی هغه د بل ځای مسکینان بیخی بې چاره وی اود ده تر ښار :

# بَابُ صَدَقَةِ الْفِطْرِ

باب دی په بیان کی د خیرات د روژی کی د ماتیدو یعنی کوچنی اختر چه دی ته په اصطلاح سر سایه وائی

يوه مسئله ! چه د سر ساية سبب سر دى او فطر ئې شرط دى. كوكب درى

## صَدَقَةُ الْفِطْرِ وَاجِبَةٌ عَلَى الْحُرِّ الْمُسْلِمِ إِذَا كَانَ

سر ساية واجبه ده. په آزاد سړى چه مسلمان وى. نو په مريي كافر نه ده واجبه

## مَالِكًا لِمِقْدَارِ نِصَابٍ فَاضِلًا عَنْ مَسْكَنِهِ وَثِيَابِهِ

چه مالك وى د نصاب د هغه مال چه وى. چه بالاتر هغه نصاب تر سراى د او سيدو او تر كالو د ده

## وَأَثَاثِهِ وَفَرَسِهِ وَسِلَاحِهِ وَعَبِيْدِهِ لِلْخِدْمَةِ

او تر سامان د ده. او ضروريات وى تر آس د سپرتيا د ده او جنگى سلاح لكه توره توپک كلا شنكوف او تر مريانو د خدمت د ده

## يُخْرِجُ ذَالِكَ عَنْ نَفْسِهِ وَعَنْ أَوْلَادِهِ الصِّغَارِ

باسى به يعنى ورکوى به دغه سر ساية د خپل ځان د خوا او د كوچنى عيال د خوا كه نروى كه ښځه

## وَعَبِيْدِهِ لِلْخِدْمَةِ وَلَا يُؤَدِّيْ عَنْ زَوْجَتِهِ

او د مريانو د خدمت. او نه دى اداء كوى سر ساية د مايني د خوا

مسئله ! كه ماينه غنى وى پر دې خپله سر ساية واجبه ده كه ئې خاوند هم ميړه مسكين وى.

## وَلَا عَنْ أَوْلَادِهِ الْكِبَارِ وَإِنْ كَانُوْا فِيْ عِيَالِهِ

او نه دى باسى سر ساية د لويانو يعنى بالغانو عيالو د خوا كه نروى او كه ښځې كه څه هم دغه زامن او لوڼې د سړى په عيال كې وى. يعنى په وړيش ورسره كډ وى.

مسئله ! كه سرمايه د پلار وى او زامن ئې ورته چلوى او گټې ورته كوى هغه زامن تول مسكينان او د پلار مز دوران دى نه زكات پرې شته نه سر ساية.

مسئله ! كه پلار شى نه درلودى او ېې كسبه ناست وى زامنو سا تى او زامنو ئې په خپل كسب او تجارت روزي په برابرې كړي وي نو پلار ئې مسكين دى نه زكوة پرې شته نه سر ساية. زكات او سر ساية ئې په زامنو ده.

وَلَا يَخْرُجُ عَنْ مُكَاتَبِهٖ وَلَا عَنْ مَمَالِيْكِهٖ لِلتِّجَارَةِ

او سر سایه دی نه ورکوی د مکاتب مریی۔ او نه د هغو مریانو چه د تجارت د پاره وی.

یعنی سر سایه خوئی نسته مکرته کات ئی سته په قیمت کی د هغو۔

وَالْعَبْدُ بَيْنَ الشَّرِيْكَيْنِ لَا فِطْرَةَ عَلٰى وَاحِدٍ مِّنْهُمَا

او هغه مریی چه په مابین کی د دوو شریکانو شریک وی سر سایه ئی پر یوه هم نسته

وَيُؤَدِّي الْمُسْلِمُ الْفِطْرَةَ عَنْ عَبْدِهِ الْكَافِرِ

او ورکوی به مسلمان سر سایه د خپل مریی چه هغه مریی کافر وی۔

وَالْفِطْرَةُ نِصْفُ صَاعٍ مِّنْ بُرٍّ اَوْ صَاعًا مِّنْ تَمْرٍ اَوْ

او سر سایه نیمه کاسه ده یعنی دوه کیلو د غنمو څخه او یا یوه کاسه د خرما یا د ځکو

مسئله: اکثر سری خرما او کوله یانی وځکی او کشمش ورکوله نو یوه کاسه به ورکوی که څه هم په قیمت کښ نیمه کاسه غنمو بالا وی

زَبِيْبٍ اَوْ شَعِيْرٍ وَالصَّاعُ عِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ

او یا د اوربشو څخه او کاسه په نزد د امام صاحب او امام محمد صاحب

ثَمَانِيَةُ اَرْطَالٍ بِالْعِرَاقِيِّ وَقَالَ اَبُوْ يُوْسُفَ خَمْسَةُ

اته رطله ده په عراقی رطل سره۔ او وائی امام ابو یوسف چه کاسه پنځه رطله

اَرْطَالٍ وَثُلُثُ رِطْلٍ وَوُجُوْبُ الْفِطْرَةِ يَتَعَلَّقُ

او یوه دریمه د رطل ده۔ او واجب والی د سر سایی تعلق لری په

[illegible]ـعِ الْفَجْرِ الثَّانِيْ مِنْ يَوْمِ الْفِطْرِ فَمَنْ مَاتَ قَبْلَ

[illegible] دوهمی سپید ویعنی فجر صادق د ورځ د فطر (یعنی کوچنی اختر) که څوک مړ سو د مخه

**ذَالِكَ لَمْ يَجِبْ فِطْرَتُهٗ وَمَنْ اَسْلَمَ اَوْ وَلَدَ**

تر سپیدو دوړځې دا ختر د مخه سرسایه نه ده واجب او څوک مسلمان سو او یا وزیږیدی

**بَعْدَ طُلُوْعِ الْفَجْرِ تَجِبُ فِطْرَتُهٗ وَ الْمُسْتَحَبُّ**

پس له طلوع الفجر سرسایه پر واجبه ده۔ او ښه کار دا دئ چه ورکړدی کی

**اَنْ يُّخْرِجَ النَّاسُ الْفِطْرَةَ قَبْلَ الْخُرُوْجِ اِلَى الْمُصَلّٰى**

اوودی باسی خلک سرسایه دمخه تر وتلو وعیدګاه ته (تاچه مسکینان په فارغ زړه عیدګاه وکړي)

**فَاِنْ قَدَّمُوْهَا قَبْلَ يَوْمِ الْفِطْرِ جَازَ وَاِنْ اَخَّرُوْهَا**

او که ئې دمخه ورکړي سرسایه دا ختر ورځې روا ده۔ او که ئې وځنډول خلکو سرسایه

**عَنْ يَوْمِ الْفِطْرِ لَمْ تَسْقُطْ وَكَانَ عَلَيْهِمْ اِخْرَاجُهَا**

دا ختر ترڅو ورځې دودی د ذمې څخه نه ساقطیږی۔ او پر دوی لازم دی ایستل۔ یعنی ورکول ئې۔

## فوائد شتی

بعضی ملایان د روژې په میاشت کی او خصوصًا اختر ته نږدې د سرسایه په باره کی ډیر مواعظ او بیانات کوی او احادیث شریف بیانوی۔ او وائی چه روژې معلق دی ترهغو چه سرې سرسایه ورکوی۔ دا خو ښه کار دئ چه خلک په دین خبرسی۔ لکن دا بیانه بیانوی چه سرسایه پر چا واجبه ده۔ بلکه د دوئ د مطلق بیان څخه عوام دا فهموی چه سرسایه لکه روژه پر هرچا واجبه ده۔ حتی چه بعضی خلک چه نه دا ستوګنی سرائ لري او د روژې مزدوری اخته وی هغه هم سرسایه پرځان واجبه بولی۔ حتی بعضی کسان د سرسایې د پاره روپۍ دیوه او بله پور وړی۔ دا د دې سبب چه ملا صاحب ئې سره ور خلاصوي چه سرسایه پر هغه چا واجبه ده چه مالک د نصاب وی۔ تر مسکن، تر پوره اوتی سامان د کوره بالاوی۔ لکه چه په اول کی د باب تیر سوه۔ او بل دا چه ملا صاحب د سرسایې مصارف هم نه بیانوی۔ یعنی چه سرسایه به ورچاته ورکوی چه هغه فقراء او مساکین دی هرڅوک چه وی۔ بلکه د ملا صاحب دا شاراتو څخه عوام دا فهموی چه سرسایه پواړی او یوا[illegible]

د مسجد د ملاحق دئ کٔه هم غنی وی. نو داسی دیر لیدل کیږی چه یو غریب سړی چه د اختر په ورځ کالو هم قدرت نه لري ملا صاحب ته ورسی سرسایه ورپیش کړي ملا صاحب سره د علم په حال د ده هغه سرسایه وجیب ته واچوی. او دا نه ورته وائی چه پرتا سرسایه نه کیږي.

مسئله! که ښځې ته ډیرې جوړه بالا د اغوستو کالی دي لوډه او قیمت ئې د نصاب ته رسیدلی په هغې ښځې سرسایه واجبه ده. په دې زمانه کې ښځې پټل دیرش جوړه قیمتی کالی لري او سرسایه نه ورکوی. نو غاړې ئې بندی دی.

مسئله! په هرچا چه د شریعت د لاری سرسایه واجبه وی و هغه چا ته د بل نه کوه اخستل حرام دی. یا اختر په واجب وی هغه ته هم نه کوه اخستل حرام دی.

# كِتَابُ الصَّوْمِ

کتاب دی په بیان کی د احکامو د روژې

**فائده!** صدقة الفطر باید ترروژې وروسته ذکر سوې وای. تاچه طبع او وضع سره برابر سوی وای لکن مصنفؒ د جهت د مناسبت د صدقة الفطر د نه کات سره صدقة الفطر په نه کات پورې متصل ذکر کړه وجه د مناسبت ئې دا ده چه دوی دواړه مالی دی.

## اَلصَّوْمُ ضَرْبَانِ وَاجِبٌ وَّنَفْلٌ فَالْوَاجِبُ ضَرْبَانِ مِنْهُ مَا

روژه دوه قسمه ده واجب یعنی فرض. او نفل. او واجب بیا په دوه قسمه دی یو قسم ئې

## يَتَعَلَّقُ بِزَمَانٍ بِعَيْنِهِ كَصَوْمِ رَمَضَانَ وَالنَّذْرِ الْمُعَيَّنِ

هغه دی چه تعلق لري په زمانه معینه پورې لکه روژه د میاشتې د روژې او نذر معین مثلاً یو سړی و وائی چه په ما سبا روژه نذر ده.

فَيَجُوْزُ الصَّوْمُ بِنِيَّةٍ مِّنَ اللَّيْلِ فَاِنْ

نو روژه د رمضان روا ده پنیت کولو سره د شپې نه یعنې په شپه کې نیت وکړي چه سبا زما فرضې روژه ده نو که

لَمْ يَنْوِ حَتّٰى اَصْبَحَ اَجْزَأَتْهُ مَا بَيْنَهٗ وَبَيْنَ

چا شپه کې نیت د روژې ونه کړو تر څو چه سحار شو نو کافي دی ده له نیت د روژې په ما بین کې

الزَّوَالِ وَالضَّرْبُ الثَّانِيْ مَا يَثْبُتُ فِي الذِّمَّةِ

سپیدو او تر زوال پورې. او دوهم قسم هغه دی چه ثابت وي د ده په ذمه کې.

كَقَضَاءِ رَمَضَانَ وَالنَّذْرِ الْمُطْلَقِ وَالْكَفَّارَاتِ

لکه قضائي روژه د روژې د میاشتې یا نذر مطلق لکه چه ووائي په ما لوره یا دوې روژې نذر دی یا روژه د کفارې لکه روژې د کفارې د قسم یا روژې د قتل خطا یا روژې د کفارې ظهار. دا روژې معین وخت نه لري بلکه هر وخت ئې د نیولو وخت دی

فَلَا يَجُوْزُ صَوْمُهٗ اِلَّا بِنِيَّةٍ مِّنَ اللَّيْلِ

نو نه دی روا دغه روژې مگر په نیت سره د شپې څخه.

دلیل ئې دا دی چه روژه تعیین غواړي یا د خدای پاک د خوا څخه لکه د روژې د میاشتې روژه یا د بنده د خوا لکه نذر معین او په دغو منذکوره روژو کې نه د خدای د خوا څخه وخت معین لري او نه د بنده د خوا څخه. نو ځکه نیت د شپې غواړي چه معین شي د بنده د خوا څخه.

وَكَذٰلِكَ صَوْمُ الظِّهَارِ وَالنَّفْلُ كُلُّهٗ يَجُوْزُ

او دغسې نیت د شپې غواړي روژه د ظهار. (د ظهار بیان به د نکاح په حصه کې راشي) او نفلي روژې ټولې روا دي

بِنِيَّةٍ قَبْلَ الزَّوَالِ وَيَنْبَغِيْ لِلنَّاسِ اَنْ يَّلْتَمِسُوا الْهِلَالَ فِي

په نیت سره د مخه تر زوال. او بنا ئې خلکو له چه طلب د میاشتې د روژې دی کوي په نه ویشتمه ورځ

الْيَوْمِ التَّاسِعِ وَالْعِشْرِيْنَ مِنْ شَعْبَانَ فَاِنْ رَاَوْهُ صَامُوْا

د براتې یعنې چه شپه دیرش شمه راشي نو کې میاشت و لیده روژه به نیسي.

مسئله: که د روژې میاشت خوکنده ښکاره سوه چه ټولو خلکو یا اکثر خلکو ولیدل نو شاهدي او د قاضي حکم ته ضرورت نسته او که یو څو کسانو ولیدل بیا شاهدي او د قاضي حکم ته ضرورت سته

وَاِنْ غُمَّ عَلَيْهِمْ اَكْمَلُوْا عِدَّةَ شَعْبَانَ ثَلٰثِيْنَ

او که پټه سوه میاشت د دوی څخه یعنی چا نه ولیدل نو دیرش پوره کړي حساب د برات د میاشتې دیرش

يَوْمًا ثُمَّ صَامُوْا وَمَنْ رَاٰى هِلَالَ رَمَضَانَ وَحْدَهٗ

ورځې او بیا دې روژه ونیسي یعنی څخه هم میاشت نه وینی او که چا ولیدل میاشت د روژې یوازې هغه

صَامَ وَاِنْ لَّمْ يَقْبَلِ الْاِمَامُ شَهَادَتَهٗ وَاِذَا كَانَ

سړی به روژه نیسی که څه هم باچانه کړي قبوله شاهدي د ده - او که چیرې وي په اسمان

فِي السَّمَاءِ عِلَّةٌ قَبِلَ الْاِمَامُ شَهَادَةَ الْوَاحِدِ الْعَدْلِ

کی علت کرنه یا وریځ - قبوله دې کړي امام یا قاضي شاهدي د یوه سړي چه عادل وي (یعني گناه

رَجُلًا كَانَ اَوِ امْرَاَةً حُرًّا كَانَ اَوْ عَبْدًا

کبیره نه کوي) که دا شاهد نر وي او که ښځه - آزاد وي او که مریي وي۔[1]

وَاِنْ لَّمْ يَكُنْ بِالسَّمَاءِ عِلَّةٌ لَمْ تُقْبَلِ الشَّهَادَةُ

او که چیرې نه وي په آسمان کی علت نو نه قبلیږي شاهدي

حَتّٰى يَرَاهُ جَمْعٌ كَثِيْرٌ يَقَعُ الْعِلْمُ بِخَبَرِهِمْ

تر هغو چه وینی نه میاشت لویه جماعت چه په خبر سره د دوی علم او یقین پیدا سي۔

فائده: د لویه جماعت په اندازه کی کوم عدد نه دی راغلی په ظاهر روایت کی۔ او د امام ابو یوسف څخه نقل دی چه لویه جماعت پنځوس کسه دي۔ او بعض فقهاء وائي چه اکثر اهل محله معتبر دي۔ کذا في الهدایه۔

[1] لهٰذا چه په بخاري شریف کی راغلی دی چه آنحضرت صلی الله علیه وسلم د یوه سړي شاهدي منلې ده ١٢

او معتبر خبر ورکړي چه دغه لوی جماعت اندازه وي امام او یا قاضي ته سپاره کیږي. کذا في الجوهرة والدر المختار.

فائده! هغه ځایونه او وطنونه چه ددې باب په غاړه کې پراته وي لکه سعودي عربستان، کویت، بغداد، بعضې ښارونه دایران او نور د دغه قسم ځنې دغو وطنو هوا او آسمان بیله وریځې همیشه صاف او بې علت وي. او هغه ښارونه او ځایونه او وطنونه چه ددې باب ځنې لیري واقع وي لکه بلوچستان، افغانستان، پشاور وغیره. د دغو هوا او اسمان بیله وریځې هم کله آلوده وي. والله اعلم بالصواب.

## وَوَقْتُ الصَّوْمِ مِنْ طُلُوْعِ الْفَجْرِ الثَّانِيْ إِلٰى غُرُوْبِ الشَّمْسِ

او وخت د روژې نیولو د راختو ځنې د دوهم سپیدو یعنې صبح صادق بیا تر لویدو پورې د لمر.

فائده؟ د ریاضي په کتابونو کې وائي چه ټولې درجې د فلک چه شپه او ورځ پرې دوره کوي (۳۶۰) دی او ساعتونه د شپې او ورځې (۲۴) دی نو (۳۶۰) چه پر (۲۴) تقسیم سی (۱۵-۱۵) درجې راسیږي یعنې حصه دیوه ساعت (۱۵) درجې دی د معدل النهار ری. او دا هم دوی وائي چه کښته والی د لمر تر ځمکې په اول کې د صبح کاذب (۱۸) درجې دی. په دغو (۱۸) کې (۱۵) یو ساعت کیږي. باقي سوې دری درجې. بیا نو ساعت (۶۰) دقیقې دی (۶۰) چه پر (۱۵) وویشې (۴-۴) راسیږي. نو حصه دیوې درجې (۴) دقیقې کیږي. نو هغه (۳) درجې باقي چه پاتې هغه (۱۲) دقیقې کیږي. نو حاصل دا چه د صبح کاذب ځنې تر لمر ختو پورې یو ساعت (۱۲) دقیق دی. البته د هوا په صفائي پر شا هي کې او د خیرن والي په دوبۍ کې اختلاف یعنې معلومیدل د سپیدو فرق کوي.

## وَالصَّوْمُ هُوَ الْإِمْسَاكُ عَنِ الْأَكْلِ وَالشُّرْبِ وَالْجِمَاعِ نَهَارًا مَعَ النِّيَّةِ

او روژه ځان ساتنه ده د خوړک او چښلو او د جماع ځنې د ورځې سره د نیته. یعنې قصد د زړه.

فائده! نیت ددې سببه غواړي چه عبادت او عادت سره جلا سی.

## فَإِنْ أَكَلَ الصَّائِمُ أَوْ شَرِبَ أَوْ جَامَعَ نَاسِيًا لَمْ يُفْطِرْ

او که خوړک وکړي روژه تی یا ئې چښک وکړي یا ئې وطي وکړي په هیره چه روژه ئې په یاد نه وه روژه ئې نه ماتیږي.

فائده! حضرت امام مالک وائي چه روژه ئې ماته ده بیا بې قضا راوړي. نو هغه دلیل داوئي چه په مشکوة شریف کې راغلي دي چه یو سړي چه روژه ئې په هیره خوړلي وه

و آنحضرت صلی الله علیه و سلم ته راغلی او د خپلې د غلې روژې پوښتنه ئې وکړه رسول الله صلعم د اسې ورته وویله، یتمّ علیٰ صومک فانّما اطعمک الله و سقاک "
ترجمه: تمامه کړه خپله روژه او تا ته ډوډۍ درکړه خدای پاک او اوبه درکړې خدای پاک.

## فَإِنْ نَامَ فَاحْتَلَمَ أَوْ نَظَرَ إِلَى امْرَأَةٍ فَأَنْزَلَ أَوِ ادَّهَنَ

او که روژتي بیده سو او شیطان بازي ورکړه او یائې وکتل و ښځې ته او انزال سو او یائې سرغوړ کړی یا ږیره

## أَوِ احْتَجَمَ أَوِ اكْتَحَلَ أَوْ قَبَّلَ لَمْ يُفْطِرْ

او یائې وینه وکښله او یائې سترګې تورې کړې او یائې چه واخسته په دې ټولو صورتو کې روژه ئې نه ماتیږي

## فَإِنْ أَنْزَلَ بِقُبْلَةٍ أَوْ لَمْسٍ فَعَلَيْهِ الْقَضَاءُ وَلَا كَفَّارَةَ عَلَيْهِ

او که انزال سو چې په اخستو سره یا په مس کولو سره نو پر ده قضا سته او کفاره نسته پر ده.

دلیل دا دی. قضا په دې سبب سته چه معنیٰ د جماع چه انزال دی پیدا سوه او کفاره په دې سبب نسته چه صورت د جماع ونه دی پیدا سوی.

## وَلَا بَأْسَ بِالْقُبْلَةِ إِذَا أَمِنَ نَفْسَهُ وَيُكْرَهُ

او پروا نسته په چه اخستو کې په ځان باور وي چه جماع نه راځي کېنږي او انزال هم نه راځي کېنږي او مکروه

## إِنْ لَمْ يَأْمَنْ وَإِنْ ذَرَعَهُ الْقَيْءُ لَمْ يُفْطِرْ

د چه اختلال کې باور نه وو. او که روژه اتي مجبور کړي قي (یعنی بې اختیاره ورغی) روژه ئې نه ماتیږي.

بعضې امامان د قي والا څخه پوښتنه کوي چه قي په ډکه خوله وو او که په تشه خوله؟ دا پوښتنه غلط ده ولې ډکه خوله او تشه خوله په روژه کې فرق نه لري البته په اوداسه کې فرق لري.

## وَإِنِ اسْتَقَاءَ عَامِدًا مِلْءَ فِيهِ فَعَلَيْهِ الْقَضَاءُ

او که په قصد ئې وواهه په ډکه خوله نو پر هغه سړي قضاء سته.

یعنی که په تشه خوله وو نو قضا نسته. امامان د مجبورۍ د قي او د قصد د قي فرق نه کوي.

وَمَنِ ابْتَلَعَ الْحَصَاةَ أَوِ الْحَدِيْدَ أَوِ النَّوَاةَ أَفْطَرَ وَقَضَى

او که چا تیر کړه شګه یا اوسپنه یا د خرما هډوکی روژه ئې ماته سوه قضا دې راوړي کفاره پرې نشته

فائده! لکه دغه شیان چه ذکر سوه خاورې خاشه وغیره چه نه دوا وي او نه غذا حکم ئې د غسې دی.

مسئله! بعضې وخت روژه دار مریض سي او ډاکټر ورته وائي چه روژه ماته کړه او مریض نه پوهیږي چه ډاکټر صحیح وائي یا نه او حاذق دی او که نه او ماته د روژې خوړل روا دي که نه.

نو دغه تر دوا دې روژه پر دغو شیانو لکه خاورې وغیره ماته کړي او بیا دې دوا وخوري.

وَمَنْ جَامَعَ عَامِدًا فِي أَحَدِ السَّبِيْلَيْنِ أَوْ أَكَلَ

او که چا جماع وکړه په قصد په یوه کې د دوو لارو یعنې د مخ یا د شا د خوا او یا ئې خوراک وکړ

أَوْ شَرِبَ مَا يَتَغَذَّى بِهِ أَوْ يَتَدَاوَى بِهِ فَعَلَيْهِ

او یا ئې څښاک وکړ د هغه شي چه غذا د بدن وي یا په هغه شي چه دوا کیږي نو په هغه سړي باندې

الْقَضَاءُ وَالْكَفَّارَةُ مِثْلُ كَفَّارَةِ الظِّهَارِ

قضا او کفاره دواړه شته. او کفاره د روژې په مثل د کفارې د ظهار ده.

یعنې اول که مریی وي هغه به آزاد وي او که هغه نه وي نو به دوې میاشتې پرله پسې روژه نیسي او که هغه هم د وسه نه وي پوره نو به شپیتو مسکینانو ته غرمه او ماښام میانه خوراک ورکوي.

وَمَنْ جَامَعَ فِيْمَا دُوْنَ الْفَرْجِ فَأَنْزَلَ فَعَلَيْهِ الْقَضَاءُ

او که چا جماع وکړه په ماسوا کې د فرج (شا او مخ) یعنې په ورانه یا خیټه کې او انزال ئې وسو نو په هغه قضا د هغې روژې شته

وَلَا كَفَّارَةَ عَلَيْهِ وَلَيْسَ فِي إِفْسَادِ الصَّوْمِ فِي

او کفاره نشته پر ده او نشته په فاسدولو کې یعنې خوړلو کې د روژې په غیر کې

غَيْرِ رَمَضَانَ كَفَّارَةٌ وَمَنِ احْتَقَنَ أَوِ اسْتَعَطَ

د میاشتې د روژې کفاره (که نفلي وي که قضائي وي او که نذر وي) که روژه ماتي د ستون یعنې اماله وکړي یا په پزه

## أَوْ اِقْطَرَ فِيْ اُذُنِهٖ اَوْ دَاوٰى جَائِفَةً اَوْ اٰمَّةً

کی دوا واچوی او یا ئې دوا څاڅکی کړه په غوږ کې یا ئې دوا واچول په ټپ کې چه ونس ته رسیدلی وو یا ئې په ټپ کې دوا واچول چه اُم الدماغ یعنې د مغز و پردې ته رسیدلی وو.

## بِدَوَاءٍ رَطْبٍ فَوَصَلَ اِلٰى جَوْفِهٖ اَوْ دِمَاغِهٖ

په لنده دوا سره نو ورسیدل هغه دوا ونس ته د دهٔ او یا دماغ ته د دهٔ

## اَفْطَرَ وَاِنْ اَقْطَرَ فِيْ اِحْلِيْلِهٖ لَمْ يُفْطِرْ عِنْدَ

روژه ئې ماته سوه او که څڅول دوا په ذکر کی روژه ئې نه ده ماته په نزد د

## اَبِيْ حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ وَقَالَ اَبُوْ يُوْسُفَ يُفْطِرُ

د امام اعظمؒ او امام محمدؒ او ویلی دی امام ابو یوسفؒ روژه ئې ماته ده

فائده! د اختلاف ځله دی چه دوا و مثانې یعنې سپوختې ته ورسیږی. او که په ذکر کې پاته وی نو په اتفاق ئې روژه نه ده ماته. او سبب د اختلاف دا دی چه امام اعظمؒ او امام محمدؒ وائی چه د مثانې او نس ترمابین سوری نشته او امام ابو یوسفؒ وائی چه شته. کوکب دری ص۵۵

مسئله! په دې زمانه کې پیچکاری چه هم لنده دوا ده کې په روژه کې و لګوی روژه به ماتیږی او که نه؟ تفصیل دا دی! چه د سرې په لنی کې درد وی یا په دماغ کې درد وی او پیچکاری په لاس کې یا په ورانه کې ور و لګوی هغه درد دې بند سی. او یا ئې په رګ کې ور ولګوی هغه درد بند سی. نو پوښتنه دا ده چه آیا مخصوصًا دغه لنده دوا هغه ځائی ته رسیږی او که دلې پاتیږی تاثیر ئې و هغه درد مند ځائی ته رسیږی.

ما چه د ډاکټرانو څخه معلومات کړی دی هغه وائی چه دوا هم دلته پاتیږی او تاثیر ئې هلته رسیږی. او ظاهره هم داغسې معلومیږی ولې چه د لاس او کناټې او د معدې او د دماغ ترمابین ډیر فواصل موجود دی نو دا یو څاڅکی دوا به هلته چیرې ورسیږی. نو روژه نه ماتیږی. البته سیرُم چه ډیره لنده دوا ده هغه معدې ته رسیږی نو روژه به ماتیږی او د رګ ستن هم چه لنډ وا ده غالب دا ده چه معدې او دماغ ته نه رسیږی. وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِالصَّوَابِ.

یو سوال! چه د سترګی، پزې او د حلق ترمابین سوری شته نو که د پزې یا د سترګی په لنده دوا روژه ماتیږی

وَمَنْ ذَاقَ شَيْئًا بِفَمِهٖ لَمْ يُفْطِرْ وَيُكْرَهُ لَهٗ ذَالِكَ وَيُكْرَهُ

او که چا و څکله په خوله او په ژبه د یو شي خوند نو روژه یې نه ماتیږي لکن مکروه دي ده لره دا کار او مکروه

لِلْمَرْأَةِ اَنْ تَمْضَغَ لِصَبِيِّهَا الطَّعَامَ اِذَا كَانَ لَهَا مِنْهُ بُدٌّ

دي ښځې لره چه ژوولو کوچني ته خپل د وړې ډوډۍ وغیره که چیرې وي دې لره چاره د دغه ژوولو څخه

لکه چه ډوډۍ کلکه وي او کوچني یې په خپله نه شي ژوولای نو چاره نشته روا دي.

او که چیرې هغه طعام ژوولو ته حاجت نه درلودې لکه شوله پیرینی یا بل کوچني موجود وو چه هغه وي ژوولای سوای یا یوه بله حائضه ښځه په کور کې وه چه هغې وي ژوولو نو چاره ستره روژاتي دي نو وي ژوي

وَمَضْغُ الْعِلْكِ لَا يُفْطِرُ الصَّائِمَ وَيُكْرَهُ

او ژوول د ژاولو روژه نه ماتوي لکن ژوول یې مکروه دي.

مسئله! دا حکم د هغه ژاولو دي چه سپینی او سره تینګی وي او اجزاء یې نه جلا کیږي او که توره ژاولې وي او د څخه چاوده شي ژوولي په هغه روژه ماتیږي ولې چه هغه ژاولې په اول وار ژوولو سره جلا کیږي او لښی ته رسیږي. کذا في الجوهره والعيني والهدايه.

مسئله! دا حکم د پخوانی ژاولو دی. او د اوس زمانې په ژاولو حتما روژه ماتیږي ولې چه د هغو اجزاء په اول وار حتماً لښی ته رسیږي.

وَمَنْ كَانَ مَرِيضًا فِي رَمَضَانَ فَخَافَ اِنْ صَامَ

او که څوک مریض وو د روژې په میاشت کې او بیریدې که نیوه روژه و نیسي نو مرض

اِزْدَادَ مَرَضُهٗ اَفْطَرَ وَقَضٰى وَاِنْ كَانَ مُسَافِرًا

یې زیاتیږي. روژه دې وخوري او بیا دې قضا راوړي او که چیرې یو سړی مسافر وو

لَا يَسْتَضِرُّ بِالصَّوْمِ فَصَوْمُهٗ اَفْضَلُ وَاِنْ اَفْطَرَ

او روژه یې ضرر نه ورسوي نو روژه نیول یې افضل دي او که سړه د هغه ده روژه وخوړه

وَقَضَى جَازَ وَإِنْ مَاتَ الْمَرِيضُ أَوِ الْمُسَافِرُ وَهُمَا

او بیا ئې قضا را اوګرځوله روا ده. او که چیرې مړ شو مریض یا مسافر او دوی پر خپل حال وه یعنی په مرض او

عَلَى حَالِهِمَا لَمْ يَلْزَمْهُمَا الْقَضَاءُ وَإِنْ صَحَّ الْمَرِيضُ أَوْ أَقَامَ

سفر کې وه پر دوی نه لازمیږي قضا، یعنی فدیه نشته پاندې او که چیرې کا جوړ شو مریض او یا مقیم

الْمُسَافِرُ ثُمَّ مَاتَا لَزِمَهُمَا الْقَضَاءُ بِقَدْرِ الصِّحَّةِ وَالْإِقَامَةِ

شو مسافر بیس مړه شوه پر دوی لازم ده قضا د روژو په اندازه د ورځو د صحت او اقامت.

سوال! دوی خو مړه شوه نو د قضا د لازمیدو څه فائده ده؟ جواب! فائده ئې دا ده چه وصیت د فدیې به کوي.

وَقَضَاءُ رَمَضَانَ إِنْ شَاءَ فَرَّقَهُ وَإِنْ شَاءَ تَابَعَهُ

او په قضا کې د روژو د رمضان خوښه ده که جلا جلا نیسي او که ئې پرله پسې نیسي.

ولې چه آیة شریف مطلق راغلی دی هغه دا، فَعِدَّةٌ مِّنْ أَيَّامٍ أُخَرَ، لکن تتابع ئې مستحب ده. کوکب دری ص١٩

وَإِنْ أَخَّرَهُ حَتَّى دَخَلَ رَمَضَانُ آخَرُ صَامَ

او که ئې وځنډوله قضا د روژو تر څو چه داخل شوه بله د روژو میاشت نو روژه دې ونیسي

رَمَضَانَ الثَّانِيَ وَقَضَى الْأَوَّلَ بَعْدَهُ وَلَا فِدْيَةَ

د دوهمې میاشتې او قضا دې د اولې میاشتې وروسته راوړي او فدیه نشته پاندې

عَلَيْهِ وَالْحَامِلُ وَالْمُرْضِعُ إِذَا خَافَتَا عَلَى وَلَدَيْهِمَا

او امیدواره ښځه یا شیدې ورکوونکې ښځه که بیریدلې پر کوچنیانو د دوی (یعنی که روژه ونیسي حامله د نس

أَفْطَرَتَا وَقَضَتَا وَلَا فِدْيَةَ عَلَيْهِمَا

پر کوچني او مرضعه د تې پر کوچني بیریدله) نو دوی دې روژې وخوري او بیا دې قضا راوړي او فدیه نشته پر دوی

ولې چه دا خوړل د روژې د عذر له کبله دي.

## وَالشَّيْخُ الْفَانِي الَّذِي لَا يَقْدِرُ عَلَى الصِّيَامِ

او شیخ فاني کمزوري که بنځه وي هغه چه قدرت نه لري پر روژه نیولو باندي (یعني د جهته د عمر د زیاتوالي)

## يُفْطِرُ وَيُطْعِمُ لِكُلِّ مِسْكِينٍ لِيَوْمٍ وَاحِدٍ كَمَا يُطْعِمُ فِي الْكَفَّارَاتِ

نو هغه دي روژه وخوري او فدیه د طعام دي ورکړي و هر مسکین ته د یوې ورځي د پاره هغه قدر لکه په نورو کفاراتو کي چه ئې ورکوي. یعني نیمه کاسه چه دوه کیلو غنم یا یوه کاسه اوربشي یا جوار یا خرما.

فائده! د شیخ فاني د پاره بعضي فقهاء (۵۰) کاله مقرر وي او بعضي (۷۰) کاله. لکن ظاهر روایت دادي چه تعین د کلونو نشته ولي چه بدنونه د خلکو مختلف دي. بعضي کسان پر (۶۰) کاله د روژي نیولو طاقت نه لري او بعضي کسان د نسلو کالو وي لکن ډیر تکړه او پیر روژه کوونکي تادروي

واقعه! زما په مقتدیانو کي یو حاجي صاحب وو چه د یو نسل و شلو کلو وو او زامن ئې سپین ږیري وو او سرمایه دار هم وو نو دغه حاجي صاحب به روژه داسي نیوله چه سحار لمونځ به ئې په مسجد کي ادا کړې نو به پروت وو لکه بیهوښه تر ماپښین پورې. ماپښین به طالبانو راویښ کړې. لمونځ چه به ئې وکړې بیا به تر ماښام دیګر پورې پروت وو. مطلب دا چه په دغه ډول ده روژې نیولې. نو ما به ورته وویل چه صاحبه تا ته شرعاً روژې خوړل روا دي. حاجي به جواب راکړې چه زه څنګه روژه وخورم لمرخاته او قبله سره پیژنم. مطلب دا چه هغه حاجي صاحب تر آخره د عمر روژه نه وخوړله.

نو د شیخ فاني مسئله په پښتنو کي یو منسوخ حکم ګرځیدلی دی. او عمومي خلک که څوک د شیخ فاني توب له کبله روژه وخوري بد یې وائي. زما یخیلسن (۷۸) کاله دي او روژه نیول ډیر تکلیف راکوي خو بیا هم د شیخ فاني په حکم عمل نه سم کولای. او دا ټول د دې سبب چه په کتابو کي د فقهي شریفي اکثر دغه لفظ راغلی دی "الذی لا یقدر" نو هر سړی وائي چه زه قدرت لرم که څه تکلیف وي هم. او د تفاسیرو په کتابو کي داسي راغلي دي په بیان کي د شیخ فاني "هو الذی یجهده الصوم" شیخ فاني هغه دی چه په سبب د ډیر عمر زحمت ورکوي روژه نیول. دا تفسیر ډیر ښایادی. وَاللّٰهُ اَعْلَمُ.

## وَمَنْ مَاتَ وَعَلَيْهِ رَمَضَانُ فَأَوْصَى بِهِ أَطْعَمَ عَنْهُ

او که څوک مړ سو او پر ده باندي قضائي روژې وي او وصیت ئې وکړې فدیه به ورکوي د هغه څخه

## وَلِيُّهُ لِكُلِّ يَوْمٍ مِسْكِينًا نِصْفَ صَاعٍ مِنْ

قریب دده. د هرې ورځې دپاره ومسکین ته نیمه کاسه غنم

## بُرٍّ اَوْ صَاعًا مِنْ تَمْرٍ اَوْ صَاعًا مِنْ شَعِيْرٍ

یا یوه کاسه خرما . او یا یوه کاسه اوربشې.

مسئله! که مړي وصیت نه وو کړی او قریب ئې په روژه ورخبر وو. یا ئې وصیت وکړی لکن مړي هیڅ مال نه دې لودې. په دې دواړو صورتو کې قریب ئې تبرعًا د مړه د مال په اول صورت کې یا د خپل مال څخه په دوهم صورت کې فدیه ورکړه. امید سته چه خدای پاک د هغه مړي ذمه د هغو روژو څخه خلاصه کړي. رد محتار وغیره.

## وَمَنْ دَخَلَ فِيْ صَوْمِ التَّطَوُّعِ ثُمَّ اَفْسَدَهُ قَضَاهُ

او که څوک داخل سو په نفلي روژه کې، یعنې درنګ ئې وکړی پس له نیت او یو کړنې بې تیر سو، بیا ئې هغه روژه فاسده سوه، یعنې ماته ئې کړه، قضائي راوړي. ولې چه نفل په شروع سره پر سړي لازمیږي

مسئله! ماتول د روژې که د روژه اتې په صنع او فعل نه وه لکه ښځه چه نفلي روژه ئې نیولې وي او بیا حیض ورسی قضا خو پې راوړي مګر ګناه نسته. او که ماتول د ده په صنع او قصد وه لکه چه ناجوړه سي، او یا بل عذر وي لکه ضیافت یعنې میلمستیا. په جوهره او ذخیره او عنایه کې داسې راغلي دي چه میلمستیا د غرمې تر زوال عذر دی او پس له زواله عذر نه دی. نو د عذر په صورت کې قضا خو سته او ګناه نسته. او که بې عذره ماته کړه هم قضا سته هم ګناه لکن کفاره نسته.

## وَاِذَا بَلَغَ الصَّبِيُّ اَوْ اَسْلَمَ الْكَافِرُ فِيْ يَوْمِ

او که چیرې مړانی ته ورسیدی کوچنی او یا مسلمان سو کافر د روژې په ورځ کې

## رَمَضَانَ اَمْسَكَا بَقِيَّةَ يَوْمِهِمَا وَصَامَا بَعْدَهُ وَلَمْ

پوره دې کړي هغه پاتې ورځ په روژه سره او وروسته ورځې دې روژه ونیسي او د تیرو ورځو قضا نسته

## يَقْضِيَا مَا مَضٰى وَمَنْ اُغْمِيَ عَلَيْهِ فِيْ رَمَضَانَ

(ولې په هغو ورځو کې دوی اهل تکلیف نه وه) او که بې هوښیا راغلی پر روژه اتی د روژې په میاشت کې.

(یعنی د ورځې چه ئې روژه نیولې وه)

## لَمْ يَقْضِ الْيَوْمَ الَّذِىْ حَدَثَ فِيْهِ الْاِغْمَاءُ وَقَضَى مَا بَعْدَهٗ

نو قضا دې نه راوړي د هغه ورځې چه د کوم دا بیهوښي پیښه شوې ده او د هغه وروسته ورځو قضا به راوړي
ولې چه د اولې ورځې د روژې نیت ده کړی وو او امساک ئې هم کړی وو. نو که چیرې دا اغماء
ټولو ورځو ته ورسیده د هغه نو د ورځو قضا به راوړي ولې چه په هغو ورځو کښې دې نیت د روژې نه دی کړی

## وَاِذَا اَفَاقَ الْمَجْنُوْنُ فِىْ بَعْضِ رَمَضَانَ قَضَى مَا مَضَى وَصَامَ

او که چیرې په سد کښې راغلې لیونې په بعضې ورځو کښې د رمضان د میاشتې نو دې به قضا راوړي د تیرو ورځو او

## مَا بَقِىَ وَاِذَا حَاضَتِ الْمَرْاَةُ اَوْ نَفِسَتْ اَفْطَرَتْ وَقَضَتْ اِذَا طَهُرَتْ

پاتې ورځې به روژه نیسي. او که حائضه شوه ښځه یا نفاسه شوه (د روژې په ورځ) هغه روژه دې ماته کړي او بیا دې قضا راوړي چه پاکه شي
مسئله: که ښځې له حیض ورشي یا نفاس ورته ټوټه کښې په خوله وي که څه هم ماښام دیکروي روژه ئې ماته شوه.

## وَاِذَا قَدِمَ الْمُسَافِرُ اَوْ طَهُرَتِ الْحَائِضُ فِىْ بَعْضِ النَّهَارِ

او که کور ته را ورسیدې مسافر او یا پاکه شوه حائضه ښځه په بعضې کښې د ورځې

## اَمْسَكَا عَنِ الطَّعَامِ وَالشَّرَابِ بَقِيَّةَ يَوْمِهِمَا وَمَنْ تَسَحَّرَ

نو دوی دې امساک کوي د خوراک او د څښلو څخه هغه پاتې ورځې د دوی. او چا پیشلمې وکړې

## وَهُوَ يَظُنُّ اَنَّ الْفَجْرَ لَمْ يَطْلُعْ اَوْ اَفْطَرَ وَهُوَ يَرَى

او ده گمان داوو چه تر اوسه سپیدې نه دی راختلې. یا ئې روژه ماته کړه او ده دا رایه داوه

## اَنَّ الشَّمْسَ قَدْ غَرَبَتْ ثُمَّ تَبَيَّنَ اَنَّ الْفَجْرَ قَدْ كَانَ

چه لمر لویدلی دی. او وروسته ورته معلومه شوه چه سپیدې راختلی وې (ماد پیشلمې په وخت کښې)

## طَلَعَ اَوْ اَنَّ الشَّمْسَ لَمْ تَغْرُبْ قَضَى ذٰلِكَ

یا دا چه لمر نه وو لویدلی (ماښام روژه ماتې په وخت کښې) قضا دې راوړي د هغې ورځې د روژې

الْيَوْمَ وَلَا كَفَّارَةَ عَلَيْهِ وَمَنْ رَأَى هِلَالَ الْفِطْرِ

او كفاره نشته پر ده باندې ولې چې ده روژه ماته کړې په قصد نه ده خوړلې بلکه خطا وتلی او خطا عفوه ده او که چا ولیده میاشت

وَحْدَهُ لَمْ يُفْطِرْ وَإِذَا كَانَتْ بِالسَّمَاءِ عِلَّةٌ لَمْ يُقْبَلْ

د اختر یوازې دی به د ابله ورځ روژه نه خوري او که چیرې په اسمان کې علت وو (اګر څه یا وریځ) نو نه دی قبلوی

الْإِمَامُ فِي هِلَالِ الْفِطْرِ إِلَّا شَهَادَةَ رَجُلَيْنِ أَوْ رَجُلٍ وَ

امام شاهدي په میاشت کې د اختر مګر شاهدي د دوو سړو او یا د یو سړي او دوو ښځو

امْرَأَتَيْنِ وَإِنْ لَمْ يَكُنْ بِالسَّمَاءِ عِلَّةٌ لَمْ يُقْبَلْ إِلَّا شَهَادَةُ جَمَاعَةٍ

او که نه وو په اسمان کې علت نو نه دی قبلوی امام مګر شاهدي د یوې داسې ډلې چې یقین پیدا شي په اخبار د هغو

**مسئله:** په یو اسلامي حکومت د خوا چې په هغه حکومت کې شرعي قاضیان موجود وي ټیلیفون راغي چې قاضي ته شاهدان تیر شوي چې موږ د اختر میاشت ولیدله او قاضي د هغو شاهدي قبوله کړه. نو په دې صورت کې اګر چې ټیلیفون کوونکی یو سړی دی یا عادل یا فاسق باید څوک عمل نه په وکړي. لکن چونکه د حکومت د خوا سخت بندیز دی د دا دې لوی خبرې د اشاعت په ډول واغو. نو په دې سبب د ټیلیفون حکم د لوی جماعت لري چې اخبار ئې وکړي په قضا د هغه بل ملک د قاضي نو عمل دی په وشي: وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِالصَّوَابِ وَاِلَيْهِ الْمَرْجِعُ وَالْمَآبُ

# بَابُ الْاِعْتِكَافِ

باب دی په بیان کې د اعتکاف

الْاِعْتِكَافُ مُسْتَحَبٌّ وَهُوَ اللُّبْثُ فِي الْمَسْجِدِ

اعتکاف کول ښه کار دی او اعتکاف دی تګ کول دی په مسجد کې (هغه مسجد چې پنځه وخته د جماعت لمونځ پکښې کیږي)

**مسئله!** جامع مسجد شرط نه دی او د عیدګاه په مسجد کی اعتکاف نه دی روا۔

**فوائد!** مالکیان وائی چه اعتکاف نفس روا دی۔ او په مبسوط کی وائی چه قربت مقصوده دی یعنی د ثواب کار دی مقصود۔ او شیخ د قدوری مستحب وګڼړی۔ او په هدایه کی وائی چه اعتکاف سنت مؤکده دی۔ *واختاره فی المحیط والبدائع۔ والتحفة وهو الصحیح*۔ او علامه بدرالدین عینی رح وائی چه اعتکاف دری قسمه دی۔ یو دا چه سړی د خپو ورځو اعتکاف پرځان نذر کړی دا اعتکاف واجب دی۔ او بل اعتکاف دی د لسو اخیرو شپو د روژی د میاشتی دا اعتکاف سنت مؤکد دی۔ او بل دا اعتکاف دی چه په نورو ورځو کی لږ یا ډیری ورځی څوک اعتکاف وکړی هغه مستحب دی۔

**مسئله:** اعتکاف سنت عینی دی۔ یعنی هر سړی ته هر کال د روژی په لس اخیرو شپو کی سنت دی چه اعتکاف وکړی۔ یا سنت مؤکد کفائی دی۔ یعنی پر اهل د هری محلی یا قریه یا ښار سنت دی۔ نو که یو یا دوو کسانو د محلي یا ښار یا قریي اعتکاف ادا کړی د ټولو غاړی خلاصی سوې۔ او که هیچا اعتکاف ونه کړی د ټولو غاړی بندی دی۔ اول مذهب ډیر حرج دی چه ټولو مسلمانانو ته تاجره ته دکاندارو ته مزدورکاره وغیره ته د روژی په اخرو شپو کی په اعتکاف کی وی۔ نو ځکه فتوی پر دی ده چه اعتکاف سنت کفائی مؤکد دی۔ په ټولو اخرو شپو کی د روژی د میاشتی۔ او هم پر دې مذهب عمل جاری دی په اسلامی نړۍ کی لکن بیا هم اعتکاف ډیر د ثواب کار دی۔ او د انحضرت صلی الله علیه وسلم چه مدینی منوری ته تشریف راوړی دی تر وخته د مرګ ئی اعتکاف نه دی پری ایښی۔ نو هر سړی که عامی او که خاص کم از کم په خپل ټوله عمر کی دا سنت نبوی م بایه پر ځائ کړی۔ او صورت د اعتکاف دا دی چه سړی د شلم په ورځ د ماښام د سیکی ته لمر لوید و د مخه دی په مسجد کی په نیت د اعتکاف ته اختر پوری کښینی۔ او تعین د ورځو دی نه کوی، ولی چه اختر نه دی معلوم۔ او بیا دی ته ښکاره کیدو پوری د میاشتی د اختر په مسجد کی پاته وی۔

## مَعَ الصَّوْمِ وَنِيَّةِ الْاِعْتِكَافِ وَيَحْرُمُ عَلَى الْمُعْتَكِفِ

سره د روژې او نیت د اعتکاف۔ او حرام دی پر معتکف باندې

## الْوَطْیُ وَاللَّمْسُ وَالْقُبْلَةُ وَاِنْ اَنْزَلَ بِقُبْلَةٍ اَوْ لَمْسٍ

وطی کول او مس کول او مچه اخستل یعنی په شهوت سره او که انزال سو معتکف ته په مچه اخستلو سره یا په مس

## فَسَدَ اِعْتِكَافُهٗ وَعَلَيْهِ الْقَضَاءُ وَلَا يَخْرُجُ الْمُعْتَكِفُ

کولو سره نو اعتکاف ئې فاسد سو او پر ده ئې قضا راوړل لازم دی۔ او نه به وزي معتکف د مسجد څخه

## مِنَ الْمَسْجِدِ اِلَّا لِحَاجَةِ الْاِنْسَانِ اَوْ لِلْجُمُعَةِ

مگر د پاره د حاجت انسانی (یعنی بولی غائط د او داسې وغسل د پاره) او یا د جمعې د لمانځه د پاره۔

مسئله! معتکف دی په نزدې جامع مسجد کې لمونځ کوي لیرې جامع مسجد ته به نه ځي۔

مسئله! معتکف به د اسې وخت د خپله مسجده ر وانیږي چه په جامع مسجد کې د وه ر کعته تحیة المسجد او څلور رکعته سنت او بیا دوې خطبې واوري او د جمعې لمونځ وکړي۔ او شپږ رکعته وروسته سنت ادا کړي۔ او که تردې ډیر وخت ئې جامع مسجد کې تیر کړي اعتکاف خوئې نه فاسدیږي ولې چه جامع مسجد هم د اعتکاف ځای دی۔ لکن ښه دا ده چې ډیر ور نک دی نه کوي۔ هدایه جلد اول ص۲۱۲۔

## وَالْاَكْلُ وَالشُّرْبُ وَالنَّوْمُ يَكُوْنُ فِيْ مُعْتَكِفِهٖ

او خوړک او چیښنک او خوب بې د اعتکاف په ځای یعنی مسجد کې وی

## وَلَا بَأْسَ اَنْ يَّبِيْعَ اَوْ يَبْتَاعَ فِي الْمَسْجِدِ مِنْ غَيْرِ

او پروا نلري چه معتکف یو شی خرڅوي یا ئې راخلي په مسجد کې بیله دې چه هغه شی د خرڅولو یا

## اَنْ يُّحْضِرَ السِّلْعَةَ وَلَا يَتَكَلَّمُ اِلَّا بِخَيْرٍ وَيُكْرَهُ لَهُ الصَّمْتُ

راپیولو په مسجد ته راوړي (نفس بیع او شراء ته ضرورت سته) او خبرې به نه کوي معتکف مگر په خیر سره (الکه ذکر

تبیه نصیحت دیوچا احوال پرسی او ښه ری دخیرخبری، او مکروه دی معتکف لره پټه خوله کیناستل۔
چه د هیڅ چاسره هیڅ نه وائی نه و هیچا ته جواب ورکوی ۔ داسی اعتکاف په نورو امتونو کی وو مګر
زموږ په شریعت کی منسوخ دی ۔ او که د غیبت بهتان مسخری څخه پټه خوله وی هغه لوئی
عبادت دی ۔ کوکب دری ص۲۶۰ ۔

د اوسنی زمانی د طالبانو اعتکاف ! په معتکف د ورځی یا د شپی نور انتهائی
راټول سی نو خندا وی او مسخری د دری واغو قصی غیبتونه سره کوی ۔ ولی چه معتکف دینه
دی ۔ دا ټول ناروا کارونه دی ۔

فَلَوْجَامَعَ الْمُعْتَكِفُ لَيْلًا اَوْ نَهَارًا نَاسِيًا اَوْ عَامِدًا بَطَلَ اِعْتِكَافُهٗ

او که جماع وکړی معتکف د شپی یا د ورځی په هیره یا په قصد ۔ اعتکاف ئی باطل سو ۔
یعنی هیره ئی عذر نه ده لکه په روژه کی ۔ ولی چه د اعتکاف حال په یادونکی دی ۔

وَلَوْخَرَجَ مِنَ الْمَسْجِدِ سَاعَةً بِغَيْرِ عُذْرٍ فَسَدَ اِعْتِكَافُهٗ

او که چیری معتکف ووتی د مسجد څخه یو ساعت بیله عذره اعتکاف ئی فاسد سو په نز د

عِنْدَ اَبِىْ حَنِيْفَةَ وَقَالَا لَايَفْسُدُ حَتّٰى يَكُوْنَ اَكْثَرَ مِنْ نِصْفِ يَوْمٍ

د امام اعظم رح او یاران رح وائی چه اعتکاف ئی نه فاسدیږی چه تر نیمه ورځ بالاتر مسجد د باندی تیر نه کړی ۔
یاران وائی چه لږ وتل د مسجد عذر دی او ضرورت دی ۔
فائده ! د هدایه ص ۲۱۲/۱ څخه داسی معلومیږی چه ترجیح قول ته د یارانو دی ۔

وَمَنْ اَوْجَبَ عَلٰى نَفْسِهٖ اِعْتِكَافَ اَيَّامٍ

او که چا واجب کړی پر ځپل ځان (د نذر پر طریقه) اعتکاف د یو څو ورځو (شپی ئی نه کړی ذکر)

لَزِمَهٗ اِعْتِكَافُهَا بِلَيَالِيْهَا وَكَانَتْ

لازمیږی پر هغه باندی اعتکاف د هغو ورځو چه ده معلومی کړی دی سره د شپو د هغو ورځو ۔ او

مُتَتَابِعَةً وَاِنْ لَمْ يَشْتَرِطِ التَّتَابُعَ

دا ورځی پر له پسی که څه هم د غه سړی تتابع نه وی شرط کړی ۔

مسئله! د واجب اعتکاف (یعنی چه په صریحو الفاظو ئې پرځان نذر کړې وي) حکم دا دی که معتکف یو ساعت د مخه تر نذر ی وخت اعتکاف فاسد کړی بیرته به د سره هغه اعتکاف را ګرځوي. او د اعتکاف نفلي یا سنت هره ورځ بلکه هر ساعت اعتکاف شرعي دی. نو که هغه په ما بین کې فاسد کړي اعتکاف ئې پای ته ورسیدی. د هیڅ شي قضاء نشته. ولې چه سخه د د مخه ورځو اعتکاف پوره سوا به وه. ستا ورځو ئې شروع نه ده کړې.

سوال! دې معتکف څو د لسو ورځو مثلاً نیت کړی وي او س ئې پنځه ورځې اعتکاف وکړی نو باید د سره ئې را وګرځوي یا د پنځو ورځو نو اعتکاف وکړي؟

جواب! نفل په نفس نیت نه واجبیږي او نه نذر کیږي لکه یو سړی چه د څلور رکعتو نفلو نیت وکړې او په دوه رکعته سلام وګرځوي هیڅ شی نشته بانندی.

سوال! یوه سړی د دوه رکعتو نفلو نیت وکړې او بیائې تر پوره کولو د مخه فاسد کړې په هغه د دوه رکعتو قضاء لازمه ده نو باید په اعتکاف کې هم داغسې وائي؟

جواب! تر دوه رکعته کم لمونځ نه بلل کیږي شرعاً. او دې سړي د لمانځه نیت نه پوره نو ځکه به د دوه رکعته پوره کوي کړی نه کړه پوره قضاء به را وړي او د اعتکاف هر ساعت اعتکاف دی شرعاً. کذا قال عارف بالله مولانا فقیر الله فی کتابه المعروف.

مسئله! د معتکف دا خیال دی چه د باندی تر مسجد به نه وځي ته سلام اچوی او نه به چا د سلام جواب ورکوي. خو دا خیال غلط دی هم به سلام وچاته وائي او هم به د بل چا د سلام جواب ورکوي.

مسئله! د معتکف دا ګمان دی چه د باندی تر مسجد کې یوه خبره د چا سره وکړه یا د یو چې خبری جواب ئې چاته ورکړی اعتکاف ئې فاسد سو. او دا هم غلط ګمان دی مثلاً معتکف بولنی د مسجد څخه وتلی و او په تګ کې یوه سړی پوښتنه ځنې وکړه جواب دی ورکړي مګر ورسره دی نه دریږي نه. والله أعلم بالصواب.

---

که ئې زده کیږي دا دوه بیته دی په اعتکاف کې دې وائي

الٰهی عَبْدُكَ الْعَاصِی أَتَاكَا ... مقرًا بِالذُّنُوبِ وَقَدْ دَعَاكَا

فان ترحم فانتَ لذاك اهلٌ ... وَاِنْ تطرد فمَنْ يَرْحمِ سِوَاكَا

# کتاب الحج

کتاب ثابت دی په بیان د حج کی - یعنی د حج احکام او افعال وغیره

**المعذرة!** درویش محمد عُبَیدُالله الایوبي القندهاري السلیمانخیلي الحنفي النقشبندي وائي چه حج چونکه د لویو ارکانو څخه د دین د اسلام دی. او ډیری مسائلی لری چه قدوری قدرمایي کنې د هغو څخه راوړی دی. او حج په ټوله عمر کی غالبًا یو وار وړی ترمیسر کیږی. او د حج احکام د څخه هم حاجي صاحب ترنه وی معلوم خصوصًا اغلب حاجیان چه عوام دی نو لازم دی کبله باید د دی کتاب الحج ډیر تفصیل تره وکړم. لکن ما چه فکر وکړی چه د اکتاب خو حاجیان په غوږ کی نه سی وړ سره وړای. اول دا چه مُلایانو صاحبانو په هره ژبه عربي، اردو، فارسي وغیره مناسک جوړ کړي او تصنیف کړي دي چه د هغو مناسکو حمل و نقل هم و حاجیانو ته آسانه وی. نو د دې دوو سببو په بنا، ما صرف د قدوری په ترجمه باندی اکتفاء وکړه. او د نورو ډیرو مسائلو څخه می صرف نظر وکړی. او په مناسکو د علماؤ می تکیه وکړه.

## اَلْحَجُّ وَاجِبٌ عَلَى الْاَحْرَارِ الْمُسْلِمِيْنَ الْبَالِغِيْنَ الْعُقَلَاءِ

حج واجب دی (د واجب څخه مراد دلته فرض حکم دی) معنی اصطلاحی په آزادو کسانو. په مریانو نه دی فرض. چه مسلمانان وي. کافرانو ته حج نشته. چه مرانی وهلی وی. په کوچنیانو نه دی فرض. چه د عقل څښتنان. نو په لیونو حج نه دی فرض. چه په

## اَلْاَصِحَّاءِ اِذَا قَدَرُوْا عَلَى الزَّادِ وَالرَّاحِلَةِ

بدن جوړ وي په کوم د شل راندة باندی حج نشته. چه قادر وي په نفقه او خرڅ د لاری او د سپرلیا په شی.

**مسئله!** د هری زمانی د سپرلیا شی جلا دی. مثلا د آنحضرت صلی الله علیه وسلم او د اصحابو کرامو په یکشو زمانی کی وه وسته هوم احله اوښ اس غاتره وغیره دی. په اوسنی زمانه کی د سپرلیا شیان موټر آب کوټ او طیاره دی. نو په هغه زمانه کی قدرت دیوه د دغو شیانو غواړی. ولی چه سفرونه د اوښانو د آسانو وغیره په زمانه قطع سوه.

## فَاضِلًا مِّنَ الْمَسْكَنِ وَمَا لَابُدَّ مِنْهُ وَعَنْ نَفَقَةِ

چې بالا به وي هغه مصارف د حج تر مسکن (سرائ د استوګنې) او تر هغه شیانو چه د سړي چاره ځنې نه وي. لکه د کور کالي، سلاح، پوړونه، آس د سپرتیا، موټر وغیره) او بالا به وي تر نفقې

## عِيَالِهِ إِلٰى حِيْنِ عَوْدِهِ وَكَانَ الطَّرِيْقُ آمِنًا

د عیال د ده تر وخت د راتلو د ده د سفر څخه د حج او وي به لار په امن (یعنې په لار کې به جنګونه عمومي قطاع الطریق نه وي)

مسئله! که یو سړي چه ډیر ناجوړه وي و حج ته نه شي تلی او استاوې به نو که د هغې ناجوړه څخه پس مړ سو د فرض حج غاړي نه خلاصي سوي او که جوړ سو هغه حج به نفلي سو بل حج به کوي.

یو ګ سګ ! چه معتبر په زاد او راحله کې میانه دي.

سوال! اوس سفر د حج په موټر وکي په آب کوټ کي په طیاره کې کیږي او کله موټر چپه یا ټکر سي او آب کوټ غرق او طیاره سقوط وکړي. آیا دا کار د امن سره منافي دی او که نه؟

جواب! اعتبار په امن کې غالب الحال ته دی او په تجربه دا ثابته ده چه دغه سواري په اغلب الاحوال کې د خطره محفوظ دي. نادر ته اعتبار نسته. نو د دغه سوارۍ دا آفت د امن سره منافي نه دي. والله اعلم بالصواب.

## وَيُعْتَبَرُ فِيْ حَقِّ الْمَرْأَةِ أَنْ يَكُوْنَ لَهَا مَحْرَمٌ يَحُجُّ بِهَا أَوْ زَوْجٌ

او معتبر دي په حق کې د ښځې چه دي له به محرم چه د حج سفر وکړي به دې سره. او یا به ئې میړه وه سره وي او که دا دواړه نه وي د ده پر ښځې څخه فرض د حج ساقط دی.

مسئله! که ښځې د کور او تر مکې شریفې پوري تر درو ورځو سفر کم لار وه. د هغې ښځې دپاره محرم او میړه شرط نه دی.

مسئله! که یوې ښځې چه حج پر فرض وه بیله محرم او بیله میړه حج ته ولاړه او حج ئې وکړ د فرض غاړي ئې خلاصې سوي لکن دا سې کول مکروه دي. رد محتار.

## وَلَا يَجُوْزُ لَهَا أَنْ تَحُجَّ بِغَيْرِهِمَا إِذَا كَانَ

او نه دی روا ښځې لره چه حج ته ځي بیله محرم او بې میړه (لکه دا کار نوي د ماما، وریځ وغیره) که چیري

بَيْنَهَا وَبَيْنَ مَكَّةَ مَسِيرَةُ ثَلٰثَةِ اَيَّامٍ فَصَاعِدًا

د دوی په مابین د دې او د مکې شریفې د درې ورځو د سفر لاره یا بالا تر درې ورځو

وَالْمَوَاقِيتُ الَّتِي لَا يَجُوْزُ اَنْ يَتَجَاوَزَهَا الْاِنْسَانُ اِلَّا مُحْرِمًا

او هغه ځایونه چه نه دي روا هیڅ انسان ته چې ترهغو ځایو تیرین ی مکې ته په داسې حال کی چه محرم وی

یعنی یا په حج یا په عمره - که څه هم د تجارت دپاره د مکې شریفې بنا ته ځی - هغه ځایونه دا دی -

لِاَهْلِ الْمَدِيْنَةِ ذُوالْحُلَيْفَةِ

د مدینې منورې د خلکو دپاره ذوالحلیفه ده چه د مدینې منورې څخه تش هغه ځایه شپږ یا اووه میله مسافت دی

وَلِاَهْلِ الْعِرَاقِ ذَاتُ عِرْقٍ

او د عراق د خلکو دپاره ذات عرق دی چه هغه دیو کوچنی غره نوم دی - او هم پر دغه ځای نجد او تهامه سره جلا کیږی

وَلِاَهْلِ الشَّامِ الْجُحْفَةُ وَلِاَهْلِ النَّجْدِ قَرْنٌ

او د شام د خلکو دپاره جحفه ده - او د اهل نجد دپاره قرن دی چه د یوه غره نوم دی۔

وَلِاَهْلِ الْيَمَنِ يَلَمْلَمُ فَاِنْ قَدَّمَ الْاِحْرَامَ عَلٰى هٰذِهِ الْمَوَاقِيتِ جَازَ

او د اهل یمن دپاره یلملم دی - او کې د مخه کړئ احرام پر دغو ځایو باندې روا دی۔

په اوس زمانه کی چه سفرونه د حج په طیاره وکی دی لو لا احرامونه تر میقا تو د مخه دی

ولی چه په طیاره کی د میقات درک نه معلومیږی

وَمَنْ كَانَ مَنْزِلُهُ بَعْدَ هٰذِهِ الْمَوَاقِيتِ فَمِيقَاتُهُ

او که د چا کور د مکې څخه و هاخوا ته وروسته وو نو د هغه دپاره میقات د حج او د عمرې محکه د

الْحِلُّ وَمَنْ كَانَ بِمَكَّةَ فَمِيقَاتُهُ فِي الْحَجِّ الْحَرَمُ

حل ده (یعنی مابین د میقات تر حرم شریف پورې مځکه ده) او هغه څوک چه کور ئې په مکه کی وی د هغه د احرام تړلو ځای

حرم شریف دی د حج د پاره

وَفِي الْعُمْرَةِ الْحِلُّ وَإِذَا أَرَادَ الْإِحْرَامَ اِغْتَسَلَ أَوْ

او د عمرې د پاره حل دئ۔ او چه اراده وکړي سړی د احرام غسل دې وکړي او یا دې اودس

تَوَضَّأَ وَالْغُسْلُ أَفْضَلُ وَلَبِسَ ثَوْبَيْنِ جَدِيدَيْنِ أَوْ

تازه کړي مګر غسل افضل دی تر اودس۔ او واد دې غوندې دوه جامې یا نوې او یا

غَسِيلَيْنِ إِزَارٌ وَرِدَاءٌ وَمَسَّ طِيبًا إِنْ كَانَ لَهُ

پریولې۔ هغه دوه یو لنګ او بل پټو دی۔ او په ځان پورې دې موږ ی خوشبوئي کړي د ر لوده

وَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ وَقَالَ اَللّٰهُمَّ إِنِّي أُرِيدُ الْحَجَّ

او دوه رکعته لمونځ دې اداء کړي۔ او ودې وائي ای خدایه په تحقیق زما اراده ده د حج

فَيَسِّرْهُ لِي وَتَقَبَّلْهُ مِنِّي ثُمَّ يُلَبِّي عَقِيبَ صَلٰوتِهِ

نو هغه ما ته آسانه کړې او زما نه قبول ئې کړې۔ او بیا دې تلبیه ووائي وروسته تر لمانځه۔

فَإِنْ كَانَ مُفْرِدًا بِالْحَجِّ نَوٰى بِتَلْبِيَتِهِ الْحَجَّ

پس که چیرې وو سړی د یوازې حج په قصد کې نو نیت دې وکړي په تلبیه ویلو کې د حج فقط

وَالتَّلْبِيَةُ أَنْ يَقُولَ لَبَّيْكَ اَللّٰهُمَّ لَبَّيْكَ لَبَّيْكَ لَاشَرِيْكَ لَكَ

او تلبیه دا ده چه ودې وائي۔ په بار بار په خدمت کې حاضر یم یا الله په بار بار په خدمت کې حاضر یم نشته

لَبَّيْكَ إِنَّ الْحَمْدَ وَالنِّعْمَةَ لَكَ وَالْمُلْكَ لَاشَرِيْكَ لَكَ

شریک تا لره په خدمت کې حاضر یم په تحقیق حمد و ثنا تا لره دی او نعمت هم تا لره دی۔ او بادشاهي هم۔ نشته شریک تا لره

وَلَا يَنْبَغِي أَنْ يُخِلَّ بِشَيْءٍ مِنْ هٰذِهِ الْكَلِمَاتِ

او نه بنائي چه کمی دې کړي یو شی د دغو کلمات نه څخه۔

## فَإِنْ زَادَ فِيهَا جَازَ فَإِذَا لَبَّى فَقَدْ أَحْرَمَ

او که زیاتوب وکړی نو دغو کلمو ته وا دی پس چه کله ئی تلبیه ووئیل محرم سو۔

مسئلہ! سړی یواځی په تلبیه ویلو سره چه نیت ئی نه وي په احرام کی نه داخلیږي او په یواځی نیت سره چه تلبیه نه ووائی محرم نه گرځی۔

مسئله! او وروسته تر تلبیه دی درود ووائی او بیا دی بیا جامع دعا وکړي چه زړه ئی غواړي

مسئله! په مناسکو کی عربی دعاگانی لیکل سوی دی او ډیر خوښ موږ عوام هغه دعاگانی نه ده کولای نه سی۔ او کچیری ده کړي بیا ئی په معنی نه پوهیږي۔ نو ما سوای د تلبیی څخه د نورو تولو دعاگانو په موږ فرض نه بلکه اجازه سته۔

## فَلْيَتَّقِ فِيمَا نَهَى اللهُ عَنْهُ مِنَ الرَّفَثِ

نو بیریږی به محرم د خدای څخه په هغه کار وکی چه خدای نهی منع کړی دی د هغه څخه۔ لکه رفث۔ رفث جماع ته هم وائی او فحش او بیکاره خبرو ته هم وائی۔ او د بنځی په مخکی د جماع خبرو ته هم وائی۔

## وَالْفُسُوقِ وَالْجِدَالِ

او لکه فسق کول۔ (فسوق تولو گناهو ته وائی۔ گناه کول که څه هم بیله حجه وی هم ناروا ده لکن په حج کی حرمت ډیر دی) او جګړه دی نه کوی د انډیوالانو سره یا د بل چا سره۔

## وَلَا يَقْتُلُ صَيْدًا وَلَا يُشِيرُ إِلَيْهِ وَلَا يَدُلُّ عَلَيْهِ وَلَا

او نه دی وژنی ښکار هر حیوان چه وي او نه دی اشاره کوی ښکار ته چه هغه دی هوسی مثلا) او نه دی

## يَلْبَسُ قَمِيصًا وَلَا سَرَاوِيلَ وَلَا عِمَامَةً وَلَا قَلَنْسُوَةً

ښودنه کوی د ښکار ته ځای وچا ته او نه به اغوندی قمیص او نه پرتوګ۔ او نه دی تړی لنګوټه او نه دی پر سر کوی

## وَلَا قَبَاءً وَلَا خُفَّيْنِ

خولۍ۔ او نه دی اغوندی چپنه۔ بالاپوښ۔ کوټ۔ کرتی۔ جلکه۔ او نه دی په پښو کوی موزې یا غټ بوټونه

إِلَّا أَنْ لَّا يَجِدَ نَعْلَيْنِ فَيَقْطَعُهُمَا مِنْ أَسْفَلِ الْكَعْبَيْنِ

مګر هغه وخت کې نه د موندلو چوټۍ ـ چمپل ـ نو دی پرې کړی موزی لاندی تر بجلکو

وَلَا يُغَطِّي رَأْسَهُ وَلَا وَجْهَهُ وَلَا يَمَسُّ طِيْبًا وَلَا

او نه دی پټوی سر او مخ ـ او نه دی مسه کوی خوشبوئی او نه به خر ئی

يَحْلِقُ رَأْسَهُ وَلَا شَعْرَ بَدَنِهِ

سر ئی نه بدن نور ویښتان ـ (یعنی که څه هم د بغل او د زیر ناف ویښتان وی)

وَلَا يَقُصُّ مِنْ لِحْيَتِهِ وَلَا مِنْ ظُفْرِهِ

او نه دی پرې کوی د ږیری ویښتان (که څه هم تر قبضه ډیره اوږده وی) او نه دی نوکان پرې کوی (یعنی که څه هم هرڅومره اوږده سوی وی ـ

وَلَا يَلْبَسُ ثَوْبًا مَصْبُوْغًا بِوَرْسٍ

او نه دی اغوندی جامه چه رنګ سوی وی په ورس ـ (دیوه خوشبویه واښه نوم دی چه په یمن کی ستره قا نوی والا وانی رنګ ئی سور دی ـ او صحاح والا وائی چه رنګ ئی زرد دی ـ

وَلَا بِزَعْفَرَانٍ وَلَا بِعُصْفُرٍ إِلَّا أَنْ يَكُوْنَ غَسِيْلًا لَا يَنْفُضُ

او نه هغه جامه چه په زعفران یا عصفر رنګ سوی وی (عصفر واښه دی چه کالی په رنګوی) مګر هغه وخت چه پریوله سوی وی ـ داسی چه رنګ نه اچوی پر بدن باندی ـ

وَلَا بَأْسَ بِأَنْ يَغْتَسِلَ وَيَدْخُلَ الْحَمَّامَ

او پروا نسته چه غسل کوی محرم (یعنی که د معذوری نه څخه وی او که د ګرمی د کبله وی) او حمام ته هم داخلیدای سی ـ

لکن د بدن خیری دی د صابون په استعمال یا د نوکانو په ذریعه یا په کیسه وهلو سره نه لیری کوی صرف تو دی او به دی استعمال کړی ـ

**وَيَسْتَظِلُّ بِالْبَيْتِ وَالْمَحْمِلِ**

او ظلب د سائې دې په خونه يا په کجاوه کې کوي.

يعنې په سايه کې د خونې يا د کجاوې وهکذا تر سايوان لاندې کښينستاى سي.

**وَيَشُدُّ فِي وَسَطِهِ الْهِمْيَانَ وَلَا يَغْسِلُ رَأْسَهُ وَلِحْيَتَهُ بِالْخَطْمِي وَيُكْثِرُ مِنَ التَّلْبِيَةِ عَقِيْبَ الصَّلَوَاتِ وَكُلَّمَا عَلَا**

او تړي دې پر ملا هميانې يا کمربند دروپو د حفاظت د پاره. او نه دې مينځي سر او ږيره په کهل خطمي سره (ولې چه هغه خوشبويه ده) او ډير کړي دې وائي تلبيه وروسته تر لمونځو او هغه وخت چه پورته کيږي

**شَرَفًا أَوْ هَبَطَ وَادِيًا أَوْ لَقِيَ رُكْبَانًا وَبِالْأَسْحَارِ**

لوړ ځاى ته او يا کښته کيږي و شيلې ته او يا په مخوره سي سپاره او د سپيدې په شاوخوا کې. دا خو د لاره احوال و.

**فَإِذَا دَخَلَ مَكَّةَ ابْتَدَأَ بِالْمَسْجِدِ الْحَرَامِ فَإِذَا عَايَنَ الْبَيْتَ كَبَّرَ وَهَلَّلَ**

پس چه داخل سي و مبارک ښار د مکې ته اول به ورځي مسجد حرام ته. پس چه وې ليدل مبارکه خونه د کعبې نو الله اکبر او لا اله الا الله دې ووائي. د پاره د تعظيم د کعبې مبارکې.

مسئله: د امام محمدؒ څخه روايت دئ چه د مشاهدو حج په ليد وکي منقوله دعاوې ضروري نه دي ولې هغه د زړه رقت بيائي. بلکه هره دعا چه کوي په خپله مورنۍ ژبه به دې کوي چه د زړه حضور ور سره وي. البته منقوله دعاګانې د تبرک د پاره ډيرې په زړه پورې دي. کوکب ص۶۴

**ثُمَّ ابْتَدَأَ بِالْحَجَرِ الْأَسْوَدِ فَاسْتَقْبَلَهُ وَكَبَّرَ وَهَلَّلَ**

بيا دې شروع وکړي د حجر اسود څخه او مخامخ دې سي و حجر اسود ته او تکبير او لا اله الا الله دې

**وَرَفَعَ يَدَيْهِ مَعَ التَّكْبِيْرِ**

ووائي او لاسونه دې پورته کړي د تکبير سره.

مسئله: مخامخ دې کړي ورغوي و حجر اسود ته او لاسونه دې تر اوږو پورې پورته کړي.

## وَاسْتَلَمَهُ وَقَبَّلَهُ إِنِ اسْتَطَاعَ مِنْ غَيْرِ أَنْ يُؤْذِيَ مُسْلِمًا

او مسه دې کړي حجر اسود او ښکل دې کړي چه طاقت ئې وي. بيله دې چه آزار ورکوي کوي مسلمان ته

ولې چه مسه کول او ښکلول د حجر اسود شريف سنت دی او آزار ول د مسلمان حرام دی۔

مسئله! نن ورځ د حج په موسم کې مسه کول او ښکلول د حجر اسود شريف بيله آزار ولو مسلمانانو هيڅ امکان نه لري نه د ښځې او نه د سړي نو ځکه حاجيان د دې مسه کولو څخه صرف نظر وکړي۔ وهذا معلوم بالتجربة۔

مسئله! په صورت کې د نه طاقت به حاجي صرف مخامخ و حجر اسود ته ورپنړي او تکبير او کلمه شريفه دې ووائي۔ او کې دعا کول دعا دې هم وکړي۔

## ثُمَّ أَخَذَ عَنْ يَمِينِهِ مِمَّا يَلِي الْبَابَ وَقَدِ اضْطَبَعَ رِدَائَهُ قَبْلَ ذَالِكَ

او بيا دې شروع وکړي د طواف د ښي اړخه څخه د حجر اسود چه د دروازې ته د مکې شريفې نژدې ده۔ او اضطباع دې کړې وي د مخه تر طواف۔

کيفيت ئې دا دی چه پيتوی په چپه اوږه واچوي او تر ښي لاسه بغل دې لاندې کړي بيرته په سر په چپه اوږه واچوي۔

## فَيَطُوفُ بِالْبَيْتِ سَبْعَةَ أَشْوَاطٍ وَيَجْعَلُ طَوَافَهُ وَرَاءَ الْحَطِيمِ

نو دې ګرځي په کعبه شريفه اووه واره۔ او ګرځوي دې طواف تر حطيم دباندې۔

## وَيَرْمَلُ فِي الْأَشْوَاطِ الثَّلٰثِ الْأُوَلِ

او اوږې دې ښوروي په اولو دريو طوافونو کې۔

رمل دا دی چه چابک چابک به ځي کامونه به نژدې نژدې اږدي۔ او اوږې ... ښوروي۔ لکه د سړي په خيال چه تنګ کوي۔

## وَيَمْشِي فِيمَا بَقِيَ عَلٰى هَيْئَتِهِ وَيَسْتَلِمُ الْحَجَرَ كُلَّمَا مَرَّ بِهِ إِنِ اسْتَطَاعَ

او په نورو څلورو واروکې دې په خپل عادت تګ کوي۔ او مسه کوي دې حجر اسود هر وار چه تيريږي په حجر اسود کې چيري د وسه پوره وي۔

## وَيَخْتِمُ الطَّوَافَ بِالْاِسْتِلَامِ ثُمَّ يَأْتِي الْمَقَامَ

او طواف دې ختم کړي په مسح کولو سره د حجر اسود. او بیا دې ورسي مقام ابراهیم ته

## فَيُصَلِّي عِنْدَهُ رَكْعَتَيْنِ اَوْحَيْثُ مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْمَسْجِدِ

او هلته دې ادا کړي دوه رکعته یا په هر ځای کې چه آسانه وي لمونځ کول یکښې د مسجد نه

مسئله! دا دوه رکعته د طواف واجب دي په نزد د احنافو.

فائده! مقام ابراهیم هغه ډبره ده چه په هغه کې اثر د دواړو پښو د ده مبارک موجود دی. او دا ډبره د هغه وخته څخه ده چه ابراهیم علیه السلام او د ده زوئ اسمعیل علیه السلام د کعبې شریفې خونه جوړوله نو ابراهیم علیه السلام پر دغه ډبره دریدئ او د کعبې شریفې دیوال ئې واهه او دا ډبره په قدرت د قادر متعال پورته به تله او کښته به را تله هغه وخت چه دیوال لوړ سو. مطلب دا چه دغه ډبره د ابراهیم علیه السلام د پاره قدرتي کوټ وه لکه د بنا یانو.

فائده! دا ډبره په اول الامر کې د کعبې شریفې په دیوال پورې وه. د دروازې وراړخ ته. لکن څه وخت چه ازدحام د یرسو او طواف کونکي او لمونځ کونکي نه سره ځائیدله نو ئې مقام ابراهیم نقل کړئ وهغه ځای ته چه اوس دی او د هینداري په غرفه کې ئې کښېښود دئ.

فائده! په بیان فوق سره دفع سو هغه سوال چه پاک خدای وائي، وَاتَّخِذُوا مِنْ مَقَامِ اِبْرَاهِيْمَ مُصَلًّى، یعني امام دې د مقام ابراهیم سره دریږي. کما في البیضاوي وغیره. او سره د دې چه اوس خو امام د کعبې شریفې د دیوال سره نزدې د دروازې وراړخ ته دریږي او مقام ابراهیم ترشا پاتیږي. فافهم.

او بعضي مفسرین وائي چه په آیة شریف کې مراد دوه رکعته واجب د طواف دي نو پر دې تقدیر سوال نه دئ وارد. کما لا یخفی.

## وَهٰذَا الطَّوَافُ طَوَافُ الْقُدُوْمِ وَهُوَ سُنَّةٌ لَيْسَ بِوَاجِبٍ وَلَيْسَ

او دا طواف طواف قدوم دئ. (یعني د افاقي راتګ و مکې مکرمې ته دائي شکریه ده) او دا طواف سنت دئ واجب نه دئ. او نسته د مکې شریفې پر خلکو باندې

**عَلٰی أَهْلِ الْمَكَّةِ طَوَافُ الْقُدُوْمِ ثُمَّ يَخْرُجُ إِلَى الصَّفَا فَيَصْعَدُ عَلَيْهِ**

دا طواف قدوم۔ او بیا دی ووځی د مسجد څخه د صفا و غرته پوځه اندازه دی لوړ وختړی (چه بیت الله شریف ورته ښکاری)

مسئله! افضل دا ده چه په باب الصفا دی ووځی چه هغه معلوم دروازه ده که څه هم په نورو دروازو وتل هم روا دی۔

**وَيَسْتَقْبِلُ الْبَيْتَ وَيُكَبِّرُ وَيُهَلِّلُ وَيُصَلِّيْ عَلَى النَّبِيِّ**

او مخامخ دی ودریږی و کعبې شریفې ته او الله اکبر او کلمه شریفه دی ووائی او درود دی ووائی په نبی علیه

**صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَيَرْفَعُ يَدَيْهِ وَيَدْعُو اللهَ تَعَالٰى لِحَاجَتِهِ**

الصلاة والسلام۔ او پورته دی کړی لاسونه او ودی غواړی د پاک خدای څخه هر حاجت چه وی۔

یعنی دا ځای د دعاء د قبلید و دی نو په دعاؤ کی دی ډیر کوشش کوی۔

**ثُمَّ يَنْحَطُّ نَحْوَ الْمَرْوَةِ وَيَمْشِيْ عَلٰی هَيْئَتِهِ فَإِذَا**

بیا دی د صفا څخه کښته سی و طرفته د مروا چه یو غر دی۔ او تګ دی کوی په سکینه او آرام سره

**بَلَغَ بَطْنَ الْوَادِيْ سَعٰی بَيْنَ الْمِيْلَيْنِ الْأَخْضَرَيْنِ سَعْيًا**

پس چه ورسیږی ولس ته د شیلې نو په ځغاسته به تګ کوی په مابین کی د هغه دوو خلو چه زرغونه دی

ولې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د لته سعی کړی ده۔ بخاری۔

فائده! په اوس وخت کی شیله نسته۔ ولې چه هغه شیله حکومت ډکه کړی ده صرف دوه میلان په یوه خوا بله خوا سته چه خلک وپوهیږی چه دلته شیله وه۔ جوهرة۔

**حَتّٰی يَأْتِيَ مَرْوَةَ فَيَصْعَدُ عَلَيْهَا وَيَفْعَلُ كَمَا فَعَلَ عَلَى الصَّفَا**

تر هغو چه مروه ته راځی او بیا دی پورته سی په مروه او و دی کړی هغه کارونه چه په صفا کی کړی

**وَهٰذَا شَوْطٌ وَاحِدٌ فَيَطُوْفُ سَبْعَةَ أَشْوَاطٍ يَبْدَءُ بِالصَّفَا**

وه (یعنی تکبیر۔ تهلیل۔ درود۔ دعا) او دا یو شوط بولی۔ پس طواف دی وکړی او وه شوطه شروع دی کړی د صفا څخه

## وَيَخْتِمُ بِالْمَرْوَةِ ثُمَّ يُقِيْمُ بِمَكَّةَ مُحْرِمًا فَيَطُوْفُ

او ختم دې پر مروه کړي وروسته دې اوسيږي په مکه شريفه کې محرم۔ او طواف دې کوي پر

## بِالْبَيْتِ كُلَّمَا بَدَا لَهُ وَيُصَلِّيْ لِكُلِّ أُسْبُوْعٍ رَكْعَتَيْنِ

بيت الله شريفه هر وخت چه دده ته ښکاره سي (هر وخت چه دده زړه وغواړي) او دوه رکعته لمونځ دې

## وَإِذَا كَانَ قَبْلَ يَوْمِ التَّرْوِيَةِ بِيَوْمٍ خَطَبَ الْإِمَامُ خُطْبَةً

کوي په هر اووه شوطو۔ هغه وخت چه سي د ترويه تر ورځې د مخه يوه ورځ نو امام دې خطبه و وائي

يوم الترويه! ترويه د اتمې ورځې بولي نو د مخه ورځ ئې د اووم ورځ کيږي۔ نو د اووم

په ورځ د ماپښين تر لمانځه وروسته دې امام خطبه و وائي۔

## يُعَلِّمُ النَّاسَ فِيْهَا الْخُرُوْجَ إِلَى مِنًى وَالصَّلٰوةَ بِعَرَفَاتٍ وَالْوُقُوْفَ

ور ودې ښيي وخلکو ته په دې خطبه کې وتل ومنئ ته (يعنې چه کله او څرنګه به منئ ته ځي)

منئ يو ځای دی د مکې شريفې څخه درې ميله فاصله لري۔ او دا هم ښکلی اندازه ده۔ نن ورځ

ئې آبادي سره نږدې سوې ده (او ور ودې ښيي لمونځ په عرفات کې (يعنې چه په عرفات کې

د ماپښين او د مازديګر لمونځ د ماپښين په وخت کې دواړه يو ځای اداء کيږي۔ عرفات

د يوه پراخ ميدان نوم دی چه د مکې شريفې څخه تر هغه ځايه پورې نه ميله مسافه ده) او

ور ودې ښيي امام دريدل په عرفات (پس له لمونځو د ماپښين او د مازديګر۔ د دعاو

د پاره به څرنګه دريږي او چيرې به دريږي)۔

## وَالْإِفَاضَةَ وَالْوُقُوْفَ بِالْمُزْدَلِفَةِ

او ور ښيي به وخت او کيفيت د راکښته کيدو د عرفات څخه او ور ښيي به دريدل پر مزدلفه باندې۔

مزدلفه د مکې شريفې څخه شپږ ميله مسافه لري۔

## فَإِذَا صَلَّى الْفَجْرَ يَوْمَ التَّرْوِيَةِ بِمَكَّةَ خَرَجَ إِلَى مِنًى

چه اداء کړي امام د سهار لمونځ د ورځې د ترويه په مکه شريفه کې نو ودې وځي منئ ته

وَأَقَامَ بِهَا حَتّٰى يُصَلِّيَ الْفَجْرَ يَوْمَ عَرَفَةَ ثُمَّ

(يعنې د ټولو حاجيانو سره) او اوسيږي دې په منى کې تر هغو پورې چې ادا کوي د سحار لمونځ د عرفات د

يَتَوَجَّهُ إِلٰى عَرَفَاتٍ فَيُقِيمُ بِهَا فَإِذَا زَالَتِ

ورځې په منى کې او پس تر لمانځه دې روان شي وعرفات ته نو اوسيږي دې په عرفات کې پس چې زوال

الشَّمْسُ مِنْ يَوْمِ عَرَفَةَ صَلَّى الْإِمَامُ بِالنَّاسِ الظُّهْرَ وَالْعَصْرَ

وکړي لمر د ورځې د عرفات ادا دې کړي امام په خلکو سره د ماپښين او مازديګر لمونځ (په يوه وخت کې)

فَيَبْدَأُ بِالْخُطْبَةِ وَيَخْطُبُ خُطْبَتَيْنِ قَبْلَ الصَّلٰوةِ يُعَلِّمُ

نو اول دې شروع وکړي امام په خطبه سره او دوه خطبې دې ووائي تر لمانځه د مخه وښيي

النَّاسَ فِيهِمَا الصَّلٰوةَ وَالْوُقُوفَ بِعَرَفَةَ وَالْمُزْدَلِفَةِ

خلکو ته په دغو دوو خطبو کې لمونځ (يعنې کيفيت د لمونځو د جمع کيدو) او درېدل په عرفات (يعنې د لمانځه پس دعا د پاره) او درېدل په مزدلفه (يعنې د لسم د ورځې د سحار تر لمانځه وروسته)

وَرَمْيَ الْجِمَارِ وَالنَّحْرَ وَالْحَلْقَ وَطَوَافَ الزِّيَارَةِ

او ويشتل د ځلو (د رمي ورځې) او ذبح د اضحيه يا د شکريه د حيوان - او سر خريل - او طواف زيارت چې د حج

وَيُصَلِّيْ بِهِمُ الظُّهْرَ وَالْعَصْرَ فِيْ وَقْتِ الظُّهْرِ بِأَذَانٍ وَإِقَامَتَيْنِ

فرض طواف دې) او ادا دې کړي امام په خلکو سره د ماپښين او مازديګر لمونځ په وخت کې د ماپښين په يوه اذان او دوه اقامته

مسئله! امام د عرفات هم هغه د مکې شريفې امام دی۔ او د دوی په مذهب کې په عرفات د مکې شريفې سړی مسافر دی نو ځکه امام د غه د واړه لمونځونه دوه دوه رکعته سفر یا نه کوی۔ نو موږ به څه کوو! لهذا حنفيان ټول د غه دوه لمونځونه د امام سره په جماعت نه کوي نو دد غه مشکل د حل د پاره زه فقير و امام ته د مکې شريفې وه غلم او ما ورته ووېيل چې تاسې بايد د ټولو مذهبو رعايت وکړئ موږ حنفيان د دغو دوو لمونځو د جماعت څخه محرومېږو

او زمونږ د احنافو په مذهب کې د امام مقيم د پاره ... رکعته لمونځ ... [illegible]

ولې چې زمونږ په مذهب کې ته مسافرئې او لمونځ دوه رکعته کوئ.

ده راته وویل نځمر مونږ ستاسې د مذهب مراعات کوو. او هغه داسې چې
زه تر عرفات د مخه په شخصي موټر کې خم طائف شریف ته چې هغه مسافت د قصر
لمانځه ده په تولو مذهبو کې او د طائف نه زه عرفات ته راځم. نو زه په عرفات کې
مسافر یم. نو مونږ حنفیانو د بنه ګمان لکبله باید د هغه د وې لمونځونه په جماعت وکړو
او که چا ته په دې کې اشتباه وي هغه دې دا پوښتنه تعقیب کړي. والله اعلم بالصواب.

**وَمَنْ صَلَّى الظُّهْرَ فِي رَحْلِهِ صَلَّى كُلَّ وَاحِدَةٍ مِنْهُمَا فِي وَقْتِهِمَا عِنْدَ**

او که چا وکذارې د ماپښین لمونځ په اطاق کې (یعنې په خپله خیمه کې) هغه سړي به اداء کوي
هر لمونځ په خپل وخت کې په نزد د امام اعظم رح (یعنې جمع د لمونځو به نه کوي)

**أَبِي حَنِيفَةَ وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ يَجْمَعُ بَيْنَهُمَا الْمُنْفَرِدُ**

او وائي امام ابو یوسف او امام محمد رح چې جمع کول د دې دوو لمونځو دې منفرد هم کوي.
مسئله! د امام ابو یوسف او امام محمد رح د قول نه صراحةً معلومیږي چې بې جماعت څوک نه سي کولائ.

**ثُمَّ يَتَوَجَّهُ إِلَى الْمَوْقِفِ فَيَقِفُ بِقُرْبِ الْجَبَلِ**

وروسته دې متوجه سي وخا ئ ته د درید ونو ودې درېږي نژدې وغر ته.
یعنې هغه غره چې د عرفات په مابین کې واقع دئ. او دې غره ته جبل الرحمة وائي او جبل الدعاء ئې هم بولي.

**وَعَرَفَاتٌ كُلُّهَا مَوْقِفٌ إِلَّا بَطْنَ عُرَنَةَ وَيَنْبَغِي لِلْإِمَامِ أَنْ يَقِفَ**

او عرفات ټول ځائ د درید ودئ مګر نس د شیاې د عرنه. او ښائي امام لره چې درېږي دې

**بِعَرَفَةَ عَلَى رَاحِلَتِهِ وَيَدْعُو وَيُعَلِّمُ النَّاسَ الْمَنَاسِكَ**

په عرفات پر او ښن خپل باندې. او دعا دې کوي او ور ښیې دې وخلکو ته د حج مناسک او افعال.

فوائد! په اوسنۍ زمانه کې په سبب د ډیر ازدحام د امام هیڅ درک نه معلومیږي
چې چیرې ولاړ دئ. او نه ئې د دعا درک معلومیږي. او نه ئې درک د تعلیم د مناسکو.
لهذا نن ورځ په عرفات کې هر سړي امیر نفسه دئ. خپلې دعا ګانې دې کوي. البته که

یو څو کسه د یو بنه عالم متقي سړي ملګري سي او د هغه وتعلیم ته غوږ ونیسي۔ او د هغه په دعا دي دعا وکړي ډیر به ښه وي۔

تنبیه! بعضي قسمي کوچنۍ ملایان په عرفات چه خلک ئې د قصو د پاره جمع کړي وي۔ او دړ واغ ور شتیا ورته وائي خلک ورته ژاړي۔ په احکامو د حج خو دوی څخه نه وي خبر چه خلکو ته بیان کړي۔ او خلک د دعا ئې څخه هم وباسي۔ ولې چه د دغو قصو ته ئې غوږ نیولی وي۔ زه حاجیانو ته وصیت کوم چه د دغسي بې ځایه د دروغو او رشتیا قصو داوریدو څخه دې پرهیز وکړي۔ او د هغه عالم ونصیحت ته دې غوږ ونیسي چه دوی ته احکام د حج ور ښیي۔ او بیا په عجز او نیاز دعاوي کوي په هغو دعاؤ دې آمین وائي۔ لکن عوام کالانعام د قرآن مبارک وصحیح ترجمې یا د بخاري شریف وغیره وترجمې ته نه غوږ نه نیسي او نه ئې ژړا ورځي۔ لکه جعلي او د دروغو وقصو ته چه غوږ نیسي۔

## د عوامو عقیده

د عوامو په عقیده کې عالم هغه دئ چه لوئ لوئ نارې وهي او د دروغو د ل خراشه قصې کوي۔ او که څه هم د قرآن ترجمه غلط کوي۔ او د حدیثو معنی چیري۔ الفاظ ئې لا هم غلط وائي۔ نو الحذر الحذر من هولاء۔ حافظ ؎

واعظان کاین جلوه در محراب و منبر میکنند
چون بخلوت میروند آن کار دیگر میکنند

## وَيُسْتَحَبُّ اَنْ يَغْتَسِلَ قَبْلَ الْوُقُوْفِ بِعَرَفَةِ وَيَجْتَهِدُ فِى الدُّعَاءِ

او مستحب او ښه کار دئ چه غسل وکړي حاجي د مخه تر دریدو په عرفات (په هدایه کې وائي چه دا غسل سنت دئ) او کوښښ دې کوي حاجي په دعا کې۔

یوه مسئله! چه واهل عرفات ته خدای پاک په بیخي لوئ رحمت متوجه وي۔ لکه چه دا صحیح احادیثو کې ثابته ده۔ نو بیندګان هم باید په طلب کې د هغه رحمت عمومي تقصیر ونه کړي۔ او د دنیا وآخرت نعمتونه د خدای جل جلاله څخه وغواړي۔ او وخدای پاک ته دې توبه وکاږي۔ او د صغائرو او کبائرو ګناهو بخښنه دې دا رحم الراحمین څخه وغواړي۔ او تول امت د آنحضرت صلی الله علیه وسلم بالخصوص وخپلو قریبانو شناخته کانو ته دې دعا د مغفرت وکړي۔ په صحیح حدیث کې راغلي دي چه ابلیس په هیڅ وخت کې دونه ذلیل او خوار نه دئ لیدل سوئ لکه د عرفات په ورځ حتی چه پر سر خاوري باد وي دا په دې سبب چه عمومي بخښنه د خدای عز وجل ویني۔ او حاجي صاحب دې کوښښ کوي

چه ژړا وړي. بیت ؎

تا نه گرید ابر کی خندد وچمن — تا نگرید طفل کی جوشد لبن

هر کجا آب روان سبزه شود — هر کجا اشک روان رحمت شود

## مناجات

الهی یا الهی — ندارم جز امیدت تکیه گاهی

ندارم طاعت مقبول درگاه — بجز اشک ندامت آه آهی

ندارم توشهٔ راه قیامت — بجز شرمندگی و روسیاهی

بحق حرمت فرقان اعظم — مرا از ذنب خود کن عذر خواهی

شفیع آورده ام روی محمد — کرم کن بر من گم کرده راهی

وړه دی فی الحدیث الصحیح "الدعاء مخ العبادة" یعنی دعاء مغز د عبادت دی.
قال الله تعالیٰ "اُدْعُوْنِیْ اَسْتَجِبْ لَکُمْ" تاسی دعا کوئ زه به ستاسی د دعا قبلو نه کوم

**فَإِذَا غَرَبَتِ الشَّمْسُ أَفَاضَ الْإِمَامُ وَالنَّاسُ مَعَهُ**

پس چه لمر غروب وکړي امام دی د عرفات څخه تاسی او خلک دی وره سره وي په

**عَلٰى هَيْنَتِهِمْ حَتّٰى يَأْتُوا الْمُزْدَلِفَةَ يَنْزِلُوْنَ بِهَا**

خپل سکون او آرام سره. شو راړی سی مزدلفې ته او هلته دی واړه وي.

**وَالْمُسْتَحَبُّ أَنْ يَنْزِلُوْا بِقُرْبِ الْجَبَلِ الَّذِيْ عَلَيْهِ الْمِيْقَدَةُ يُقَالُ لَهُ قُزَحُ**

او مستحب دا دی چه واړه دی نږدې وهغه غره ته چه پر هغه غره میقده ده (یعنی د اور بلید وځای چه په جاهلیت کی پر دې غره اور بلیدی. بنایر) او هغه غره ته قزح وائی (په دغه نامه ئی په دې سبب بولی چه دا غر په دغه ځای کی لوړ غر دی)

**مسئله**! که و غره ته نږدې ځای نه وو نو د لاری او د سړک پر یوه غاړه او بله غاړه دی واړه وی او پر سړک باندی اړول مکروه دی. مستحب دا دی

**فائده**! دې غره ته مشعر حرام هم وائی او امام هم پر دغه غره دریږی قاله الزمخشری. او بعضی فقهاء وائی چه مشعر حرام د مزدلفې نوم دی. او هم دلفه په دې مزدلفه بولی چه انسان د لاف نږدې کید وته وائی په دغه ځای کی آدم علیه السلام

او حواء رض سره یو ځای دي سوله ـ جوهره ـ

لکه عرفات ځکه هم نوم ورته وضع سو ـ لادي کبله چه د آدم ع او د حواء رض هم ملته معرفت سره حاصل سو یعني سره پیدائی کړه ـ ولې چه د وړاندي د جنت څخه پر حلالو حصه د ځمکي را اکښته کړه سوي وه ـ حتی چه په تاریخ کي وائی چه آدم علیه السلام په سراندیب کي چه د هندوستان یوه حصه ده را اکښته کړه سو او حواء رض په جده کي ـ او ابلیس په لغان کي ـ چه د افغانستان د یوي برخي نوم دئ ـ

# وَيُصَلِّي الْإِمَامُ بِالنَّاسِ الْمَغْرِبَ وَالْعِشَاءَ فِي وَقْتِ الْعِشَاءِ بِأَذَانٍ وَإِقَامَةٍ

او اداء دي کړي امام په خلکو سره د ماښام او د ماسختن لمونځ په وخت کي د ماسختن په یوه اذان او یوه اقامت سره

فائده : پس ورسته د امام ولمانځه ته عموماً حاجیان نه رسیږي ـ بلکه اکثر حاجیانو ته د امام د لمانځه ځای او وخت هم نه وي معلوم لهذا ددي دوو لمونځو د جمع د پاره په نزد د امام صاحب جماعت شرط نه دئ بلکه منفرد ئې هم جمع کولای سی او د عرفات د لمونځو جمع منفرد نه سی کولای ـ کوکب دري ـ

نو چه منفرد ئې جمع کولای سی که چیري یو څو نفره یو ملا پیدا کړي او د هغه سره په جماعت لمونځ وکړي هغه په طریق اولی جمع کولای سی ـ

# وَمَنْ صَلَّى الْمَغْرِبَ فِي الطَّرِيقِ لَمْ يَجُزْ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ

او که چا اداء کړئ د ماښام لمونځ په لاره کي (حتی الا د ماسختن وخت داخل سوئی وي او که نه یعني مزدلفې ته چه نه وو رسیدلی) نه دئ روا لمونځ په نزد د امام اعظم او محمد رح ـ

# فَإِذَا طَلَعَ الْفَجْرُ صَلَّى الْإِمَامُ بِالنَّاسِ الْفَجْرَ بِغَلَسٍ

پس چه د سهار سپیدي را وچاودلې اداء دي کړي امام په خلکو سره د سهار په تیاره کي

# ثُمَّ وَقَفَ الْإِمَامُ وَالنَّاسُ مَعَهُ فَدَعَا

(تر عادتي وخت د مخه) وروسته تر لمانځه دي ودریږي امام او خلک به ور سره وي او دعاوي دي وکړي مګر ځینو ته معلومه نه ده چه د امام درک و عمومي خلکو ته نه معلومیږي ـ نو هر حاجي که جماعت وه پیدا سوا او که نه سو ور پیدا دې تنها د سهار لمونځ په تاریکه کي وکړي ـ او بیا دي په

په دعاګانو کې ډېر ډېر کوښښ وکړي چه ځای د قبلېدو د دعاګانو دی۔

فائده! د دې مسئلې ثبوت په حدیث شریف کې هم نشته راغلی دی یعنې په دسمال لموځ دی په غلس کې کوم معلوم نه شو چه اصلي وخت د سحار د جماعت اسفار دی۔ یعنې په رڼا کې لموځ کول۔ لکه چه مذهب د امام اعظمؒ دی۔

## وَالْمُزْدَلِفَةُ كُلُّهَا مَوْقِفٌ اِلَّا بَطْنَ مُحَسِّرٍ

او مزدلفه ټوله ځای د درېدو دی مګر نه محسر د شیلې نس۔

په صحیح حدیث کې راغلی دی چه آنحضرت صلی الله علیه وسلم ابلیس په دغه وخت کې په دغه شیله کې ولیدی۔ او خاوره یې پر سر باد کړې۔ نو حکه رسول الله صلی الله علیه وسلم په عین دغه موقع کې وخندل۔ او سبب د خندا هم دغه د ابلیس پر سر خاوره باد ول بیان کړې۔

## ثُمَّ اَفَاضَ الْاِمَامُ وَالنَّاسُ مَعَهٗ قَبْلَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ حَتّٰى

او بیا دې راکښته شي امام خلک ورسره د لمر ختو نه مخکې تر څو منی ته ځان ورسوي۔

## يَاْتُوْا مِنٰى فَيَبْدَاُ بِجَمْرَةِ الْعَقَبَةِ فَيَرْمِيْهَا مِنْ

نو شروع دې وکړي په جمره عقبه سره (یعنې هغه ځلی چه مکې شریفې وخوا ته نزدې ده)

## بَطْنِ الْوَادِيْ بِسَبْعِ حَصَاةٍ مِثْلِ حِصَاةِ الْخَذْفِ۔

پس ور دې ولي هغه ځلي په اووه ډبرو۔ د شیلې د نس څخه په مثل د ډبرو د خذف۔

مسئله! مستحب دا ده چه دغه ډبرې دې پرې مینځي۔ مستصفی۔

مسئله! ښه دا ده چه دغه ډبرې دې په مزدلفه کې یا په لاره کې ټولې کړي۔ جوهره۔

مسئله! په هغو ډبرو چه یو وار شیطان په ویشتل شوي وي د هغو وار په هغه سره ویشتل مکروه دي کې داسي وکړه روا دی مګر ګناه کار دی۔ کوکب دري۔

مسئله! وخت د ویشتلو د دغه ځلي د لمر خاته څخه د دغه ورځې شروع کیږي بیا تر مابنامه پورې په نزد د امام اعظمؒ او په نزد د امام ابو یوسفؒ تر زواله پورې وخت دی و بس۔

مسئله! که څېرې حاجي داویشتل ترشپې پورې ونه کړل بیا ئې د شپې ډېر ولې نو کناهګار به نه وي لیکن دم نشته پاندې. او که تر صباپورې ونه کړي قضا دې راوړي. مګر پسه پرلازم دی. وکذا فی الجوهرة. والکوکب الدري. ص۴۷.

## وَيُكَبِّرُ مَعَ كُلِّ حَصَاةٍ وَلَا يَقِفُ عِنْدَهَا وَيَقْطَعُ التَّلْبِيَةَ مَعَ أَوَّلِ حَصَاةٍ

او الله اکبر دې وائي سره د هرې ډېرې او نه دې دریږي د جمرة عقبه ته ویشتلو وروسته او پرېږدي به دې تلبیه د اول ډبرې د ویشتلو سره (یعنې نور دې نو تلبیه نه وائي)

یوه مسئله! چه اصلي کیفیت د رمي د ځلولو دا دی چه کبنیږدي د ډبرې د راسته لاس د ګوتې پر نوک باندې او د دوهمې ګوتې په کومک دې ئې ورغورځوي. اما په اوسني زمانه کې پردې کیفیت ویشتل ډېر مشکل دی. نو ټن ورته هر ډول چه ممکنه وي هغسې دې ولي.

مسئله! که ډبره پرځلی نه ولګېږي بلکه لاندې غورځا شوه سي بیا هم کافي ده. ولي چه عذر دا ن د حام ډېر دی.

مسئله! که څوک مریض یا ډېر سپین ږیری یا ضعیف وي چه بیریږي چه د خلکو تر پښو لاندې به مړ سم هغه ته د وکیل نیول روا دی.

مسئله! ډبره که د ځلی ځنګ ډېره لیرې ولګېږي چه نژدې هم نه وه. نو که د ویشتو تر ځای ونځلیته نژدې وه پرواندې او که د سړي وخواته نژدې وه هغه ډبره نا حسابه ده.

## ثُمَّ يَذْبَحُ إِنْ أَحَبَّ ثُمَّ يَحْلِقُ أَوْ يُقَصِّرُ وَالْحَلْقُ أَفْضَلُ

او بیا دې ذبح و کړي که خوښه وي. (یعنې که د شکر به دم پرې کیدی) او بیا دې سر وخرئي یا د سر و ښېتان لنډ کړي او خریل د سر افضل کار دی.

مسئله! د ګوتې د یوه بند په اندازه به د سر و ښېتان لنډ وي. او بنځو لره فقط قصر دی.

## وَقَدْ حَلَّ لَهُ كُلُّ شَيْءٍ إِلَّا النِّسَاءَ

او پس له مذکوره کار و ځنه ورته حلال سو هر شی. (یعنې جیل ټالي اغوستل خوشبوئي لګول. په صابون ځان پاکول. زیر ناف خریل) مګر نه ښځې (یعنې د مایني سره وطي کول یا ځچه احستل وغیره)

**ثُمَّ يَأْتِيْ مَكَّةَ مِنْ ذَالِكَ الْيَوْمِ اَوْمِنَ الْغَدِ اَوْمِنْ بَعْدِ الْغَدِ**

اوبيا دې ولاړ سي مکې ته په دغه ورځ (يعنې دا افضله ده) او يا دې صبا ولاړ سي (دېو ولسم په ورځ) يا دې بل صبا ولاړ سي (دوولسم په ورځ. نو را تاخير نه دې راوا که نې وکړې دم پر لازم ميږي)

**فَيَطُوْفُ بِالْبَيْتِ طَوَافَ الزِّيَارَةِ**

نو طواف دې وکړي پر کعبه شريفه طواف زيارت چه دا طواف په حج کې فرض دی طواف د ...

فائده: او دې طواف ته طواف ... کن هم وائي يعنې جز د حج ... طواف فرض ... يعنې پس له ... تکه غځ د عرفات او طواف يوم النحر هم ... وائي چه اصلي ... دی.

**سَبْعَةَ اَشْوَاطٍ فَاِنْ كَانَ سَعٰى بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ عَقِيْبَ**

اووه شوطه. نو که سعی کړې وه په مابين کې د صفا او مروه ... وروسته ... ته

**طَوَافِ الْقُدُوْمِ لَمْ يَرْمُلْ فِيْ هٰذَا الطَّوَافِ وَلَا سَعْيَ عَلَيْهِ**

طواف قدوم نو په دې طواف زيارت کې دې اوږې نه ښوروي ... او سعی هم نسته په ده دی.

**وَاِنْ لَمْ يَكُنْ قَدَّمَ السَّعْيَ رَمَلَ فِيْ هٰذَا الطَّوَافِ وَيَسْعٰى**

او که دغه سعی د صفا و مروه نه وه کړې نو په دې طواف کې به اوږې ښوروي ... او سعی

**بَعْدَهٗ عَلٰى مَا قَدَّمْنَاهُ وَقَدْ حَلَّ لَهُ النِّسَاءُ**

به سعی هم کوي پر هغه دول چه دغه ذکر سول. او اوس نو ... ورته حلالې شوې. يعنې د مايني سره يا د ميني سره جماع کولای سي.

**وَهٰذَا الطَّوَافُ هُوَ الْمَفْرُوْضُ فِي الْحَجِّ وَيُكْرَهُ تَاْخِيْرُهٗ عَنْ هٰذِهِ**

او هم دغه طواف فرض دی په حج کې. او مکروه دی ځنډول ئې تر دغو ورځو يعنې لسم

**الْاَيَّامِ فَاِنْ اَخَّرَهٗ عَنْهَا لَزِمَهُ الدَّمُ عِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ**

يوولسم. دوولسم) نو که وځنډاوه طواف تر دغو ورځو لازم دی پر هغه سړي دم په نزد د امام اعظم ...

## وَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ ثُمَّ يَعُوْدُ إِلَى مِنًى فَيُقِيْمُ بِهَا

[illegible] طواف زيارت [illegible]

[illegible]

## فَإِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ مِنَ الْيَوْمِ الثَّانِيْ مِنْ أَيَّامِ النَّحْرِ

پس چه زوال وکړي لمر په دوهمه ورځ کې د اختر . نو په دغه ورځ دې وولي

## رَمَى الْجِمَارَ الثَّلٰثَ يَبْتَدِئُ بِالَّتِيْ تَلِي الْمَسْجِدَ

درې ځلې شروع دې کوي په هغه ځلي چه ومسجد خيف ته نژدې دې .

مسئله ! دا ويشتل دې د ماپښين تر ماښام وروسته کوي .

## فَيَرْمِيْهَا بِسَبْعِ حَصَيَاتٍ يُكَبِّرُ مَعَ كُلِّ حَصَاةٍ ثُمَّ يَقِفُ عِنْدَهَا فَيَدْعُوْا

او ولي دې دغه ځلي په اوو ډبرو او تکبير دې وائي د هرې ډبرې سره او بيا دې ودريږي هلته او دعا دې وکړي

مسئله ! هغه د ويشتلو ځاى دې نه دريږي چه ازدحام ديريږي . بلکه څه کوښه دې سي

## ثُمَّ يَرْمِي الَّذِيْ تَلِيْهَا مِثْلَ ذٰلِكَ وَيَقِفُ عِنْدَهَا

او بيا دې وولي هغه ځلي چه وروسته دې . لکه هغه دغه ځلي چه ويشتلي وو .

يعني په اوو ډبرو او ودې دريږي د هغه ځلي سره (لکه د مخه ځلي ته چه دريدې د پاره د دعا)

## ثُمَّ يَرْمِي الْجَمْرَةَ الْعَقَبَةَ كَذٰلِكَ وَلَا يَقِفُ عِنْدَهَا

او بيا دې وولي جمرة عقبه په هغه دول او نه دې دريږي هلته .

فائده ! هغه ويشتل چه وروسته بل ځلي ويشتل لري هغه ته دې دريږي او چه وروسته بل ځلي نه وي هغه ته دې نه دريږي .

الهي يا الهي يا الهي نه دارم جز معصيت تکيه گاهي نه درويش با گناه محمد عبيد الله غفر له

## حَتّٰى يَرْمِيَ فَإِذَا نَفَرَ إِلٰى مَكَّةَ نَزَلَ بِالْمُحَصَّبِ

تر څو چه دغلو ویشتل پوره کړي۔ او هغه وخت چه حاجي کوچ کوي مکې ته نو دی وار وي په محصب کې

یعنی سترګه! چه محصب دیو ځای نوم دی په ما بین د دو و غرو چه هغه ته ابطح هم
وائی او خیف ئی هم بولی او بطحاء ئی هم بولی۔ د مکې شریفې د بنار د باندې چه هلته
اوس یو بازار جوړ دی چه په بازار کې یو بنه ښایسته مسجد ستر د دغه مسجد په ځوا
کې حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم اړولی وه۔ په دې کې شک نشته چه
آنحضرت صلعم په محصب کې اړولی وه۔ کما فی البخاری وغیره۔ لکن اختلاف په دې
کې دی چه د دې ځای اړول سنت دی او که نه؟ د هدایې په اول جلد کې ص۲۳۴ وائی چه نزول
په محصب کې سنت دی زموږ په مذهب کې۔ او همدغسې کوکب دری په ص۶۸ کې وائی
او امام بخاری د ابن عباس رضی الله عنه څخه روایت کړی دی چه په محصب کې اړول سنت نه دی۔
بلکه دا ځای د مدینې منورې پر لاره برابر وو نو ځکه آنحضرت صلعم د لته وار ولی۔
په هر صورت نن ورځ بوله حاجیان د منی څخه برابر د مکې شریفې بنار ته داخلیږي
که په موټر کې وي که پیاده وي۔ د محصب نوم ونښان د خلکو څخه ورک دی۔ البته فقیر
په یو موقع کې د حج پو ښتنه پر یو سړي هغه ځای پیدا کړی چه ځوا محصب و وار او س
بازار دی نو په هغه کې دوه رکعته تحیة المسجد اداء کړې او یو کړی می دعا وکړه بیا نو
مکې شریفې ته راروان سوم۔ "فما لا یدرك کله لا یترك کله" یوه صادقه مقوله ده۔

## ثُمَّ طَافَ بِالْبَيْتِ سَبْعَةَ أَشْوَاطٍ لَا يَرْمُلُ فِيهَا وَهٰذَا

او بیا دی طواف وکړي پر بیت الله شریف او وه شوطه او رمل دی نه سره وي په دغه طواف کې

## طَوَافُ الصَّدَرِ وَهُوَ وَاجِبٌ إِلَّا عَلٰى أَهْلِ مَكَّةَ

او دا طواف د طواف صدر دی ا صدر معنی رجوع ده د حاجي صاحب هم پس له دغه طوافه
څخه وطن ته د رجوع قصد وي۔ او طواف وداع ئی هم بولی۔ وداع رخصت کیدو ته
وائی حاجي هم د مکې شریفې څخه رخصتیږي۔ او هم طواف اخیرئ هم بولی۔ او دا
طواف واجب دی پر ټولو خلکو مګر پر اهل مکه والانسته (ولی هغه مکي والا خو وطن
ته رجوع نه کوي۔

## غلطیانې

بعضې عوام د بعضې کم علمه ملایانو څخه داسې اوریدلي وي چه د صدره معنی څنګر دئ یعنې د مکې شریفې څخه چه وروستو د غه طواف وړې پس شا به څنګر ته دکعبې شریفې وخواته کوي څوچه تر لوېږ دې واړه وړي. فقیروانې چه نه په حدیثو کې او نه په فقه کې او نه په لغت کې په دا معنی راغلی. بلکه دا یو ادب غیر سُنی دئ. دکعبې سره. دې ویش.

نه اینکار میکند نه انکار میکند          والله اعلم بنیات عباده

## ثُمَّ يَعُودُ إِلَى أَهْلِهِ

پس له دغه طواف دې حاجي ولاړ سي د خپل کور وخواته چه پوره سو خدای دې قبول کړي

## فَإِنْ لَمْ يَدْخُلِ الْمُحْرِمُ مَكَّةَ وَتَوَجَّهَ إِلَى عَرَفَاتٍ وَوَقَفَ بِهَا

او که چیرې محرم د حج داخل نه سو مکې شریفې ته او متوجه سو عرفات ته او ودریدئ

## عَلَى مَا قَدَّمْنَاهُ سَقَطَ عَنْهُ طَوَافُ الْقُدُومِ وَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ لِتَرْكِهِ

پر عرفات پر هغه طریقه ودریدئ چه موږ د مخه بیان کړه نو ساقط سو د هغه سړي څخه طواف قدوم (یعنې وروسته کول نه غواړي. ولې چه طواف خود دخول د مکې د پاره لکه تحیه داسې دئ او دی خود داخل نه سو) او هیڅ شی نسته پر ده باندې د جهته د ترک د طواف قدوم.

فائده! غالبًا داسې کار د کمې څخه د وخت کیږي. البته که وخت ډیر وه او حاجي د غسې وکړي فقد اساء. ګناهکار دی.

## وَمَنْ أَدْرَكَ الْوُقُوفَ بِعَرَفَةَ مَا بَيْنَ زَوَالِ الشَّمْسِ مِنْ يَوْمِ عَرَفَةَ

که څوک ورسیدئ ودریدو ته پر عرفات په مابین کې د زوال د ورځې د عرفات بیا تر

## إِلَى طُلُوعِ الْفَجْرِ مِنْ يَوْمِ النَّحْرِ فَقَدْ أَدْرَكَ الْحَجَّ

راختو پورې د سپیده د ورځې د اختر (یعنې چه سپیدې لا نه وي چاودلې) نو هغه سړي ونیوئ حج (یعنې حج ئې صحیح سو. شی نسته پر ده)

وَمَنْ اِجْتَازَ بِعَرَفَةَ وَهُوَ نَائِمٌ اَوْ مُغْمًى عَلَيْهِ اَوْ لَمْ يَعْلَمْ

او که څوک محرم تیر سو پر عرفات او دی بیده وو او یا بیهوښی راغلی وه پر ده او یا نه پوهېده

اِنَّهَا عَرَفَاتٌ اَجْزَأَهُ ذَالِكَ عَنِ الْوُقُوْفِ

پېژندلې چه دا عرفات دي کافي دی دغه تیریدل د وقوف څخه (گویا دده وقوف د عرفات وکړی چه ده صحیح دی)

وَالْمَرْأَةُ فِي جَمِيْعِ ذَالِكَ كَالرَّجُلِ غَيْرَ اَنَّهَا لَا تَكْشِفُ رَأْسَهَا وَتَكْشِفُ

او ښځه په ټولو احکامو کې د حج لکه نر داسې ده۔ غیر دده څخه چه ښځه به نه لڅوی سر خپل او

وَجْهَهَا وَلَا تَرْفَعُ صَوْتَهَا بِالتَّلْبِيَةِ وَلَا تَرْمُلُ فِي الطَّوَافِ

لڅوی به مخ خپل او نه به پورته کوی آواز خپل په تلبیه ویلو سره او اوږې دې نه ښوروی په طواف کې

وَلَا تَسْعٰی بَيْنَ الْمِيْلَيْنِ الْاَخْضَرَيْنِ وَلَا تَحْلِقُ وَلٰكِنْ تُقَصِّرُ

او چابک تګ به نه کوی په مابین کې د دوو میلانو چه زرغونه دي او سر به نه خریي د احرام خلاصولو په وخت کې بلکه ویښتان دې د سر څخه غوڅ کړي۔

## د دې ځای اوله فائده

خدای پاک په مقدسو ځایو کې په مقدسه تلبیه سره ښځه د آواز پورته کید وڅخه منع کړه۔ نو د خلکو څه خیال دی چه په وړو او نورو ځایو کې به د ښځې د آواز پورته کول روا وي هرګز نه او دا د ښځې خپله ذمه داري ده چه په غزلو سره په آواز نه پورته کوي۔

## د دوهمه فائده

خدای پاک ښځه د سر لڅولو څخه او د اوږو ښورولو څخه او د چابک تګ څخه په مابین کې د صفا او مروه منع کړه۔ باوجود چه دا د حج وظیفې وې۔ له دې سببه چه د ښځې کشمت د بدن راڼه سي چه عورت دی نو څرنګه به روا وي خبرې کول غزل ویل د ښځو په راډیو کانو کې۔ او څرنګه به روا وي ښکاره کول د ښځو په لڅو سرو بلکه په لڅو بدنو

په ویسیار و او تلوین نوکی. او څرنګه به ر وا وی د بالغو ښځو یکه د مرا هقو ښځو تګ و مکتبو ته بید حجاب شرعی.

او څرنګه به روا وی د ښځو پر حکومتو کښینستل بې حجابه چه نزهم ود وی ته په انفرادی توګه او په اجتماعی توګه وه ځی. اروپایان وائی په اسلامی حکومتو کې د ښځو حقوق پایمال کیږی. او بعضی خلک جاهلان که د ښځو هغه حقوق شرعیه پایمال کوی هغه غلط کار او ګناه نه دی. اوکه اروپائی حقوق او امریکائی حقوق او انګریزی حقوق پایماله کوی هغه غلط کار بولی.

بلکه د اسلامی نړی د حکومتو فریضه ده چه د ښځو هغه حقوق چه د شریعت څخه مخالف وی که څه هم د اروپایانو د رائی اوفکر سره برابر وی پایمال او تر پښو لاندی کړی.

نو ښځی به د ګناه څخه خلاصی سی او حکومت ته به خدای پاک جل جلاله ثواب ور کړی.

وَمَا عَلَيْنَا اِلَّا الْبَلَاغُ الْمُبِيْن
وَ اللہ الموفق وَ المعین

تبصره! د نړی ټوله غیر اسلامی حکومتونه د طالبانو په حکومت فشار راولی او وائی چه د طالبانو په حکومت کی بشری دوستی نسته. ولی پرلس دره هیا معادل د هغه د غله لاس پری کوی. دوی وائی چه لاس د بشرخو دیر قیمتی شی دی نو څرنګه ئی طالبان پر لس دره هه چه یو کم مبلغ دی ور پری کوی. عاصی وائی "اانتم اَعْلَمُ اَمِ اللّٰه". ایا تاسی خبر یاست یعنی په اصلاح د نظام د بشر او که خدای. قال اللّٰه تعالی "السارق والسارقة فاقطعوا ایدیهما" خدای وائی چه د غله او د غلی ښځی لاس ونه ور پری کړی. دوی وائی چه یو سړی چه په قصد یو سړی مړ کړی تاسی طالبان هغه قاتل په قصاص وژی. نو دوی وائی چه قاتل ته دی اوږد قید کښین دی. یو خو مرسو د د غه بل په وژلو کی څه فائده ده؟ عاصی وائی "اانتم اعلم ام اللّٰه" خدای خو وائی "ولکم فی القصاص حیوة یا اُولِی الْاَلْبَاب"

# بَابُ الْقِرَانِ

باب دی په بیان کی د قران

## اَلْقِرَانُ اَفْضَلُ عِنْدَنَا مِنَ التَّمَتُّعِ وَالْاِفْرَادِ

قران افضل دی زموږ د حنفیانو په نزد تر تمتع او افراد حج.

یوه مسئله! چه اقسام د حج درې دی. (۱) افراد. هغه دا دی چه د میقات څخه یوازې د حج احرام وتړی. (۲) قران. هغه دا دی چه د میقات څخه د عمرې او حج دواړو احرام په یوه ځای وتړی او چه مکې شریفې ته ورسیږی افعال د عمرې وکړی او وه واړه طواف او وکړه واړه سعی او بیا نو احرام بند کړه او سیرنی. څو د افعالو څخه د حج وروسته د دواړو څخه یو ځای ځان حلال کړی. (۳) تمتع. هغه دا ده چه د میقات څخه یوازې د عمرې احرام وتړی او بیا چه مکې شریفې ته ورسی افعال د عمرې وکړی او بیا ځان حلال کړی وروسته بیا د اوومې په ورځ د حج احرام وتړی او حج وکړی. زموږ په مذهب کی خو قران افضل دی. او امام شافعی رح وائی چه افراد افضل دی. وروسته تمتع افضل دی. وروسته قران. او دا مذهب د امام مالک هم دی. او د امام احمد رح څخه روایت دی چه اول تمتع دی بیا افراد او بیا قران.

زموږ دلیل هغه حدیث د بخاری او مسلم دی چه انس رض وائی ما اورېدلی دی د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه چه ویلی "لبیک عمرةً وحجةً. لبیک عمرةً وحجةً"

## وَصِفَةُ الْقِرَانِ اَنْ يُهِلَّ بِالْعُمْرَةِ وَالْحَجِّ مَعًا مِنَ

او بیان او ماهیت د قران دا دی چه احرام وتړی په عمره او حج سره یو ځای د

## الْمِيقَاتِ وَيَقُولُ عَقِيبَ الصَّلٰوةِ اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اُرِيْدُ الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ

میقات څخه او وائی دی پس له لمانځه څخه یعنی دوه رکعته د احرام یا الله زما اراده ده د حج او د عمرې. ترڅو راته اسانه کړې دواړه.

فَيَسِّرْهُمَا لِيْ وَتَقَبَّلْهُمَا مِنِّيْ فَإِذَا دَخَلَ مَكَّةَ اِبْتَدَءَ
او را اخحه قبول ئې کړې دواړه د ما نه - پس چه داخل سی مکې شریفې ته شروع دې

بِالطَّوَافِ فَطَافَ بِالْبَيْتِ سَبْعَةَ اَشْوَاطٍ يَرْمُلُ فِي الثَّلٰثَةِ
وکړې په طواف سره - نو طواف دې وکړي پر بیت الله شریفه اوه شوطه او رمل دې بنوړوی

الْاُوَلِ مِنْهَا وَيَمْشِيْ فِيْ مَا بَقِيَ عَلٰى هِيْنَتِهٖ وَسَعٰى
په اولو درو وارو کې د دې شوطو او تګ دې کوی په پاته وارو کې په اطمنان سره او سعي دې کوي پس

بَعْدَهَا بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ وَهٰذِهٖ اَفْعَالُ الْعُمْرَةِ
له طوافه په مابین کې د صفا او د مروه - او دا سوه افعال د عمرې -

ثُمَّ يَطُوْفُ بَعْدَ السَّعْيِ طَوَافَ الْقُدُوْمِ وَيَسْعٰى
او وروسته دې طواف وکړي پس له سعي طواف قدوم - او سعي دې وکړی

بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ لِلْحَجِّ كَمَا بَيَّنَّاهُ فِيْ حَقِّ الْمُفْرِدِ
په مابین د صفا او مروه دا د حج د پاره - لکه چه موږ ئې بیان وکړې په حق کې د مفرد

فَاِذَا رَمَى الْجَمْرَةَ الْعَقَبَةَ يَوْمَ النَّحْرِ ذَبَحَ شَاةً اَوْ
پس چه وولي جمرهٔ عقبه په ورځ د اختر کې ذبح دې کړی پسه او یا غوی

بَقَرَةً اَوْ بُدْنَةً اَوْ سُبُعَ بَقَرَةٍ اَوْ سُبُعَ بُدْنَةٍ فَهٰذَا دَمُ الْقِرَانِ
او یا اوښه (یو یوه سره) او یا اوومه حصه د غوایي یا د اوښ - هدغه دم د شکریې د قران دئ.

فَاِنْ لَّمْ يَكُنْ لَّهٗ مَا يَذْبَحُ صَامَ ثَلٰثَةَ اَيَّامٍ فِي الْحَجِّ
او که چیرې نه وو حاجي له هغه شی چه ذبح ئې (یعنې مسکین وو) نو روژې دې ونیسي درې ورځې

اٰخِرُهَا یَوْمُ عَرَفَةَ فَإِنْ فَاتَهُ الصَّوْمُ حَتّٰی دَخَلَ یَوْمُ

چه اخیرې ئې د عرفات ورځ وي. او که څنګه فوت سوې د غه درې روژې (نی ویلې) ترڅو چه

النَّحْرِ لَمْ یُجْزِهِ إِلَّا الدَّمُ ثُمَّ یَصُوْمُ سَبْعَةَ

د اختر ورځ را غله. نو بیا کفایت نه کوي مګر دم (د هغې څخه چه ئې پید اکوي) او بیا دې روژې

أَیَّامٍ إِذَا رَجَعَ إِلٰی أَهْلِهِ فَإِنْ صَامَهَا بِمَكَّةَ بَعْدَ

ونیسي او وه ورځې چه کور ته ورسي. او که ئې ونیولې دغه اووه روژې په مکه شریفه کې پسله

فَرَاغِهِ مِنَ الْحَجِّ جَازَ فَإِنْ لَمْ یَدْخُلِ الْقَارِنُ مَكَّةَ وَتَوَجَّهَ

فارغ یدو دافعا لو څخه د حج روا دي. او که چیرې نه سو داخل قارن مکې شریفې ته او مخ ئې وکړی

إِلٰی عَرَفَاتٍ فَقَدْ صَارَ رَافِضًا لِعُمْرَتِهِ بِالْوُقُوْفِ وَسَقَطَ

و عرفات ته په تحقیق وګرځیدی قارن پریښوونکی د خپلې عمرې په درید و د عرفات او ساقط سو

عَنْهُ دَمُ الْقِرَانِ د قِرَان دَم ئې دی او س قارن نه دی چې .....

د ده څخه هغه دم چه د قران د کبله پر ده کیدئ (ولې چه او س دی قارن نه دئ)

وَعَلَیْهِ دَمٌ رَفْضِ الْعُمْرَةِ وَعَلَیْهِ قَضَاؤُهَا

او پر ده واجب دی دم په سبب د پریښو ولو د عمرې او پر ده لازم ده قضا د هغې عمرې.

مسئله! د دې پسې د غو بنو څخه خوړک وده ته حرام دئ. کوکب دری منه

د دلیل ئې دا دی چه عمره د قارن خو نفل ده. قانون شرعي دا دی چه هر نفلي عبادت په نیت ئې شروع وکړي او بیائې پریږدي قضا را وړل پر هغه لازم ده. نو قارن که څه هم د عمرې نیت یوازې نه دی کړی لکن د حج د نیت سره ئې د عمرې نیت هم یو ځای کړی دی او د اسی ئې ویلي دی، اللهم انی ارید العمرة والحج. نو ځکه ئې قضا لازمه ده

# بَابُ التَّمَتُّعِ

باب دی په بیان د تمتع کې

اَلتَّمَتُّعُ اَفْضَلُ مِنَ الْاِفْرَادِ عِنْدَنَا وَ الْمُتَمَتِّعُ عَلٰی وَجْهَیْنِ

تمتع افضل دہ تر یوازی حج نهوښه په نزد ۔ او متمتع حاجی دوه قسمه دی ۔

مُتَمَتِّعٌ یَسُوْقُ الْهَدْیَ وَ مُتَمَتِّعٌ لَا یَسُوْقُ الْهَدْیَ

یو هغه متمتع دی چه هدی وړسره بوځی (یعنی یا پسه یا اوښ) او بل هغه متمتع دی چه هدی لهٔ ځان سره بوځی ۔ هدی هغه پسه یا غوئی یا اوښ دی چه د مکې شریفې د پاره وړسره وی ۔

وَصِفَةُ التَّمَتُّعِ اَنْ یَّبْتَدِءَ مِنَ الْمِیْقَاتِ فَیُحْرِمُ بِالْعُمْرَةِ

او بیان د ماهیت د تمتع دا دی چه شروع وکړی حاجی د میقات ځایه څخه او احرام وتړی په عمره سره

وَ یَدْخُلُ مَکَّةَ فَیَطُوْفُ لَهَا وَ یَسْعٰی وَ یَحْلِقُ اَوْ یُقَصِّرُ

او داخل شی و مکې شریفې ته نو طواف وکړی د پاره د عمرې او سعی وکړی او سر دی وخریئ یا دی د

وَقَدْ حَلَّ مِنْ عُمْرَتِهٖ وَ یَقْطَعُ التَّلْبِیَةَ اِذَا ابْتَدَأَ

سر و ښتان لنډ کړی نو په تحقیق سره خلاص شو د عمرې څخه او پرې دی بهٔ دی تلبیه چه شروع

بِالطَّوَافِ ثُمَّ یُقِیْمُ بِمَکَّةَ حَلَالًا فَاِذَا کَانَ یَوْمُ التَّرْوِیَةِ

ئې په طواف وکړه ۔ او بیا دی او سیږی په مکه کې حلال بیښ چه ورځ د اتم راغله نو دی احرام

اَحْرَمَ بِالْحَجِّ مِنَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ

ولی چې دا ډیر افضل ځای دی د حج وتړی د مسجد حرام شریف څخه ۔

مسئله ! افضل دا دہ چه تر اتم د مخه دی احرام وتړی ۔

وَيَفْعَلُ مَا يَفْعَلُ الْحَاجُّ الْمُفْرِدُ وَعَلَيْهِ دَمُ التَّمَتُّعِ

او وه دې کړي هغه کار وونه لکه مفرد د حج والا چه ئې کوي (یعنی طواف او سعی) او پر ده لازم دئ دم د تمتع د

فَإِنْ لَمْ يَجِدْ مَا يَذْبَحُ صَامَ ثَلٰثَةَ أَيَّامٍ فِي الْحَجِّ وَسَبْعَةً

شکرانې او که نه ده لوندئ هغه شي چه ذبح ئې کړي نو درې ورځې دې د حج په ورځو کې وینسي او اووه ورځې

إِذَا رَجَعَ إِلَىٰ أَهْلِهِ وَإِنْ أَرَادَ الْمُتَمَتِّعُ أَنْ يَسُوقَ الْهَدْيَ أَحْرَمَ وَسَاقَ الْهَدْيَ

چه کور ته ولاړ سي. او که اراده وکړه د متمتع چه هدیه د مکې د ځان سره بوزي نو احرام دې وتړي او روانه دې کړي هدیه

مسئله! دا هغه دوهم قسم د تمتع دئ او دا قسم تر اول افضل دئ. ردمحتار.

فَإِنْ كَانَتْ بَدَنَةً قَلَّدَهَا بِمَزَادَةٍ أَوْ نَعْلٍ

که چېرې هغه هدیه اوښ یا اوښه نو په غاړه دې ور وځړوي هغه بنډه وغیره چه تو بنه پکښې وي او یا څپلۍ د اوښ علامه ده

د دې تقلید فائده دا ده چه دا اوښه بیا څوک د اوبو او د وښو څخه نه منع کوي.

مسئله! اوښ چونکه د سړي څخه غائبیږي نو ځکه د اعلام دپاره وځړوي چه بیا بل څوک

کار نه پر لري. او نې د وښو او نې د اوبو څخه منع کوي. او د غوائې هدیه هم تقلید غواړي لکن

پسه چونکه د سړي سره ور سره وي نو ځکه تقلید نه غواړي. کوکب دري.

وَأَشْعَرَ الْبَدَنَةَ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللهُ

او اشعار دې وکړي د اوښ په نزد د ابي یوسف او محمد رحمة دې وکړي خدائې پر د واړو

وَهُوَ أَنْ يَشُقَّ سَنَامَهَا مِنَ الْجَانِبِ الْأَيْمَنِ وَلَا يُشْعِرُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ

او اشعار دا سی دی چه و وهخیري دې کړي بوک د ښي طرف څخه او اشعار دې نه کوي په نزد د امام اعظم

فائده! په ... هغه وینو دې ور رنګ کړي بوک د اوښ او دا هم صرف د خبر تیا دپاره تاکیدا

پوه سه! چه مصنف قول دیار انو د هغه کړي پر قول د امام اعظم لره دې سببه چه فتوی پر قول د یارانو ده

فائده! په هدایه کې وائې چه اشعار مکروه دی په نزد د امام اعظم او بنه کار دئ په نزد د یارانو

پوه سه! چه په مسئله کې د اشعار مخالفینو لکه ابن القیم الاندلسی - ابن تیمیه الحنبلی

او اتباع د محمد بن عبدالوهاب النجدي پر امام اعظمؒ باندې خولې د مخالفت او اعتراض
او طعن و عيب خلاصې کړې دي. او دوی وائي چه ابوحنيفهؒ خو ځکه منع کوی يا مکروه
بولي هغه کار چه اشعار دی. او سره ددې چه نبی عليه الصلوٰة والسلام دا کار کړې دی
او صحابو کرامو هم تول کړې دی. چه ددې د پاره په بخاری شريف کې مکرر او ډير
حديثونه ستّه. او په صحيح مسلم بلکه په صحاح ستة کې د اشعار حديثونه ځلنده معلومېږي
و مخالفينو ته جواب دا دی! چه فقيه ابوجعفر الطحاویؒ چه اعلم الناس په
مذهب دامام اعظم کنل کيږي. او امام ابومنصور الماتريدیؒ وائي چه ابوحنيفهؒ اصل اشعار
مکروه نه بولي او ځکه بې مکروه وکڼي. او سره ددې چه احاديث في وحدته د شهرت
ته رسيدلی دی. او ټول حديثونه په اشعار کې صحيح هم دی. بلکه دامام اعظمؒ په وخت
کې خلکو اشعار داسې کاوه چه چاره به ئې دا وږې په بوک کې وهه بنخه کړه او بيائې کش کړه
د پرڅائې به ورته ژبرې کړې هغه تپ به چنجيان وکړه او وه وست به سوې سبب ذکر شه
د جانر د هلکې او حيوان غريب به د خوړک څخه ولويدی او هلاک ته به نږدې سو. نو
امام اعظمؒ د غسې اشعار مکروه بولي. او منع د اشعار ئې د دې سببه وکړه چه پر عوامو
باندې د هغه اشعار معتاد د وازه بنده سی. او که څوک طريقه شرعي د اشعار پېژني
او نه د هغه وی. او هغه داسې چه په چاره دی صرف پوست د بوک پرې کړې او چاره به
غوښو ته نه رسوی. د امام صاحبؒ په نزد د دغسې اشعار اجازه ستّه او بنه کار ئې
هم بولي. امام کرمانیؒ وائي چه همدغسې بيان د مذهب د امام اعظمؒ صحيح دی.
او امام قوام الدينؒ هم په دې سره تصريح کړې ده. او امام کمال الدينؒ ابن الهمامؒ چه مصنف
د فتح القدير دی همدغسې وائي. او بدر الدين العينیؒ په شرح کې د بخاری شريف هم په
دغه بيان تصريح کړې ده. او په رد محتار کې هم وېته بيان ستّه.

## فَاِذَا دَخَلَ مَكَّةَ طَافَ وَسَعٰى وَلَمْ يَحِلَّ حَتّٰى يُحْرِمَ بِالْحَجِّ يَوْمَ التَّرْوِيَةِ

پس چه داخل سی هديه والا متمتع مکې شريفې ته او د کعبة طواف دې وکړي او سعی دې د صفا او
مروه وکړي او ځان دې نه حلالوی بيا تر هغو پورې چه احرام د حج تړې په ورځ د اتم.

## فَاِنْ قَدَّمَ الْاِحْرَامَ قَبْلَهُ جَازَ وَعَلَيْهِ دَمُ التَّمَتُّعِ

او که احرام مقدم کړې د اتم تر ورځې روا ده (بلکه دغه احرام افضل دی. کوکبؒ) او په ده د تمتع دم هم ستّه

فَإِذَا حَلَقَ يَوْمَ النَّحْرِ فَقَدْ حَلَّ مِنَ الْإِحْرَامَيْنِ

پس چې سر ئې وخرایه په ورځ د اختر کې په تحقیق خلاص شو د دواړو احرامونو نه (احرام د حج او د عمرې)

وَلَيْسَ لِأَهْلِ مَكَّةَ تَمَتُّعٌ وَلَا قِرَانٌ وَإِنَّمَا لَهُمُ الْإِفْرَادُ خَاصَّةً

او نشته (نه دی روا) اهل مکه لره تمتع او نه قران ـ بلکه د دوی د پاره خاص حج افراد دی ـ

مسئله: هغه کسان چې په مینځ د میقات ئې کور وی او یا د میقات نه د مکې شریفې په خوا ئې کور وی هغه لره هم تمتع او قران نه دی روا ـ

مسئله: که مکي والا قران یا تمتع وکړه گناهگار دی او دم هم پر لازم دی ـ

وَإِذَا عَادَ الْمُتَمَتِّعُ إِلَى بَلَدِهِ بَعْدَ فَرَاغِهِ مِنَ الْعُمْرَةِ وَلَمْ يَكُنْ

او که چیری راوگرځیدی متمتع وخپل ښار ته یعنی کور ته پس له فراغ د عمرې نه او هدیه ئې

سَاقَ الْهَدْيَ بَطَلَ تَمَتُّعُهُ وَمَنْ أَحْرَمَ بِالْعُمْرَةِ قَبْلَ أَشْهُرِ

نه وه بیولې نو تمتع ئې باطله شوه ـ او که چا احرام وتاړه په عمره سره د مخه تر میاشتو د حج

الْحَجِّ فَطَافَ لَهَا أَقَلَّ مِنْ أَرْبَعَةِ أَشْوَاطٍ ثُمَّ دَخَلَتْ أَشْهُرُ

او بیائې طواف وکړی د عمرې د پاره کم تر څلورو شوطه وروسته داخلې شوې میاشتې

الْحَجِّ فَتَمَّهَا وَأَحْرَمَ بِالْحَجِّ كَانَ مُتَمَتِّعًا

د حج نو ئې د عمرې پاته برخه پوره کړه او احرام د حج ئې وتاړه نو دی متمتع شو ـ

دلیل: دا شرعی خبره ده چې اکثر ته د شی حکم د کل دی نو دې سړی چې اکثر شرطونه د عمرې د حج په میاشتو کې وکړه گویا ټوله عمره ئې د حج په میاشتو کې وکړه او داسی چا ته متمتع وائی ـ

وَإِنْ طَافَ لِعُمْرَتِهِ قَبْلَ أَشْهُرِ الْحَجِّ أَرْبَعَةَ أَشْوَاطٍ فَصَاعِدًا

او که چیرته دغه سړی طواف وکړی د عمرې د پاره څلور شوطه یا بالا تر څلورو د حج تر میاشتو د مخه

**ثُمَّ حَجَّ مِنْ عَامِهٖ ذَالِكَ لَمْ يَكُنْ مُتَمَتِّعًا**

او بیا ئې حج وکړی په دغه کال د عمرې کې نه دی متمتع (ولې چې اکثر له حکم د کال دی گویا دا ته له عمره ترمیاشتو د حج دغه وکړه)

**وَاَشْهُرُ الْحَجِّ شَوَّالٌ وَذُوالْقَعْدَةِ وَعَشْرٌ مِنْ ذِي الْحِجَّةِ**

او میاشتی د حج د کوچنی اختر میاشت۔ د میانی میاشت او لس ورځې د لوئ اختر د میاشتی دی۔

فائدہ داچونکہ اکثر د ےوه میاشتو دی نو حکه ئې اشهر په صیغه د جمعی بولی۔ فافهم۔

**فَاِنْ قَدَّمَ الْاِحْرَامَ بِالْحَجِّ عَلَيْهَا جَازَ اِحْرَامُهٗ وَانْعَقَدَ حَجُّهٗ**

او کې چیری دغه کړی احرام په حج سره تر عمرې کولو ےوادی احرام د حج ئې او غوټه سو حج (افعال د حج دی وکړی)

**وَاِذَا حَاضَتِ الْمَرْاَةُ عِنْدَ الْاِحْرَامِ اِغْتَسَلَتْ وَاَحْرَمَتْ وَ**

او که چیری حیض ورځې ښځی ته په وخت کې د احرام نو غسل دی وکړی او احرام دی وتړی او ودی کړی

**صَنَعَتْ كَمَا يَصْنَعُ الْحَاجُّ غَيْرَ اَنَّهَا لَا تَطُوْفُ بِالْبَيْتِ حَتّٰى تَطْهُرَ**

هغه افعال چه هغه افعال حاجی کوی مگر طواف په کعبه دی نه کوی تر هغو چه د حیض څخه پاکیږی۔

حاصل دا دئ! چه احرام تړل او تلبیه ویل د جنابت سره منافی نه دئ او غسل چه کوی دا د احرام د پاره دی د پاکئ د پاره نه دئ۔ او منئ ته دی ولاړه سی بیا دی عرفات ته ولاړه سی او ځلی دی وولی مگر طواف چونکه په مسجد کی دئ او دخول د مسجد وحائضې ته منع دئ نو طواف دی نه کوی تر هغو چه پاکیږی او سعی د صفا و مروه دی هم نه کوی۔ ولې چه سعی د دغه طواف غواړی

**وَاِذَا حَاضَتْ بَعْدَ الْوُقُوْفِ بِعَرَفَةٍ وَبَعْدَ طَوَافِ الزِّيَارَةِ انْصَرَفَتْ**

او که ښځه حائضه سوه پس له دریدو څخه د عرفات او پس له طواف زیارت څخه نو ولاړه دی سی

**مِنْ مَكَّةَ وَلَا شَيْءَ عَلَيْهَا لِتَرْكِ طَوَافِ الصَّدْرِ**

د مکې شریفی څخه او هیڅ شی نسته پر دې باندی په سبب د نه کولو د طواف صدر۔ یعنی دم نسته۔ ولې چه آنحضرت صلے اللہ علیه وسلم اجازه کړی ده نفاسی او حائضې ښځی ته په پریښودلو د طواف صدر۔ بخاری۔ مسلم۔ ترمذی۔ نسائی

# بَابُ الْجِنَايَاتِ

باب دی په بیان کی د جنایاتو

إِذَا تَطَيَّبَ الْمُحْرِمُ فَعَلَيْهِ الْكَفَّارَةُ فَإِنْ تَطَيَّبَ عُضْوًا كَامِلًا

که خوشبوئي وکړه محرم نو پر ده باندی کفاره ستهٔ . که خوشبوئي ولګوله پر کامل اندام

فَمَا زَادَ فَعَلَيْهِ دَمٌ

یا پر بالاتر هغه نو پر ده باندی دم لازم دی (پوره اندام لکه سر، ورون، پنډۍ، ذکر، لاس وغیره)

وَإِنْ تَطَيَّبَ أَقَلَّ مِنْ عُضْوٍ فَعَلَيْهِ صَدَقَةٌ وَإِنْ لَبِسَ ثَوْبًا

او که خوشبو یې کړې کم تر اندام نو پر ده صدقه ستهٔ او که واغوسته جامه ګنډلې (لکه قمیص پرتو

مُخِيطًا أَوْ غَطَّى رَأْسَهُ يَوْمًا كَامِلًا فَعَلَيْهِ دَمٌ وَإِنْ كَانَ

کوټ وغیره) او یا ئې سر پټ کړی پوره ورځ نو پر هغه سړي دم لازم دی او که چیرې وو اغوستل

أَقَلَّ مِنْ ذَٰلِكَ فَعَلَيْهِ صَدَقَةٌ وَإِنْ حَلَقَ رُبُعَ رَأْسِهِ

د ګنډلی جامې یا پټول د سر کم تر یوې ورځې نو پر هغه سړي صدقه ستهٔ . او که وخرایه د سر څلورم

فَصَاعِدًا فَعَلَيْهِ دَمٌ وَإِنْ حَلَقَ أَقَلَّ مِنَ الرُّبُعِ

برخه یا بالاتر هغه نو پر هغه سړي دم ستهٔ (که خریل د سر بې عذره وي او که په عذر) او که وخرایه کم

فَعَلَيْهِ صَدَقَةٌ وَإِنْ حَلَقَ مَوْضِعَ الْمَحَاجِمِ مِنَ الرَّقَبَةِ

تر ربع د سر نو پر هغه سړي صدقه ده . او که وخرایه هغه ځای د چیښکو ایښوولو د غاړې .

یعنی د وینو کښلو د پاره ئې د غاړې ځای وخرایه .

فعليه دم عند ابي حنيفة وقال ابو يوسف ومحمد عليه صدقة

نو پر دغه سړي دم دی په نزد د امام اعظم او وائي امام ابو يوسف او محمد پر هغه باندې صدقه ده

وان قص اظافير يديه ورجليه فعليه دم وان قص

او که پرې کړه نوکان د دواړو لاسو او د دواړو پښو نو پر هغه سړي دم لازم دی او که د يوه لاس

يدا او رجلا فعليه دم

يا د يوې پښې نوکان پرې کړه نو پر هغه دم سته (ولې چه غلط محصه دشي د کل پر ځای د يوې ټکه په مسح کې)

وان قص اقل من خمسة اظافير فعليه صدقة

او که پرې کړه کم تر پنځو نوکانو نو پر هغه صدقه سته (يعنې د هر نوک په مقابل کې نيم کاسه غنم سته) او که

وان قص اقل من خمسة اظافير متفرقة من يديه ورجليه فعليه

پرې کړه کم تر پنځو نوکانو جلا جلا د لاسو او پښو څخه نو پر هغه سړي باندې صدقه سته

صدقة عند ابي حنيفة وابي يوسف وقال محمد عليه دم و

په نزد د امام اعظم او امام ابو يوسف او امام محمد وائي چه پر هغه دم لازم دی او که

ان تطيب او حلق او لبس مخيطا من عذر فهو مخير

حاجي خوشبوئي ونکوله او يائې سر وخرئيه او يائې گنډلې جامه واغوستله د ټولو د يو عذر د سببه وه (لکه پر سر چه ئې درد وی يائې تبه وی) پس هغه سړی اختيار لري

ان شاء ذبح شاة وان شاء تصدق على ستة مساكين

که خوښه وي حلال دې کړي پسه او که خوښه وي خيرات دې وکړي پر شپږو مسکينانو

بثلثة اصوع من الطعام وان شاء صام ثلثة ايام

درې کاسې غنم او که اراده کې نو درې روژې دې ونيسي

وَإِنْ قَبَّلَ أَوْ لَمَسَ بِشَهْوَةٍ فَعَلَيْهِ دَمٌ أَنْزَلَ أَوْ لَمْ يُنْزِلْ

او که حاجي ښځه واخسته او یا ئې ښځه مسه کړه په شهوت سره نو پر هغه دم دئ انزال سي او که نه سي.

مسئله: د شهوت اندازه دا ده چه آلت ئې مروړی پوره سي او یا پوره وي مګر ډیر کلک و ډیرېږي صرف خوند دې

وَمَنْ جَامَعَ فِي أَحَدِ السَّبِيلَيْنِ قَبْلَ الْوُقُوفِ بِعَرَفَةَ فَسَدَ

او که حاجي وطي وکړي په یوه کی د دو ولاړو د مخه تر دریدو پر عرفات باندي فاسد سو

حَجُّهُ وَعَلَيْهِ شَاةٌ وَيَمْضِي فِي الْحَجِّ كَمَا يَمْضِي مَنْ

حج د ده او پر ده دم د جنایت سته. او تګ دی وکړي په حج کی (یعني افعال د حج دي پوره کړي) لکه چه تګ کوي هغه

لَمْ يُفْسِدْ حَجَّهُ وَعَلَيْهِ الْقَضَاءُ وَلَيْسَ عَلَيْهِ أَنْ

سړی چه حج ئې نه وي فاسد کړی او پر ده باندي قضا د حج سته (بل کال به قضا راوړي) او نه ده لازم پر ده چه جلا

يُفَارِقَ امْرَأَتَهُ إِذَا حَجَّ بِهَا فِي الْقَضَاءِ عِنْدَنَا

کیږي به د ما ښځي څخه کله ئې حج کاوه په دې سره قضائي حج نه وي په مذهب کی (ولي که هغه پیاد وکه بیا د اسی نکوی)

وَمَنْ جَامَعَ بَعْدَ الْوُقُوفِ بِعَرَفَةَ لَمْ يُفْسِدْ حَجَّهُ وَعَلَيْهِ بَدَنَةٌ

او که حاجي جماع وکړه پس له دریدو پر عرفات نو حج ئې نه دئ فاسد او پر ده باندي لازم دی دا و ښي حلالیدل

وَمَنْ جَامَعَ بَعْدَ الْحَلْقِ قَبْلَ الطَّوَافِ فَعَلَيْهِ شَاةٌ

او که حاجي جماع وکړي پس له خریلو د سر او د مخه تر طواف د زیارت نو پر هغه پسه لازم دئ.

وَمَنْ جَامَعَ فِي الْعُمْرَةِ قَبْلَ أَنْ يَطُوفَ أَرْبَعَةَ أَشْوَاطٍ

او که جاجماع وکړي په عمره کی د مخه تر دې چه څلور شوطه طواف وکړي. نو عمره ئې

أَفْسَدَهَا وَمَضَى فِيهَا وَقَضَاهَا وَعَلَيْهِ شَاةٌ

فاسد کړه او هغه عمره دی پسې پوره کړي او قضا دې سرا وړي او پر ده باندي پسه دی د دې جنایت.

**وَإِنْ وَطِئَ بَعْدَ مَا طَافَ أَرْبَعَةَ أَشْوَاطٍ فَعَلَيْهِ شَاةٌ وَلَا تَفْسُدُ**

اوکه چا وطی وکړی پس له دې چه څلور شوطونه پوره کړه نو پر ده پسه لازم دی او عمره ئې

**عُمْرَتُهُ وَلَا يَلْزَمُهُ قَضَاؤُهَا وَمَنْ جَامَعَ نَاسِيًا كَانَ كَمَنْ جَامَعَ**

نه ده ناسده او قضاء نسته بانډی. اوکه چا جماع وکړه په هیره (چه ئې هیره وه) هغه داسی دی لکه

**عَامِدًا فِي الْحُكْمِ وَمَنْ طَافَ طَوَافَ الْقُدُومِ مُحْدِثًا فَعَلَيْهِ صَدَقَةٌ**

هغه سړی چه په قصد جماع وکړی په احکامو کې اوکه حاجی طواف قدوم وکړی په بې اودسیا نو پر ده صدقه ستة.

مسئله! هرځای چه په بحث کې دجه صدقه مطلق راسی مراد د هغې نیمه کاسه غنم یا پوره کاسه اوربشې دی.

مسئله! په وړو لوکی د ملخ یا کیکی یا سپږی یا پولۍ اندازه وینښتانو پری کولو کې ډیر شی خیرات کول ستة. هرڅه چه وی لږ یا ډیر.

**وَإِنْ كَانَ جُنُبًا فَعَلَيْهِ شَاةٌ وَإِنْ طَافَ طَوَافَ الزِّيَارَةِ**

اوکه طواف قدوم والا جنب وو نو پر ده پسه لازم دی اوکه حاجی طواف زیارت وکړی په بې اودسیا

**مُحْدِثًا فَعَلَيْهِ شَاةٌ وَإِنْ كَانَ جُنُبًا فَعَلَيْهِ بَدَنَةٌ وَالْأَفْضَلُ**

نو پر ده پسه لازم دی اوکې په جنابت وکړی نو پر هغه باندی اوښ دی. او ښه کار دا دی چه

**أَنْ يُعِيدَ الطَّوَافَ مَا دَامَ بِمَكَّةَ وَلَا ذَبْحَ عَلَيْهِ**

طواف دی بیرته را وګرځوی تر هغو چه په مکه شریفه کې وی او بیا نو ذبح نسته پر ده باندی.

**وَمَنْ طَافَ طَوَافَ الصَّدَرِ مُحْدِثًا فَعَلَيْهِ صَدَقَةٌ وَإِنْ كَانَ**

اوکه چا طواف صدر وکړی په بې اودسیا نو پر هغه سړی صدقه ستة. اوکې په جنابت وکړی

**جُنُبًا فَعَلَيْهِ شَاةٌ**

نو پر هغه پسه حلالول لازم دی (تا چه د حدث اصغر او اکبر فرق را اسی)

وَاِنْ تَرَكَ طَوَافَ الزِّيَارَةِ ثَلٰثَةَ اَشْوَاطٍ فَمَا دُوْنَهَا فَعَلَيْهِ شَاةٌ

او که حاجي پرېښودي طواف زيارت درې شوط يا کم تر درې نو پر ده پسه لازم دئ

مسئله: که چيرې حاجي بيرته تول طواف زيارت او کړ خوی په ورځو کې د اختر نو پر ده هيڅ شی نشته او که وروسته تر ورځو د اختر او کړ طواف نو پر ده باندې صدقه شته۔

وَاِنْ تَرَكَ اَرْبَعَةَ اَشْوَاطٍ بَقِيَ مُحْرِمًا اَبَدًا حَتّٰى يَطُوْفَهَا

او که پرېښودل څلور شوط نو دی باقي دئ محرم تر هغو چه طواف زيارت پوره کړي د سره

وَمَنْ تَرَكَ ثَلٰثَةَ اَشْوَاطٍ مِنْ طَوَافِ الصَّدْرِ فَعَلَيْهِ صَدَقَةٌ

او که چا پرېښودل درې شوط د طواف صدر نو پر ده صدقه شته (يعنی د هر شوط د پاره جلا جلا صدقه)

وَاِنْ تَرَكَ طَوَافَ الصَّدْرِ اَوْ اَرْبَعَةَ اَشْوَاطٍ مِنْهَا فَعَلَيْهِ شَاةٌ

او که حاجي پرېښودی پوره طواف صدر يا څلور شوط د هغه نو پر هغه باندې پسه لازم دئ۔

يوه مسئله! چه د غه حاجي کړ د غه طواف صدر او کړ خوی څو چه په مکه شريفه کې وي نو پر ده شی نشته او لازم د ده چه را او ي کړ خوی۔ چه دا طواف واجب دئ او وخت ئې باقي دی۔

وَمَنْ تَرَكَ السَّعْيَ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ فَعَلَيْهِ شَاةٌ وَحَجُّهُ تَامٌّ

او که حاجي پرېښودی سعی د صفا و مروه په مابين کې نو پر ده پسه لازم دئ او حج ئې پوره دئ (ولې چه سعی نه هو بلکه واجب ده او امام شافعي ئې فرض بولي)

وَمَنْ اَفَاضَ مِنْ عَرَفَاتٍ قَبْلَ الْاِمَامِ فَعَلَيْهِ دَمٌ

او که څوک راکښته سي د عرفات څخه تر امام د مخه نو پر ده پسه لازم دئ۔

وَمَنْ تَرَكَ الْوُقُوْفَ بِمُزْدَلِفَةَ فَعَلَيْهِ دَمٌ وَمَنْ

او که چا پرېښودی درېدل پر مزدلفه باندې نو پر هغه پسه لازم دئ۔ او که چا

تَرَكَ رَمْيَ الْجِمَارِ فِي الْاَيَّامِ كُلِّهَا فَعَلَيْهِ دَمٌ

پرېښودل ويشتل د شګلو په ټولو ورځو کې نو پر هغه باندې دم لازم دئ۔

ولی کہ ټول جنایات ډیر دی خو بیا هم تداخل کوي تکہ په کفاره کی د ډیرو قسمو چه حانث سوی وي۔

## وَإِنْ تَرَكَ رَمْيَ إِحْدَى الْجِمَارِ الثَّلٰثِ فَعَلَيْهِ صَدَقَةٌ

او کہ پریښودل ویشتل د یوه ځلی د درو ځلو څخه نو هغه سړی باندی صدقه ده۔

داپه دی سبب چه ویشتل د درو سره ځلو په یوه ورځ کی یو عبادت دی

## وَإِنْ تَرَكَ رَمْيَ جَمْرَةِ الْعَقَبَةِ فِيْ يَوْمِ النَّحْرِ فَعَلَيْهِ دَمٌ

او کہ پریښودل ویشتل جمرهٔ عقبه په ورځ د اختر کی نو په هغه سړي پسه لازم دی۔ ولی د دي ورځی وظیفه دا یو ځلی ویشتل دی۔

## وَمَنْ أَخَّرَ الْحَلْقَ حَتّٰى مَضَتْ أَيَّامُ النَّحْرِ فَعَلَيْهِ دَمٌ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ

او کہ چا وخنډول خریل د سر تر هغو چه تیری سوې ورځی د اختر نو په هغه سړي پسه لازم دی په نزد د امام صاحب

## وَكَذٰلِكَ إِنْ أَخَّرَ طَوَافَ الزِّيَارَةِ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ

او د غه رنګ پسه لازم دی کې وخنډاوه طواف تر ورځو د اختر او دا هم په نزد د امام صاحب او یاران وائی چه په دوارو کی هیڅ شی نسته۔

## وَإِذَا قَتَلَ الْمُحْرِمُ صَيْدًا أَوْ دَلَّ عَلَيْهِ مَنْ قَتَلَهُ فَعَلَيْهِ

او کړ وواژه محرم سړي د ښکار حیوان او یا ئې ښودنه وکړه د ښکار په حیوان هغه چا ته چه هغه مړ کړی نو په هغه

## الْجَزَاءُ سَوَاءٌ فِيْ ذٰلِكَ الْعَامِدُ وَالنَّاسِيْ وَالْمُبْتَدِيْ

ښوونکی یا قاتل باندی جزاء لازمه ده او برابر دی په دې جزاء کی قصد والا او هیری والا او د غه رنګه خطاء والا

## وَالْعَائِدُ وَالْجَزَاءُ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَأَبِيْ يُوْسُفَ

او اول ښکار کوونکی یا وروسته ښکار کوونکی۔ او جزاء د ښکار په نزد د شیخینو.

## أَنْ يُقَوِّمَ الصَّيْدَ فِي الْمَكَانِ الَّذِيْ قَتَلَهُ أَوْ فِيْ

دا دا چه قیمت دې کړي ښکار په هغه ځای کې چه سړي وژلی دی (یعنې د ښکار وژلي قیمت د هغه ځای عرف ښو)

## أَقْرَبِ الْمَوَاضِعِ مِنْهُ إِنْ كَانَ قَتَلَهُ فِيْ بَرِّيَّةٍ

او یا دې قیمت کړي په هغه نږدې ځای کې و ځای ته د قتل کې چیرې وژلی وو ښکار په صحرا کې (چه هلته خلک

## يُقَوِّمُهُ ذَوَا عَدْلٍ ثُمَّ هُوَ مُخَيَّرٌ فِي الْقِيْمَةِ إِنْ شَاءَ

نه وي کاچه قیمت نه کړي) قیمت دې کړي هغه ښکار دوه کسه چه د عدل کسان وي بیا نو حاجي اختیار لري په قیمت کې

## اِبْتَاعَ بِهَا هَدْيًا فَذَبَحَهُ إِنْ بَلَغَتْ قِيْمَتُهُ هَدْيًا

که یې خوښه وه رادې نیسي په هغه روپو هدیه (یعنې پسه یا بوزه وغیره) او هدیه دې حلال کړي دا هلته که چیرې رسیدې قیمت د هغه ښکار و هدیه ته۔

مسئله! هدیه هغه حیوان بولي چه په اضحیه کې روا وي یعنې د یوه کال سیرلی یا تر شپږو میاشتو پیر پسه۔

مسئله! دا حیوان چه حلالوي حتماً به په حرم کې وي بل ځای کې حلالیدل روا نه دي۔ او اطعام په غیر کې د حرم هم روا دی او وژله په غیر کې د مکې شریفې هم روا دی۔ كذا في الجوهرة۔

## وَإِنْ شَاءَ اشْتَرَى بِهَا طَعَامًا فَتَصَدَّقَ بِهِ عَلَى كُلِّ مِسْكِيْنٍ

او که خوښه وي رادې نیسي په هغه روپو طعام یعنې غنم یا اوربشې بیا دې خیرات کړي

## نِصْفَ صَاعٍ مِنْ بُرٍّ أَوْ صَاعًا مِنْ شَعِيْرٍ وَإِنْ شَاءَ صَامَ عَنْ كُلِّ

و هر مسکین ته نیمه کاسه د غنمو یا یوه کاسه د اوربشو۔ او که خوښه وي روژه دې و نیسي

## نِصْفِ صَاعٍ مِنْ بُرٍّ يَوْمًا وَعَنْ كُلِّ صَاعٍ مِنْ شَعِيْرٍ يَوْمًا

په مقابل کې د هرې نیمې کاسې د غنمو یوه ورځ او د هرې کاسې د اوربشو هم یوه ورځ۔

فَإِنْ فَضَلَ مِنَ الطَّعَامِ أَقَلُّ مِنْ نِصْفِ صَاعٍ فَهُوَ مُخَيَّرٌ إِنْ

او که بالا سوه د غنمو څخه کم تر نیم کاسه نو د حاجی اختیار دی که ئی خوښه وی

شَاءَ تَصَدَّقَ بِهِ وَإِنْ شَاءَ صَامَ عَنْهُ يَوْمًا كَامِلًا

هغه لږ غنم دی خیرات کړی او کې خوښه وی د هغه په ځای کې یو پوره ورځ روژه ونیسی

د لیل ئې دا دی چه تر یو ورځی کمه روژه په شرع کې نشته ۔

وَقَالَ مُحَمَّدٌ يَجِبُ فِي الصَّيْدِ النَّظِيرُ فِيمَا لَهُ نَظِيرٌ

او ویلی دی امام محمدؒ چه واجب دی په ښکار کې مثل د هغه کوم چیری مثل ددی لودی ۔ چه تفصیل ئې دا دی

فَفِي الظَّبْيِ شَاةٌ وَفِي الضَّبُعِ شَاةٌ وَفِي الْأَرْنَبِ عَنَاقٌ

نو په هوسی کې پسه لازم دی (یعنی د هوسی مثل صورة پسه دی) او د کاږه په ښکار کې پسه دی او د سوی په ښکار

وَفِي النَّعَامَةِ بُدْنَةٌ وَفِي الْيَرْبُوعِ جَفْرَةٌ

کې سیرلی دی ۔ او د شترمرغ په ښکار کې اوښ لازم دی او په دښتی موږک (خاني یا موږه) کې کوچنی سیرلی دی

پوره سال ۔ ! چه عناق د شیږو میاشتو ښځې سیرلی ته وائی او جفره د څلورو میاشتو سیرلی ته وائی ۔

وَمَنْ جَرَحَ صَيْدًا أَوْ نَتَفَ شَعْرَهُ أَوْ قَطَعَ عُضْوًا

او که چا ټپی کړی ښکار او یائی ویښتان یا بڼې ځنی وکښې او یائی یو اندام ځنی پرې کړی

مِنْهُ ضَمِنَ مَا نَقَصَ مِنْ قِيمَتِهِ

د هغه څخه ضامن دی هغه سړی د هغه قدر چه نقصان رسیدلی وی د هغه صید و قیمت ته ۔

یعنی یو وار دی روغ او جوړ قیمت کړی او بیا دی ټپی یا ویښتان کښلی یا اندام قطعه سوی قیمت کړی هر څه چه فرق وی نو هغه قدر لازم دی ۔

مسئلهٔ ! دا حکم هلته دی چه هغه ښکار د هغه ټپه څخه مړ نه سی او که مړ سو بیا پوره قیمت لازم دی ۔

مسئلهٔ ! دا تاوان هلته لازم دی چه د ټپ تاثیر پاته وی او که هغه ټپ جوړ سو او د ټپ

تا ثیرئ نه سو یا ته بیا هیڅ شی نه لازمیږی۔

مسئله! کہ ښکار د ښوپه شکولو سره یا د اندام په پرې کولو سره ځان د چا څخه نه سوای ساتلای بیا د پوره ښکار قیمت لازم دی۔

مسئله! ویښتان کہ بیرته شنه سوه پرخپل حال ودرېدہ بیا هیڅ شی لازم نسته۔

## وَاِنْ نَتَفَ رِيشَ طَائِرٍ اَوْ قَطَعَ قَوَائِمَ صَيْدٍ فَخَرَجَ بِهٖ

اوکې وکښې بڼې د مرغه او یائې پښې کړې پرې د ښکار نو هغه مرغه یا ښکار و واتۍ په دغه

## مِنْ حَيِّزِ الْاِمْتِنَاعِ فَعَلَيْهِ قِيمَتُهٗ كَامِلَةً

کار سره د ځانی د امتناع (یعنی په داسی حال کی سو چه د چا څخه ئې ځان نه سوائ منع کولای یا په الوتو یا په ځغاسته) نو پر هغه سړی لازم دی پوره قیمت د هغه ښکار (ولی چه دغه فعل چه ده وکړئ د ښکار هلاک دئ حکمًا)

## وَمَنْ كَسَرَ بَيْضَ صَيْدٍ فَعَلَيْهِ قِيمَتُهٗ

او که چا مات کړه هګی د مرغه نو پر هغه قیمت د هګی لازم دئ۔

مسئله! که چا د مرغه هګی پخه کړه هم قیمت د هګی لازم دی ولی د پخی هګی څخه چیچی نه پیداکیږی جوړ

## فَاِنْ خَرَجَ مِنَ الْبَيْضَةِ فَرْخٌ مَيِّتٌ فَعَلَيْهِ قِيمَتُهٗ حَيًّا

که چیری د هګی د ماتولو سره مړ چیچی پیدا سو نو پر هغه باندی قیمت د هغه ژوندی دئ.

ولی چه احتمال ستہ چه هغه چیچی دی ژوندی وی او د ده په ماتولو به مړ سوئ وی۔ کوکب ص۴۵

## وَلَيْسَ فِي قَتْلِ الْغُرَابِ وَالْحِدَاءَةِ وَالذِّئْبِ وَالْحَيَّةِ

او نسته په وژلو کی د کارګه۔ د ټپوس۔ د لیوه۔ د مار او د لړم۔

## وَالْعَقْرَبِ وَالْفَارَةِ وَالْكَلْبِ الْعَقُورِ جَزَاءٌ

او د اغه رنګه په وژلو کی د موږک او لیونی سپی یا د خلکو داړونکی سپی هیڅ جزاء۔

پوهه سه! چه مراد د غراب څخه هغه کارګه دی چه مردارې خوری او په قتل

کې د کارکه د کبنت جزاء لازمه ده - کوکب دري ۔

مسئله! په حکم کې د تپوس ده باښه - او په حکم کې د مار ده لندې - او په حکم کې د لړم دې غنډک او په حکم د موږک دې منږه -

## وَلَيْسَ فِي قَتْلِ الْبَعُوضِ وَالْبَرَاغِيثِ وَالْقُرَادِ وَالنَّمْلِ شَيْءٌ

او نشته په وژلو کې د غوماشې او کیکې او منګوړ او میږې هیڅ شی -

ولې چه دا شیان ښکار نه بلل کیږي او نه دانسان د بدن نه پیدا کیږي - او بل داچه دغه شیان طبعًا موذیان دي نو ځکه په قتل کې شی نشته

یوه مسئله! چه مراد د میږي څخه توره ان اوږه میږیان دي چه موذیان وي -
او که میږی موذي نه وي نو قتل ئې نه دئ ښه اګرکه جزاء په قتل کې نشته -

مسئله! حبشیان میږیان که د چاپه کور کې ښار وو او د کور انسانانو ځنې په عذاب وه د هغو قتل په یو دارو وغیره روا دی - او که سړی ځنې بیریدی لکه بعضې عوام نو دا آیة دی نوشته کړی په او بو دې په ټمنځی دري وروځې دی هغه او بره پر غارکی وره تونی کړي - آیة دادئ "يَاأَيُّهَا النَّمْلُ ادْخُلُوا مَسَاكِنَكُمْ لَا يَحْطِمَنَّكُمْ سُلَيْمَانُ وَجُنُودُهُ"

## وَمَنْ قَتَلَ قَمْلَةً تَصَدَّقَ بِمَا شَاءَ

او که چا مړه کړه سپږه خیرات دې کړي هغه شی چه خوښه ئې سی -

یعنې یوه لپه غنم یا اوربشې وغیره یا یوه کوله ډوډی - لکن دا جزاء هلته ده چه هغه سپږه د کالو یا بدن څخه راخلی او مړه ئې کړي او که پر ځمکه پړته وه مړه ئې کړه بیا هیڅ جزاء نه لري - کذافي الجوهرة و الکوکب الدري -

سوال! د کیکې او د سپږې څه فرق دی چه په سپږه کې جزا سته او په کیکه کې نشته -

جواب! اول خو د کیکې ازار او ضرر ډیر دی تر سپږې لکه تجربه چه په دې سره شاهدي اداء کوي - دوهم سپږه د بدن دانسان څخه پیدا کیږي لکه د طبو په کتابو کې وائي چه یو سړی چه د بدن او کالو صفائي نه کوي نو ځینې په کوچنی سر یو کې ډیره زمانه بنده پاته سی - او د هغه خیرې څخه خدای پاک سپږه پیدا کوي او دا وجه ده چه مترفه او صفائي والا نو او بنځه سپږه نه کوي - او کیکه د حشرا تو څخه ده چه د خاورو څخه پیدا کیږي عموما -

## وَمَنْ قَتَلَ جَرَادَةً تَصَدَّقَ بِمَا شَاءَ وَتَمْرَةٌ خَيْرٌ مِنْ جَرَادَةٍ

او که محرم مړکړي ملخ خیرات دې وکړي یو څه شی او یوه دانه خرما تر ملخ ښه ده دا د حدیث شریف لفظ دی

سوال! د امام ابو حنیفه رحمه الله روایت دی چه ملخ د صید البحر د قسمه دی نو باید جزاء ونه لري لکه صید البحر ماهي وغیره چه جزاء نه لري.

جواب! مشاهده شاهده ده چه ملخ د صید البحر قسمه نه دی او مراد په روایت کې د امام اعظم دا دی چه د ملخ حکم د صید البحر دی چه خوړل ئې بیله ذبحې روا دی. کذا في الکوکب الدري والجوهرة والکفایة.

## وَمَنْ قَتَلَ مَا لَا يُؤْكَلُ لَحْمُهُ مِنَ السِّبَاعِ وَنَحْوِهَا فَعَلَيْهِ

او که محرم قتل کړي هغه شی چه نه خوړل کیږي غوښې د هغه د درندګانو نو په ده لازم ده

## الْجَزَاءُ وَلَا يَتَجَاوَزُ بِقِيمَتِهَا شَاةً

ده جزاء (قیمت د هغه درنده) او نه دې بالا کوي قیمت د هغه تر یوه پسه.

فائده! مراد د قدوري د درندګانو نه د محشکي درندګان دي لکه مځري. پړانګ - ایڼ - وغیره. او مراد د نحوها نه د هوا درندګان دي لکه باز خرخک وغیرهما.

## وَلَوْ صَالَ السَّبُعُ عَلَى الْمُحْرِمِ فَقَتَلَهُ فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ

او که حمله وکړه یوه درنده په محرم باندي نو ده مړکړي هغه درنده هیڅ جزاء نشته په محرم باندي دلیل ئې دا دی چه محرم د تعرض نه ممنوع او دفع ئې دا مانه ده وه اده.

## وَإِنِ اضْطُرَّ الْمُحْرِمُ إِلَى أَكْلِ لَحْمِ الصَّيْدِ فَقَتَلَهُ فَعَلَيْهِ الْجَزَاءُ وَلَا بَأْسَ

او که مجبوره سو محرم و خوړلو ته د غوښو د ښکار نو ئې ښکار مړکړي نو په ده ئې جزاء سته.

## بِأَنْ يَذْبَحَ الْمُحْرِمُ الشَّاةَ وَالْبَقَرَةَ وَالْبَعِيرَ وَالدَّجَاجَ وَالْبَطَّ الْكَسْكَرِيَّ

او پروا نشته چه ذبح کړي محرم پسه یا غوا یا اوښ یا چرګه یا کسکري ایلی.

یوه سهو! چه کسکری هغه غټه ایلی ده چه الوتای نه سی. لکه کورنی ایلی.

منسوب دئ وکسکره چه یوه ناحیه د بغداد ده - یوه هغه ایلی ده چه الوزی چه امن
وي نو وانی هغه ښکار دی په وښ لوکي جزاء لازم ده

**وَإِنْ قَتَلَ حَمَامًا مُسَرْوَلًا أَوْ ظَبْيًا مُسْتَأْنَسًا فَعَلَيْهِ الْجَزَاءُ**

او که قتل کړه محرم کوتره چه په پښو ئي ښکی وي (یعني خانګی کوتره) یا ئې مړه کړه هوسۍ چه د کوره سره ئې الفت وي نو په ده جزا لازمه ده
دلیل دا دئ چه دا په اصلي خلقت کښې وحشي دي نو ښکار دئ که څه هم اوس په کور کښې ګذاره کوي -

**وَإِنْ ذَبَحَ الْمُحْرِمُ صَيْدًا فَذَبِيحَتُهُ مَيْتَةٌ لَا يَحِلُّ أَكْلُهَا**

او که حلال کړي محرم ښکار نو دغه ذبیحه مرداره ده هیڅ چا ته ئي خوړل نه دي روا

**وَلَا بَأْسَ بِأَنْ يَأْكُلَ الْمُحْرِمُ لَحْمَ صَيْدٍ اِصْطَادَهُ حَلَالٌ وَذَبَحَهُ**

او پروا نشته چه وخوري محرم غوښې د ښکار چه ښکار کړی وی حلال سړي او هغه حلال

**إِذَا لَمْ يَدُلَّهُ الْمُحْرِمُ عَلَيْهِ وَلَا يَأْمُرْهُ بِصَيْدِهِ**

سړي ذبح کړی وی - چه ښود نه وی کړي محرم په هغه ښکار او نه ئې امر کړي هغه حلال سړي ته په ښکار ولو د هغه

**وَإِنْ قَطَعَ حَشِيشَ الْحَرَمِ أَوْ شَجَرَهُ الَّذِي لَيْسَ بِمَمْلُوكٍ**

او که چا پرې کړه واښه د حرم او یا ئې ویستل درخته د حرم د ځمکې هغه درخته چه د چا په ملک کښې نه وه

**وَلَا هُوَ مِمَّا يُنْبِتُهُ النَّاسُ فَعَلَيْهِ قِيمَتُهُ**

او نه داسې درخته وه چه خلک ئې شنه کوي نو په هغه سړي لازم دي قیمت د هغه واښه
یا درختې - العطف بکلمة او یفرد فیه الضمیر -

مسئله! که واښه یا درخته وچ سوله بیا په قطع کښې ضمان نشته -

یوه مسئله! چه د وښو څخه هغه واښه مراد دی چه خدائی راشنه کیږی نو که چا
شپیشتی یا شوتل وغیره کرلی وه د هغه قطع پروا نه لري - مصنف وویل " لیس بمملوک "
د دې د پاره که درخته د چا په مملوکه ځمکه کښې شنه سوه هغه درخته د هغه سړي ملک ده -
قطع ئې پروا نه لري - او د غیره نکه مصنف وویل " ولا هو آه " د دې د پاره که هغه درخته خلکو

شنه کول په ریبلو یا په کبنلو کې ضمان نشته ـ لکه د انګور و تاک یا د انار او نور د الو
د ر حتو وغیره د هغې په قطع کې ضمان نشته ـ

**وَكُلُّ شَيْءٍ فَعَلَهُ الْقَارِنُ مِمَّا ذَكَرْنَا أَنَّ فِيهِ عَلَى الْمُفْرِدِ دَمًا فَعَلَيْهِ**

او هر هغه جنایت چه فعل ئې وکړي قارن (یعنې چه د حج او د عمرې د دواړو احرام ئې د میقات نه
تړلې وي) هغه جنایت چه موږ ووئیل چه په هغه کې پر مفرد حج والا یو دم دې نو په هغه جنایت

**دَمَانِ دَمٌ لِحَجَّتِهِ وَدَمٌ لِعُمْرَتِهِ إِلَّا أَنْ يَتَجَاوَزَ الْمِيقَاتَ مِنْ غَيْرِ**

کې پر قارن دوه دمه کیږي یو دم د حج د پاره او بل د عمرې د پاره مګر کله چه تیر سي
تر میقات ځائ (یعنې د احرام تړلو ترځائ) بیله احرامه ـ بیا احرام وتړي

**إِحْرَامٍ ثُمَّ يُحْرِمُ بِالْعُمْرَةِ وَالْحَجِّ فَيَلْزَمُهُ دَمٌ وَاحِدٌ**

په عمره او حج سره نو پر هغه سړي لازم دئ یو دم ـ

دلیل ئې دا دئ چه تر میقات تیریدل بې احرامه خو جنایت دئ مګر په هغه وخت کې
خو دی قارن نه وو بلکه دی وروسته قارن سو نو جنایت یو دئ ـ

**وَإِذَا اشْتَرَكَ مُحْرِمَانِ فِي قَتْلِ صَيْدِ الْحَرَمِ فَعَلَى كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا الْجَزَاءُ كَامِلًا**

او که سره شریکان سوه دوه محرمان په وژلو کې د ښکار د حرم نو پر هر یوه یوه ضمان دئ کامل د یوه

**وَإِذَا اشْتَرَكَ حَلَالَانِ فِي قَتْلِ صَيْدِ الْحَرَمِ فَعَلَيْهِمَا جَزَاءٌ وَاحِدٌ**

او که سره شریکان سوه دوه حلال کسان په قتل کې د ښکار د حرم نو پر د واړو یوه جزاء ده ـ
فرق ئې دا دئ چه محرمان د فعله د ښکار منعه دی او د وئ خو د وه فعله وکړه نو د وي جزاوې
پر کیږي او پر حلال سړي جزاء د فعل نشته ـ جزاء د محل پر سته چه ښکار دئ او هغه یو دئ ـ

**وَإِذَا بَاعَ الْمُحْرِمُ صَيْدًا أَوِ ابْتَاعَهُ فَالْبَيْعُ بَاطِلٌ**

او که چیري خرڅ کړئ محرم ښکار او یائې رانیوئ نو بیع باطله ده او پر بائع او مشتري کامله جزاء سته که محرمان وه د وا
مسئله :- کې ښکار وکړئ د ئ محرم وو او خرڅ ئې کړي او د ی حلال وو نو بیع روا ده ـ کذا فی الجوهرة ـ

# بَابُ الْاِحْصَارِ

باب دی په بیان کی د احکامو د احصار

پوه سه! چه احصار په لغت کی منع ته وائی او په فقه شریف کی احصار منع کول د محرم دی یا په حج او یا په عمره لکن په حج کی د وقوف د عرفات او د طواف زیارت څخه په شرعی عذر لکه دښمن یا مرض او که په یوه د وقوف یا طواف قادر وو او په بل باندی نه وو قادر هغه حاجی محصر نه دی ۔ کذا فی العینی شرح الکنز ۔

إِذَا أُحْصِرَ الْمُحْرِمُ بِعَدُوٍّ أَوْ أَصَابَهُ مَرَضٌ يَمْنَعُهُ مِنَ

او که منع کړه سو محرم په سبب د دښمن او یا ورسیدهٔ ته ناجوړی چه منع ئې کړی د اداء کولو څخه

الْمُضِيِّ جَازَ لَهُ التَّحَلُّلُ وَقِيلَ لَهُ ابْعَثْ شَاةً تُذْبَحُ

دافعالو د حج روا دی ده ته ځان حلالول ۔ او ودی ویل سی ده ته چه واستوه پسه چه ذبح کړه سی

فِي الْحَرَمِ وَوَاعِدْ مَنْ يَحْمِلُهَا يَوْمًا بِعَيْنِهِ يَذْبَحُهَا فِيهِ ثُمَّ يَتَحَلَّلُ

په حرم کی او وعده دی وکړی د هغه چا سره چه پسه بیائی ورځ معینه چه په هغه ورځ به هغه سړی دا پسه حلالوی ۔ بیا دی ور وسته دی ځان حلال کړی ۔

مسئله: روا ده چه قیمت د پسه ذی یو چا په لاس ور کړی چه هغه هوری پسه پیر انیسی او په حرم کی ئې حلال کړی ۔ لکن د مخه تر ذبحی د پسه محرم ته حلالول د ځان روا نه دی ۔

مسئله: معتبر په دې باب کی غالب گمان د محصر دی یعنی چه اوس به نو هغه سړی پسه ذبحه کړې وی ۔

مسئله: معینول د ورځی پر مذهب د امام اعظمؒ دی ولی چه امام اعظمؒ د دم الاحصار د پاره د اختر ورځ لازمه نه بولی او یاران وائی چه ضرور به ئې په ورځ د لوی اختر حلالوی نو معینول لوته ضرورت نسته ۔

## فَإِنْ كَانَ قَارِنًا بَعَثَ دَمَيْنِ

که څه سړی د حج او عمرې دواړو احرام تړلی وو نو دوه پسونه به استوي. تاچې د دواړو احرامو څخه خلاص سي.

مسئله: معینه کول د ضرورت نشته چه دا پسه د حج دی او دا د عمرې دی.

مسئله: که قارن یو پسه واستاوه د حج د احرام د خلاصید د پاره او داره وبل چه د عمرې احرام دی پاته وي په د غه پسه د یوه احرام څخه نه سي حلال سیدای. ولې چه د قارن خلاصیدل د دواړو احرامو څخه سره یو ځای دی نو دی تغییر د حکمت د شرعي نه سي ورکولای. کذا في الکوکب الدري والجوهرة.

## وَلَا يَجُوْزُ ذَبْحُ دَمِ الْإِحْصَارِ إِلَّا فِي الْحَرَمِ وَيَجُوْزُ

او نه دی روا حلالول د پسه د احصار مګر په حرم کی. او روا دی ذبح کول

## ذَبْحُهُ قَبْلَ يَوْمِ النَّحْرِ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رح

د دم د احصار د غه تر ورځې د اختر په نزد د امام اعظم رح.

مسئله: او ورسته تر ورځې د اختر هم روا دی په نزد د امام اعظم رحمة الله علیه

## وَقَالَا لَا يَجُوْزُ لِلْمُحْصَرِ بِالْحَجِّ الذَّبْحُ إِلَّا فِيْ يَوْمِ

او یاران وایي چه نه دی روا محصر لره د حج ذبح د پسه مګر په ورځ د لوی

## النَّحْرِ وَيَجُوْزُ لِلْمُحْصَرِ بِالْعُمْرَةِ أَنْ يَذْبَحَ مَتٰى شَاءَ

اختر کې. او روا دی محصر د عمرې چه ذبح کړي پسه هر وخت چه یې خوښه سي (دا

## وَالْمُحْصَرُ بِالْحَجِّ إِذَا تَحَلَّلَ فَعَلَيْهِ حَجَّةٌ وَعُمْرَةٌ

په اتفاق دی) او محصر د حج (یعنی یواځې حج) چه ځان یې حلال کړی وي نو پر ده لازم دی یو حج او یوه عمره.

د غسې روایت دی د عبدالله بن عباس رض او عبدالله بن عمر رض څخه.

حج په دې سبب چه په حج حوڅ شروع وکړه په احرام تړلو سره نو حج ئې قضا ئې دی او عمره په دې سبب لازمه ده چه دی په معنی کې د فائت الحج دی او فائت الحج خو په افعالو د عمرې څخه ځان حلالوی. لکه په دې وروستنه باب کې به راسي.

**وَعَلَى الْمُحْصِرِ بِالْعُمْرَةِ الْقَضَاءُ وَعَلَى الْقَارِنِ حَجَّةٌ وَعُمْرَتَانِ**

او پر محصر د عمرې څخه یوازی قضا د عمرې ستہ او پر قارن چه محصر سی یو حج او دوې عمرې کیږي یو حج او یوه عمره خو د احرام د دواړو تړلې دی. او بله عمره چه په وروستہ باب کې به راسي.

**وَإِذَا بَعَثَ الْمُحْصِرُ هَدْيًا وَوَاعَدَهُمْ أَنْ يَذْبَحُوهُ**

او که واستول محصر هدیه او وعده ئې وکړه د هغو سره چه تاسی به دا هدیه

**فِي يَوْمٍ بِعَيْنِهِ ثُمَّ زَالَ الْإِحْصَارُ فَإِنْ قَدَرَ عَلَى**

ذبح کړئ په فلانی معینه ورځ کې او وروستہ زائل سو احصار نو که قادر وو پر

**إِدْرَاكِ الْهَدْيِ وَالْحَجِّ لَمْ يَجُزْ لَهُ التَّحَلُّلُ وَلَزِمَهُ الْمُضِيُّ**

نیولو د هدیې (یعنی د هغه تر ذبح) او پر حج هم قادر وو نو نه دی روا ده ته ځان حلالول بلکه لازمه ده چه د حج په افعالو کې دی تګ وکړي (یعنی حج دی پوره کړي)

**وَإِنْ قَدَرَ عَلَى إِدْرَاكِ الْهَدْيِ دُونَ الْحَجِّ تَحَلَّلَ**

او که قادر وو پر ادراک د هدیې نه د حج نو ځان دی حلال کړي.

یعنی په ذبح کولو د هدیې. ولې چه دا اصل څخه عاجزه دی. چه هغه حج دی.

**وَإِنْ قَدَرَ عَلَى إِدْرَاكِ الْحَجِّ دُونَ الْهَدْيِ جَازَ لَهُ التَّحَلُّلُ اسْتِحْسَانًا**

او که قادر وو پر ادراک د حج (یعنی پر کولو د حج) نه پر هدیه روا دی ده ته ځان حلالول د استحسان دلاری.

ولې چه هدیه ذبح کیدل خلاصونکي د احرام دی. او قیاس وانی ده ته احرام خلاصول نه دی روا. ولې چه په اصل حج دی قادر سو نو حج دی پوره کړي.

## وَمَنْ اُحْصِرَ بِمَكَّةَ وَهُوَ مَمْنُوْعٌ عَنِ الْوُقُوْفِ

اوکه څوک حاجي بند کړه سوه مکې په بنا رکی او دی منع کړه سوه د وقوف څخه د

## وَالطَّوَافِ الزِّيَارَتِ كَانَ مُحْصِرًا وَإِنْ قَدَرَ

عرفات او د طواف زیارت څخه نو دی محصر دی (نو د محصر احکام دی پر جاری کړي) او که قادر وو

## عَلَى إِدْرَاكِ أَحَدِهِمَا فَلَيْسَ بِمُحْصِرٍ

پر ادراک یعنی پر کولو دیوه د دغو دو وچه وقوف او طواف دی نو محصر نه دی.

دلیل - که پر وقوف د عرفات قادر وی پر طواف زیارت نه وی قادر نو حج ئی پوره سو. لقوله علیه الصلاة والسلام «اَلْحَجُّ عَرَفَةٌ» طواف زیارت اگر که رکن د حج دی لکن هر وخت چه ادا کړل سي صحیح دی یعنی معین وخت نه لري.

او که پر طواف قادر وی او پر عرفات نه وی قادر. نو ده ته څخه حج فوت سو د فائت الحج حکم دا دی چه په طواف سره د احرام څخه خلاصیږي. او هدیه بدل د طواف ده نو هدیې ته ضرورت نشته. هدایه - کوکب دري.

مسئله! محصر د هغه سړي سره چه دم الاحصار ئی وهغه ته ورکړي وو او ورځ ئی ورته معین کړې وي. د محصر د ظن و وچه هغه به نو او س نه ما دم ذبح کړی وی نو محصر د محظوراتو څخه د احرام یو کار وکړي مثلاً سر ئی وخرایه یا ئی جامې واغوستې او بیا ورته ښکاره سوه چه هغه نه ما پسرئیه مقرر وخت کی هغه نه و حلال کړی نو پر دی محصر لازمه ده چه واجب د جنایت به اداء کوی. فتح القدير.

مسئله! اگر چه په قدوري کی لفظ د شاة راغلی دی لکن د تحلیل د پاره بقرة او بدنه هم کافی ده. د شاة ذکر د دې د پاره دی چه شاة ادنی او کم هغه حیوان دی چه تحلل په کیږي. هدایه ص۲۷۳

# بَابُ الْفَوَاتِ

باب دئ په بیان کی د فوت والی د حج

سوال! د لمانځه په بحث کی باب الفوائت په صیغه د جمعی دئ او دلته په حج کی فوات مفرد لفظ راوړی۔

جواب! لمونځونه خو ډیر دی او حج په کرده عمر کی یو وار واجب دئ۔

**وَمَنْ اَحْرَمَ بِالْحَجِّ فَفَاتَهُ الْوُقُوْفُ بِالْعَرَفَةِ**

کرچا احرام وتاړه په حج سره او د ده څخه پاتې سو درېدل پر عرفات

**حَتّٰى طَلَعَ الْفَجْرُ مِنْ يَوْمِ النَّحْرِ فَقَدْ فَاتَهُ الْحَجُّ**

ترڅو چه راوختلی سپیدی د ورځی د اختر نو د ده څخه فوت سو حج۔

پوښتنه! چه د عرفات نه درېدل په سبب د عذر شرعی لکه مرض۔ بندی کېدل د دښمن نه وو بلکه یا بیده وو یا د عرفات لاره ځنی ورکه سوه۔ یا نه راورسیدئ۔ په دې سره د احصار او فوات فرق وسو۔ کما لا یخفی علی المتأمل فافهم۔

**وَعَلَيْهِ اَنْ يَّطُوْفَ وَيَسْعٰى**

نو پر د غه سړی لازمه ده چه طواف د ی پر کعبه شریفه وکړی او سعی دی

**وَيَتَحَلَّلَ وَيَقْضِي الْحَجَّ مِنْ قَابِلٍ وَّلَا دَمَ عَلَيْهِ**

په مابین کی د صفا او مروه وکړی او ځان دی د احرام څخه خلاص کړی (چه دا نو عمره سوه او په عمره د حج د احرام څخه خلاص سو) او قضا د حج دی راوړی په راتلونکی کال کی۔ او دم ښسته پر ده۔ (ولی چه جنایت ئی نه دئ کړی۔)

پوره سبقه! چه افعال د عمرې په حق کې د فائت الحج تکه دم په حق کې د محصر کماس - نو دواړه نه سره جمع کیږي.

## وَالْعُمْرَةُ لَاتَفُوْتُ وَهِيَ جَائِزَةٌ فِي جَمِيْعِ السَّنَةِ

او عمره نه فو تیږي. او عمره روا ده په ټوله کال کې (او د اهم په اجماع د

## إِلَّا خَمْسَةَ أَيَّامٍ يُكْرَهُ فِعْلُهَا فِيْهَا يَوْمُ

امت مرحومه) مګر پنځه ورځې چه مکروه دی فعل د عمرې په هغو کې

## عَرَفَةَ وَيَوْمُ النَّحْرِ وَأَيَّامُ التَّشْرِيْقِ

د عرفات ورځ د لوئ اختر ورځ او درې ورځې د ایام تشریق د لوئ اختر

## وَالْعُمْرَةُ سُنَّةٌ وَهِيَ الْإِحْرَامُ وَالطَّوَافُ وَالسَّعْيُ

او عمره کول سنت دی او عمره عبارت دئ د احرام تړلو او طواف د کعبه شریفه او سعی په مابین کې د صفا او مروه.

فائده! عمره زموږ په مذهب کې سنت مؤکده ده او څوک وائي چه واجبه ده او څوک وائي چه فرض کفائي ده. او امام حضرت شافعي رح ئې فرض عین بولی تکه حج. د دلائل په لویو کتابو کې راغلی دی.

مسئله! عمره اګرچه په ټوله کال کې روا ده لکن افضل دا وقا تو ئې د روژې میاشت ده. فتح القدیر.

مسئله! په مذکوره پنځو ورځو کې ولی عمره روا نه ده. ولې چه ابن عباس رض څخه روایت دی چه آنحضرت صلی الله علیه وسلم وویل چه عمره مکروه ده په دغو پنځو ورځو کې. او هدایه والا دا احدیث و عائشه رض ته منسوب کړې دی.

اللهم اغفر لکاتبه ولمؤلفه ولوالدیهما ولجمیع المؤمنین آمین

# بَابُ الْهَدْیِ

دا باب دئ په بیان کی د احکامو د هدیې

پوهه سه! چه هدیه نوم د هغه حیوان دئ چه مکې شریفې ته واستول سی د پاره د تقرب. یعنی ثواب.

## وَالْهَدْیُ اَدْنَاهُ شَاةٌ وَهِیَ مِنْ ثَلٰثَةِ اَنْوَاعٍ مِنَ

او هدیه چه ده کمه درجه ئې پسه یا اوزه کړې دئ او هدیه د دریو قسمو حیوانا نو څخه

## الْاِبِلِ وَالْبَقَرِ وَالْغَنَمِ وَیُجْزِءُ فِیْ ذَالِكَ کُلِّهٖ الثَّنِیُّ فَصَاعِدًا

روادہ. اوښ نر یا ښځه غوئې نر یا ښځه پسه یا اوزه کړې نر یا ښځه. او کافی دئ په دې ټولو انواعو کی ثنی یا بالا تر ثنی.

پوهه سه! چه ثنی د اوښانو هغه دئ چه پنځه کالئ پوره سوی وی او په شپږم کی داخل وی. او د غویو ثنی هغه دئ چه دوه کالئ پوره سوی وی او په دریم کی داخل وی. او ثنی د غنم هغه دئ چه یو کال ئې پوره سوی وی او په دوهم کی داخل وی. کذا فی الکشف. وکوکب دری ص۳۵.

## اِلَّا مِنَ الضَّاْنِ فَاِنَّ الْجَذَعَ مِنْهُ یُجْزِءُ فِیْهِ

مګر د میږي په ذات کی. ولی چه د شپږ میاشتو میږی هم کافی او روا دی په هدیه کی.

## وَلَا یَجُوْزُ فِی الْهَدْیِ مَقْطُوْعُ الْاُذُنِ وَلَا اَکْثَرُهَا

او روا نه دئ په هدیه کی هغه حیوان چه غوږ ئې پوره پرې وی او یا ئې د غوږ اکثره

## وَلَا مَقْطُوْعُ الذَّنَبِ وَلَا مَقْطُوْعُ الْیَدِ

حصه پرې وی او نه هغه حیوان چه لکئ ئې پرې وی او نه هغه حیوان چه لاس

وَلَا الرِّجْلِ وَلَا ذَاهِبَةُ الْعَيْنِ وَلَا الْعَجْفَاءُ وَلَا

یا پښه نې پرې وې او نه هغه حیوان چه سترګه ئې ړنده وي (یعنې څه هم یوه سترګه ئې ړنده وي) او نه ډیره ډنګره (یعنې چه بېخې ډنګر وي) او نه ګوډه ګوډه، او ده هغه ګوډه چه د حلال ځاې پورې ځان نه شي رسولې او پسه

الْعَرْجَاءُ الَّتِي لَا تَمْشِي إِلَى الْمَنْسَكِ. وَالشَّاةُ

د ځمکې د ختم ټول نه سر پورې ځای لیږلی. او پسه

جَائِزَةٌ إِلَّا فِي مَوْضِعَيْنِ مَنْ طَافَ طَوَافَ الزِّيَارَةِ جُنُبًا

روا دي مګر په دوه ځایه کې یو هغه چا ته چه طواف د زیارت وکړي په جنابت سره.

وَمَنْ جَامَعَ بَعْدَ الْوُقُوفِ بِعَرَفَةَ فَإِنَّهُ لَا يَجُوزُ فِيهِمَا إِلَّا بَدَنَةٌ

او بل هغه چا ته چه وطی وکړي پس له وقوفه په عرفات باندې. ولې چه نه دي روا په دغه دوه ځایه کې مګر اوښ.

یوه سئله چه د وروسته قید ئې ووایه ولې چې دغه تر وقوف وطی وکړي حج ئې فاسد سي.

وَالْبَدَنَةُ وَالْبَقَرَةُ تُجْزِءُ كُلُّ وَاحِدَةٍ مِّنْهُمَا عَنْ سَبْعَةِ

او اوښ او غوا ئې کفایت کوي دا و کسانو څخه که نر وي او که ښځې.

أَنْفُسٍ إِذَا كَانَ كُلُّ وَاحِدٍ مِّنَ الشُّرَكَاءِ يُرِيدُ الْقُرْبَةَ

کله چې وو هر یو د شریکانو څخه چه اراده ئې وکړي د ثواب

فَإِذَا أَرَادَ أَحَدُهُمْ بِنَصِيبِهِ اللَّحْمَ لَمْ يُجْزِ لِلْبَاقِينَ عَنِ

او که اراده وکړه یوه د شریکانو په خپله برخه سره غوښې نه ثواب نو نه روا کیږي دا هدیه مشترکه د باقي شریکانو د

الْقُرْبَةِ وَيَجُوزُ الْأَكْلُ مِنْ هَدْيِ التَّطَوُّعِ وَ

ثواب دپاره. او روا دي مالک ته خوړل د هدیې نفلي. او د هدیې د تمتع

الْمُتْعَةِ وَالْقِرَانِ وَلَا يَجُوزُ مِنْ بَقِيَّةِ الْهَدَايَا

او د قران. او نه دي روا خوړل و مالک ته د نورو هدیو.

تکه د جنایت هدیه - د احصار هدیه - منذوره هدیه - کوکب دری ص۴۴

وَلَا يَجُوزُ ذَبْحُ هَدْيِ التَّطَوُّعِ وَالْمُتْعَةِ وَالْقِرَانِ

او نه دی روا ذبح کول د نفلی هدیې او د تمتع او د قران د هدیې

إِلَّا فِي يَوْمِ النَّحْرِ وَيَجُوزُ ذَبْحُ بَقِيَّةِ الْهَدَايَا فِي

مگر په ورځ د لوی اختر او روا دی ذبح کول د نورو هدیو په هر وخت

أَيِّ وَقْتٍ شَاءَ وَلَا يَجُوزُ ذَبْحُ دَمِ الْهَدْيِ إِلَّا

کې چه څوک ئې غواړي. او نه دی روا حلالول د پسه د هدیې مگر په حرم

فِي الْحَرَمِ وَيَجُوزُ أَنْ يَتَصَدَّقَ بِهَا عَلَى مَسَاكِينِ

کې او روا دی چه خیرات وکړي په هدیه سره پر مسکینانو باندې

الْحَرَمِ وَغَيْرِهِمْ وَلَا يَجِبُ التَّعْرِيفُ بِالْهَدَايَا

د حرم او پر ماسواله د وئ څخه او واجب نه دی عرفات ته بیول په هدیو سره.

وَالْأَفْضَلُ فِي الْإِبِلِ النَّحْرُ

او افضل په اوښانو کې نحر دی (نحر په کروي کې حلالیدو ته وائي. مستحب کیفیت ئې دا دی چه د اوښ چپه لاس دې وړ وتړې نو په ولاړې دې کښته تر حلق چه لبه وړ ته وائې حلال کړي).

وَفِي الْبَقَرِ وَالْغَنَمِ الذَّبْحُ

او په غواګانو او پسه کې ذبح افضل ده. ذبح د حلق وحلالیدو ته وائي.

مسئله! پسه او غوئي دې پرې باسي. بعضی خلک اوښ دواړه خایه حلالوي یعنې په کروکې او په حلق کې دا د سنت څخه خلاف دی.

وَالْأَوْلٰى اَنْ يَّتَوَلَّى الْاِنْسَانُ ذَبْحَهَا بِنَفْسِهٖ اِذَا كَانَ يُحْسِنُ ذَالِكَ

او بهتر دا ده چه تصرف دی کوی هر انسان د ذبح د هدیې په ځپله که چیرې ئې ذبح نرده کولے

ولې چه دا ذبح عبادت دې او عبادت په ځپله کول بهتر دی ترو کیل د ر ولو۔

مسئله که هدیې والا ذبح نه شوای کولای نو دی یا سړی وکیل کړی او دی دی هم دالته ولاړ وی

وَيَتَصَدَّقُ بِجِلَالِهَا وَخِطَامِهَا وَلَا يُعْطِىْ اُجْرَةَ الْجَزَّارِ مِنْهَا

او خیرات دی کړی جلان دا وبنو او مهار ونه دا وبنو او نه دی ورکوی مزدوری د قصاب د هدیو د غوښو څخه وغیره

تنبیه! اکثر احکام د هدیې چه ذکر شوه دا صحیح هم دغه احکام دی نو فکر پکښی وکړه

وَمَنْ سَاقَ الْهَدْيَ فَاضْطُرَّ اِلٰى رُكُوْبِهَا رَكِبَهَا وَاِنْ

او که بیا شړله هدیه د مکې شریفی (یعنی اوښ یا اوښه) نو دی مجبوره شو سپریدو ته د هغې سپور

اِسْتَغْنٰى عَنْ ذَالِكَ لَمْ يَرْكَبْهَا وَاِنْ كَانَ لَهَا لَبَنٌ لَمْ

دی شی پرې باندې او که ئې حاجت نه وو سپریدو ته نه دی پرې سپرېږی۔ او که اوښه یا غوا لنګه وه او شیدې ئې

يَحْلُبْهَا وَلٰكِنْ يَّنْضَحُ ضَرْعَهَا بِالْمَاءِ الْبَارِدِ حَتّٰى يَنْقَطِعَ اللَّبَنُ

نې د ر لوډې نه دې لوشي۔ لکن و دی پاشی پر غولانځی د هغې یخې اوبه تر هغو چه شیدې ئې وچې شی

وَمَنْ سَاقَ هَدْيًا فَعَطِبَ فَاِنْ كَانَ تَطَوُّعًا فَلَيْسَ عَلَيْهِ غَيْرُهٗ

او که بیا ـ وانه کړې وه هدیه د مکې شریفی د پاره او هغه پر لاره ی هلاک شوه۔ نو که نفلی وه نو بل دی

وَاِنْ كَانَ وَاجِبًا فَعَلَيْهِ اَنْ يُّقِيْمَ غَيْرَهٗ مَقَامَهٗ وَاِنْ

نشته بله هدیه (یعنی عوض د هغه هلاکی شوی هدیې) او که چیری واجبه وه نو بیا ده لازمه دده چه بله هدیه دی

اَصَابَهٗ عَيْبٌ كَثِيْرٌ اَقَامَ غَيْرَهٗ مَقَامَهٗ وَصَنَعَ بِالْمَعِيْبِ مَاشَاءَ

په ځای کې و دروی۔ او که ورسیدی و هدیه واجبه ته زیات عیب بله هدیه دی و دروی په ځای کی د هغې او ورد

کړی په عیب جن سره هغه کار چه دده خوښ وی۔ یعنی که خرڅوی او که خیراتوی۔

وَاِذَا عَطِبَتِ الْبَدَنَةُ فِى الطَّرِيْقِ فَاِنْ كَانَ تَطَوُّعًا نَحَرَهَا وَصَبَغَ

او که هلاک شوه اوښه (د هدیې) په لاره کې نو که نفلي وه ذبح دې کړي او رنګ دې کړي نعل

نَعْلَهَا بِدَمِهَا وَضَرَبَ بِهَا صَفْحَتَهَا وَلَمْ يَأْكُلْ هُوَ مِنْهَا وَلَا

چوټۍ چه د دې په غاړه دې په وینو د دې او وهدې دې په هغو چپو لو د دې بغل او خوړک دې

غَيْرُهُ مِنَ الْاَغْنِيَاءِ وَاِنْ كَانَتْ وَاجِبَةً اَقَامَ غَيْرَهَا مَقَامَهَا

کوی د هغې د غوښو څخه نه دې او نور اغنیاء. او که د اهلاک هدیه واجبه وه بله هدیه دې په

وَصَنَعَ بِهَا مَا شَاءَ

ځای کې ودروی. او وهدې کړې په هلاک شوې هدیې هغه کار چه د ده خوښ وي کې خوړي کې خرڅوي

وَيُقَلِّدُ هَدْىَ التَّطَوُّعِ وَالْمُتْعَةِ وَالْقِرَانِ وَلَا يُقَلِّدُ

او غاړکۍ یا چوټې دې په غاړه ور وځړوي د نفلي هدیې او د تمتع او د قران د هدیې او نه دې

دَمَ الْاِحْصَارِ وَلَا دَمَ الْجِنَايَاتِ

ور په غاړه کوی شی د هدیې د احصار یا د هدیې د جنایاتو

**پوره د سو!** یعنی د کتاب الصلوٰة په نام پښتو شرح د قدوري تمام ته ورسید د. د یکشنبې په ورځ سحار د روژې د مبارک میاشتې په اوله ورځ سنه ۱۴۱۲ھ ق په پښتون آباد کوټه کې د پاکستان په اسلامي مملکت کې هغه وخت چه زه د قندهار افغانستان څخه مهاجر وم. او اراده لرم ان شاء الله تعالیٰ چه دوهم حصه د دې شرحې د کتاب النکاح څخه شروع کړم خدائ پاک دې توفیق راکړي. او د چلو ورو لوستونکو دا خدمت چه ما عاصي وکړي خدای پاک دې د دوئ په نفع تمام کړي او ما ته دې خدائ ثوابونه راکړي. او کاتب او ناشر ته دې هم خدای ثوابونه نصیب کړي.

## د علامهٔ عصر شیخ التفسیر والحدیث جامع المنقول و المعقول محسود الاقران فخر افغان حضرت مولانا محمد عُبَیْد الله الایوبي القندهاري النقشبندي السلیمانخیلي مدّ فیوضه العالیه ترجمه او لنډه تاریخچه او سوانح عمري او د مخلصانو د پاره پېژندګلوي



دده نوم محمد عبید الله دئ ـ او ابو الفضل ئې کنیت دی او ایوبي ئې تخلص په عقائدو کې سُنّي ماتریدی دئ او په فروعو کې حنیفي مذهبه دی او په طریقه کې نقشبندي مجاز دئ او په قوم سلیمانخیل دی او وطن ئې قندهار دئ. او دی د عالمِ تقي الحاج محمد ایوب زوی دئ. او دده د پنجشنبې په ورځ د ماپښین تر لمانځه وروسته پر (۱۵) د ذی القعدة الحرام ۱۳۴۳ هجري قمري د فاشمول په قریه کې پر نابوده د دنیا سترګې روڼې کړې دی او پلار ئې یو متقي داړه عالم وو او په طریقهٔ نقشبندیه کې مجاز وو.

او د شارح د خولې چه زما پلار زما پر تعلیم زده کړې ډېر حریص وو حتی سره د ډېره صغر سنه ئې زه پر سبق مجبور کړی وم. شارح وائي چه بعضی کتابونه د فقې شریفې او بعضی کتابونه د علم صرف او نحو ما پر مرحوم پلار ووېله او بیا زما په زړه کې په برکت د دعا د والد مرحوم دا ارمان سو چه زه د وطنه او کوره ولاړ سو او په بې غمه زړه خپل تعلّم او زده کړه ته دوام ورکړم الی ما شاء الله تعالی.

هغه وو چه زه د قندهار وطنِ مالوف او د کوره څخه د بلوچستان علاقې ته راغلم چه هغه زمان په هغه وخت کې د انګریزانو تر تسلط او حکومت لاندې وه نو په بلوچستان پښین کې می پر جید متقي عالم مولوی تیمور شاه مرحوم باندې بعضی کتابونه د حکمت او عقائدو وویله. الغرض دوه کاله می دالته تېر کړه.

د شارح د بیان سره سم - بیا زه باعث کرم صدق همت پر دی بانذی چه ولاړ سم هند ته او په هند کی اجمیر ته چه هلته علامة الزمان الاستاذ الکلیة علماء الهند و الافغان المولوی عبد الله القندهاری المرحوم د مدرسه حنیفیه صوفیه بانی او سرپرست او مدرس اعلی وو او دی مرحوم په دغه وخت کی معمر او کلان سال عالم وو او ده ته د اطرافو څخه لکه افغانستان - بلوچستان - پشاور - آزاد قبائل او د هند د پیر ولیری سیمو څخه جید جید طالبان راتلل او ددرباب څخه دعلم دده مبارک داستعدا سره برابر استفاده کول - او ده مبارک د طالبانو سره عموماً او د پښتنو طالبانو سره خصوصاً ډیر شفقت کاوه -

د شارح دخولی چه زه اجمیر شریف ته ورغلم او دجناب مذکور په مدرسه کی داخل سوم پس له څو زمانی تعلم څخه دده په جناب کی ما ته یوه لویه منزله حاصله سوه، وَذَٰلِكَ فَضْلُ اللَّهِ يُؤْتِيهِ مَنْ يَشَاءُ ۔

او شارح وائی چه ما په خدمت کی د حضرت المرحوم دری کاله تیر کړه او ښه سلیسه او دوشه په می هم زده کړه - او هلته ما کتب د تفاسیر و او ریاضی او علم ادب او د متقدمینو د منطق بعضی کتابونه لکه شرح المطالع او د حکماؤ متقدمینو بعضی کتابونه لکه شرح الاشارات وغیره وویله -

پس له دری کاله انګلیسانو بر اعظم د هند پر دوو حصو تقسیم کړی یعنی پاکستان او هندوستان چه په دی سبب په مابین کی د مسلمانانو او هندوانو لویه فتنه او قتل و قتال ما بین ته راغلی او اجمیر شریف په حصه کی د هندوانو سو - نو هندوانو پر اقلیت د مسلمانانو د اجمیر شریف نوره د ظلم دیګی وکښته او په زرو مسلمانانو په شهادت ورسول - آخر حضرت الاستاذ المرحوم سره د څو پاته پښتنو طالبانو د پاکستان و هجرت ته مجبور سو - هغه وو چه استاذ محترم بلوچستان د کوټی ښار ته راغلی چه هلته دده مرحوم د یوه شاګرد حضرت المولوی عبد الغفور صاحب مدرسه په نامه د مظهر العلوم په ښالدره کی وه چه تر اوسه هم سته او په هغه مدرسه کی ئې وخپل درس ته ادامه ورکړه -

شارح وائی چه ما لږ زمانه په دغه مدرسه کی تیره کړه او بیا می د

حضرت الاستاذ تخه اجازه واخستل او لاهور ته ولاړم چه په لاهور کی
یو معمر عالم شیخ الحدیث والقرآن وسائر العلوم النقلیة والعقلیة مولانا
مهدی الله المرحوم په یوه مدرسه کی چه په اچهره کی چه د لاهور ښار ته
نژدې ځای دی واقع وه شیخ الحدیث و وا ونه هم په هغه مدرسه کی
داخل سوم او د المرحوم د فیضه مستفیض سوم - او د احادیثو کتابونه او
بعضی د فقهی شریف کتابونه او نور باقی مانده کتابونه می په دغه لوی
استاذ المرحوم باندی و ویله او دده و کلو ورو سته د تولو درسی
کتابو تخه فارغه سوم او د تحصیل شهادت نامه د استاذ المرحوم دخوا
راکړه سوه او زما عمر په دغه وخت کی تخمینا (۲۵) کاله وو - او بیا
حضرت الاستاذ المرحوم ماته وظیفه د مدرس ثانی په خپله مدرسه
کی ورسپارله - یو کال چه می درس وکړی حُبّ الوطن و الاقربا رمی
دامن گیر سو او په اجازه د استاذ محترم د لاهور تخه قندهار ته راغلم
اول درس می یو کال د موسی خان په جامع مسجد کی چه په هرات دروازه
کی ده وکړی او بیا زه تنگی آباد ته ولاړم یو کال می هلته درس وکړی او
او بیا سنخری ته راغلم چه د یوې جامع قریه لوم دی ښار ته نژدې
(۱۲) کاله می دلته درس ته ادامه ورکړه او د سنخری د استوګنې په وخت
کی زه د شیخ کامل مکمل جامع الکمالات السید الجید الجواد مولای
عبد الغنی المرحوم المشهور په بابک صاحب کدنی مرید سوم او لیس لیوه
کاله جد وجهد ماته دخلافت د طریقهٔ نقشبندیه خرقه ددوی بابک المرحوم
دخوا راکړه سوه - او ما د سنخری تخه په سبب د بعضی اقتضا دی مشکلاتو
خوش آب ته هجرت وکړی چه هغه هم د قندهار ښار ته نژدې یو جامع
قریه ده - او هلته می پنځه کاله درس وکړی او بیا د خوشاب تخه قندهار ته
ولاړم - او د ملا علم اخندزاده په کلی کی می په یوه جامع مسجد کی درس شروع
او (۱۳) کاله می هورې درس وکړی - بس له هغه انقلاب د حزب الخلق په
کومک د روس په پاکه خاوره د افغانستان مسلط سو او د مسلمانو بندی
کول او وژل ئې شروع کړه - او عمومی مسلمانانو و نژدې اسلامی مملکت پاکستان
او ایران ته هجرت وکړی او بعضی مسلمانان نورو مملکتو ته ولاړل خصوصًا هغه وخت

چه روسان مستقیما په لویه پیمانه داخل شوه او د مسلمانانو د خوا د حزب الخلق او معاونانو د هغو یعنی روسانو سره جهاد اعلان شو نو په هغه وخت کی زه د خپله عیاله سره نژدې اسلامی ملک پاکستان ته راغلم او په کوټه کی می اقامت اختیار کړې زامنو می مزدوری کولې او ما خپل درس ته په ډکر پیمانه جریان ورکړې حتی چه په سوو طالبانو به د ورځی سبقا نو ته راتلل او په یوه کتاب به پنځوس شپیته تر سلو پورې شریکان وه۔

او شارح وائی چه ما به په فارغ وخت کی پر بعضی درسی کتابو حاشیې هم کولې چه هغه کتابونه او رسالې تر څلویښتو او س زیاتی دی او اکثره پر منظر عام موجود او مقبول دی "الاعند الحاسدین الذین هم عن الحق ناکبون"

ناشر الکتاب وائی چه شارح محترم همیشه د سیاسی ډلو څخه برکناره وو او دی۔ او بعضی حاسدانو او جاهلانو د تعصب قومی د لارې یا د تعصب علمی د لارې پر شارح محترم قسما قسم بهتانونه ویلی او وائی۔ لکن بیا هم شارح محترم په هغو کی فکر نه واهه او دا آیة شریف ئی مد نظر وو "وَتُعِزُّ مَنْ تَشَاءُ وَتُذِلُّ مَنْ تَشَاءُ بِيَدِكَ الْخَيْرُ" د شارح محترم د هجرت څخه اوس (۱۹) کاله کیږی۔ د حاسدانو حسد پر ده هیڅ تاثیر نه دی کړې او نه ئی عزت ور کم کړې دی او نه ئی رزق ور کم کړې دی حتی د کوټې په ښار کی علاوه د استوګنی تر سرائې خپل ځا مع مسجد ئی هم جوړ کړې دی۔ دا وه د حضرت شارح محترم مختصر حالات۔ والسلام۔ محمد فضل الحق حقانی تلمیذه۔

---

## د علامهٔ زمان محسود الاقران شیخ التفسیر والحدیث جامع المنقول والمعقول مولانا محمّد عبید الله الایوبی القندهاری السلیمانخیلی النقشبندی د مصنفاتو او حواشیو تعداد تر موجوده وخت پورې یعنی ۱۴۱۹ ھـ ق

---

(۱) د قدورې موجوده شرحه او ترجمه (۲) د نور ظلم پښتو ترجمه (۳) د تفسیر

بیضاوی ته مقام درسه مکمله حاشیه (۴) پر شرح عقائد باندی حاشیه
(۵) رساله په رد کی د وهابیانو یعنی البیانات الصادقة (۶) رسالة په اثبات کی د
عصمت د انبیاء ؑ یعنی کشف الغطاء (۷) پر خوورقو د هدایه صلوة حاشیه
(۸) پر هدایه النافع حاشیه (۹) د بیان د شهادت حسین رض تاریخ (۱۰) پر اصول
الشاشی باندی حاشیه (۱۱) پر مسلم الثبوت حاشیه (۱۲) پر شهه حاشیه
(۱۳) پر هدایة النحو باندی حاشیه (۱۴) پر کافیه باندی حاشیه (۱۵) پر عبدالغفور
حاشیه (۱۶) پر مطول حاشیه (۱۷) پر کافیه باندی مکمله شرح د شیخ د مثالبو او
د هغه د عصبانو په رد کی (۱۸) پر مرح باندی حاشیه (۱۹) پر شافیه باندی حاشیه (۲۰)
پر سراجی باندی حاشیه (۲۱) پر خلاصة الحساب باندی حاشیه (۲۲) پر تصریح
باندی حاشیه (۲۳) پر قوشجیه باندی حاشیه (۲۴) پر بست باب باندی حاشیه
(۲۵) پر تحریر اقلدس باندی حاشیه (۲۶) پر تلخیص المفتاح باندی حاشیه
(۲۷) پر مختصر الشافی باندی حاشیه (۲۸) پر هدایه الحکمة باندی حاشیه (۲۹) پر
صدرا باندی حاشیه (۳۰) پر مرزا هد امور عامه باندی حاشیه (۳۱) پر قاضی
سلم باندی حاشیه (۳۲) پر حمد الله باندی حاشیه (۳۳) پر جلال باندی حاشیه
(۳۴) پر کندیا باندی حاشیه (۳۵) پر قطبی باندی حاشیه (۳۶) پر بدیع المیزان
باندی حاشیه (۳۷) پر میر ایساغوجی باندی حاشیه (۳۸) پر ایساغوجی باندی
حاشیه (۳۹) پر تصریح مستقله شرح (۴۰) جامع البرکات پر طریقه د دلائل الخیرات.
(۴۱) ابو المنتهی (۴۲) شرح جامیؒ (۴۳) مرزاهد قطبیه (۴۴)
حاشیة علی المیبذی (۴۵) مواعظ ایوبی جلد اول و جلد ثانی۔

## مناجات

الهی یا الهی یا الهی ندارم جز امیدت تکیه گاهی

ز کن موجود کردی جمله عالم مرا از ذنب خود کن عذر خواهی

اللهم اغفر لمولفه و لکاتبه و لناشره و لوالدیهم و لجمیع المؤمنین آمین۔

# خبرتیا

## ټولو د کتابو تاجرانو او کتاب فروشانو ته

خبر وړکوم! چه دقدوري د شرحې په نوشته کولو کې جناب خوشنویس بیمثال عالم باعمل وکمال المولوی فضل الحق زید مجده او د ده مخلص ملګری مولوی عبدالباری غفرله الباری چونکه ډیره عرق ریزی کړې ده او ډیری شپې او ورځې د خپل عمر عزیز پکښې صرف کړې دی او مالی مصارف ئې هم پکښې کړې دی حتی لکه تاسی چه وینی د اشرح او ترجمې په مثال د "عروس نو بهار" وخپلو پښتنو ورونو او خوندو ته ښکاره کړه.

نو لهذا د هر تاجر او کتاب فروش اخلاقی او وجدانی او قانونی وظیفه داده چه داغه شرحه دی د خپلې ګټې دپاره وچاپ ته نه سپاری خلک وائی بنده اسره د خدائ خپل سه لکه پرخان داسی پر بل سره وکوگ په دې خبرتیا عمل ونه کړې او دا شرح په موجوده نوشته وچاپ ته وسپاری او چاپ ئې کړې نو د هغه سره علاوه په قانونی چاره چلند پښتنی کار ګذاری به هم ورسره وکړه سی. او ځکه چه ما محمد عبیدالله چه مصنف د دې شرحې یم ټول حقوق د طبع کولو او چاپولو مولوی فضل الحق او مولوی عبدالباری ته اهداء کړې دی او باید تاجران د دې کتاب قیاس پر نورو چاپی کتابو ونه کړې چه هغه خو تاجران طبع کوی. ولې په هغو کې که څه هم مصارف د بعضی مطابعوله خوا سوی دی لکن هغه کسان او س د لته په پاکستان کې نسته او د دې شرحې مصنف او کاتب او ناشر او س هم په پاکستان کې موجود دی او د خپل حق غوښتونکی دی.

وَمَا عَلَيْنَا اِلَّا الْبَلَاغ.

# د پښتو قدوري د مضمونو فهرست

# څه د قدوري په اړه

محترمو لوستونکو! دا بشکلې قدوري چې ستاسو په لاس کې ده زموږ
اداره "مکتبة القراءت والتجويد" بې په نوي کتابت سره نشر ته سپارلې.
ددې کتاب نوی کتابت د غلطیاو څخه محفوظه دی.
او هر باب بې د عوامو او خواصو د پاره د صفحې په اول "شروع" کې راوړ
سوی دی.
او د بخوانی "اوّلني باب" څخه چې کوم خالي ځای پاته سوی وی په
هغه کې ورسره زائدې مسئلې د هغه باب سره متعلق لیکل سوې دي.
په بخوانیو نسخو کې چې کومې غلطیانې موجودې وې د نظر ثاني له
کبله د هغو ټولو رفع سوې ده.
هیله ده چې "داد ره یکتا" به د ټولو مسلمانانو د پاره سبب د نفع
اخستلو، او زموږ د پاره سبب د آخرت وګرځي "الله العالمین"
دی زموږ دا کوششونه د دنیوي او اخروي کامیابۍ ذریعه وګرځي
امین.
ان شاء الله زموږ اداره د دینې خدماتو جذبه لري خاص بیا د قرآن مجید
د تجوید و نو په اړه زموږ نشریات ځانګړې دي: والسلام

## مَكتَبَةُ القِراءَتِ وَالتَّجوِيد

کانسي روډ، کوئټه، بلوچستان